# افغانستان

د ديموکراسي او جمهوريت په کلونو کي

۱۹۶۳ ــ ۱۹۷۸

ليکوال

عبدالغفار فراهي

۱۳۸۲ ــ ۲۰۰۳

contact: agfarahi@hotmail.com

يو

## د كتاب په هكله نوري څرګندوني

---

---

د محترم ډاكټر فا روق اعظم د ليك يوه برخه

د ۲۰۰۱ كال د دسمبر د مياشتي ۲۵ ـ لندن ـ انګلستان

د ښاغلي عبدالغفار فراهي كتاب (( افغانستان دديموكراسي او جمهوريت په كلونو كي )) مي وواېه او لاندي نظر پر وړاندي كوم :

پر كتاب ايجمالي نظر:

زما د فراهي صاحب دغه كتاب خوښ سو . زه يي يوه لويه ښيګڼه د ژبي ساده ګي او عام فهمي بولم . دا كار يي نه دی كړی چي د مطالبو د وړاندي كولو تر څنګ خلګو ته د ژبي د سوچه توب يا رموزو درس هم وركړي او په دي ډول لوستونكي مغشوش كړي .

د كتاب بله ښيګڼه داده چي مؤلف يوازي واقعيات نه دي رانقل كړي بلكه خپل نظريي هم پر وركړی دی . سړی پوهيږي چي په هغو واقعياتو كي چي دی حاضر وو خان ته يي يو څوك ويل او كه د نورو منابعو څخه يي څه را اخستي هم دي كوښښ يي كړی دی چي د خپل مطلب لپاره يي استخدام كړي . ده د تاريخ ليكونكي كار ندی كړی چي صرف واقعيات بيانوي او قضاوت نورو ته پريږدي ، بلكه د يوه څيړونكي په شان يي كار كړی دی .

د كتاب د ليكلو ډول يي هم د ډيرو نورو ليكوالانو سره فرق لري . ځای ځای ټوكه او شعر پكښي راغلی چي د كتاب لوستل يي له ستومانيه ژغورلی دی .

څلورم ښه والی يي دادی چي په كتاب كي فراهي صاحب خان ندی پړسولی . زه دا د هر چا يو طبعيي حق ګڼم چي په ټولنه كي خانته سم موقف ولټوي او يا په خپل كتاب كي دا وښيي چي ده ټولني او يا كومي خاصي مسألي ته څه ګټور كار كړی دی . خو

خيني خلگ په دي کار کي ډير افراط کوی . فراهي صاحب تر ډيره ځايه پخپل طبعيي حدودو کي تللی دی .

او آخر ، آخر د اهميت په لحاظ نه ، ما تر اوسه بل دا ډول کتاب ندی لوستی چي د ولسي جرگي د مهمو مسايلو په باره کي او يا د حکومت سره د دولت ددغه مهم رکن روابط په کوم تفصيل چي فراهي صاحب يي يادونه کړيده بحث سوی‌وي . اميد دی چي دده دغه ابتکار د نورو وکيلانو لپاره ښه پيلامه وي .

مؤلف په عام ډول د ولسي جرگي دفاع کوي او په اجراآتو کي حکومتونه ملامتوي دی پاچا او حکومتونه په ولسي جرگي کي په لاسوهنه متهموي . نوموړي مسايلو ته د يوه وکيل په حيث او د ولسي جرگي له نظره کتلي دي او حق پجانب هم دی دا ځکه خپله وکيل وو ، خو کاشکي د هغه وخت د حکومت يو غړی هم په دي باره کي څه وليکي چي هغوی د ولسي جرگي او وکيلانو سره څه مشکلات درلودل څو مسايل او اړخونه يي روښان سي او راتلونکي ولسي جرگي او حکومتونه گټه ځني واخلي . زه چي وگران هيواد افغانستان ته د ولسي نظام راتگ يو عاجل او مبرم ملي ضرورت گڼم ، دا کتاب ډيموکراسی ته خدمت او په هغه مرحله کي يي د ولسي جرگو او حکومتونو د تعامل په برخه کي يو گټور اثر او مؤخذ بولم .

... مؤلف ليکلي دي چي امريکايانو د ۱۹۵۰ په لسيزي کي له افغانستانه مکرر غوښتي وه چي د سنټو په نظامي تړون کي ورسره شامل سي ، خو سند يي ندی ذکر کړی . زما معلومات دادي چي امريکايانو ته هغه وخت افغانستان نه اقتصادي ، نه ستراتيجکي او نه لوجستيکي اهميت درلود . منزوي موقعيت او د روس سره اوږد سرحد افغانستان د روس د نفوذ په ساحه کي امريکايانو قبول کړی وو او فکر يي کاوه چي که هر وخت روس وغواړي افغانستان په آسانـی نيولای ســي . دوی نه په دننه افغانستان کي د کمونيزم خطر او نه له دباندي څخه د روس د حملي گواښ ليدی نو ځکه يــي هــره نظا مــي مرسته و افغانستان تــه ، د روس بي ځايه پارونه بلل چي امريکايانو دا نه غوښتل .

يوي ډيري مهمي  خو تل له نظره غورخول سوی مسألي ته چي مؤلف اشاره کړيده هغه د پوونده ( کوچيانو ) مسأله ده . دي ملي موضوع ته بايد جدي توجه وسي او زه دي خبري ته د مؤلف توجه  په اخر کي زه مؤلف ددغه ګټور کتاب په ليکلو ستايم او نور توفيق ورته غواړم او ويونکي يي و ويلو ته هڅوم . پــــه درنـــاوي

---

د محترم عبدالجليل وجدي د ليك يـوه بـرخـه

د ۲۰۰۲ کال د مي د مياشتي ۲۰ ـ ټورنټو ـ کاناډا

يوه کتاب ته کتنه :

(( افغانستان دديموکراسي او جمهوريت په کلونو کي )) د يوه په زړه پوري او ګټور کتاب نوم دی چي د ۱۳۸۰ کال په ژمي کښي خپور شوی او په همدي وختونو کښي زما لاس ته راغلی دی . د کتاب ليکوال محترم عبدالغفار فراهي دی چي په خپله هم په ولسي جرګي کښي د فراه د بالابلوك د خلګو د وکيل او يو فعال پارلماني غړي په توګه دديموکراسي په منځني بهير کښي د رول خاوند دی . د حقوقو او سياسي علومو په ساحه کښي دليکوال لوړ تحصيلات ، د بهرنيو چارو په وزارت ، همدارنګه په ځينو هيوادو کښي ، په افغاني سفارتونو يا قونسلګريو کښي مهمو ماموريتونو او ډيپلوماټيکو تجربو ، د يوه داسي ډير ښه کتاب د ليکلو د پاره د محترم فراهي صلاحيت نور هم زيات کړی دی .

په کتاب کي څرګنده شوی ده چي د افغانستان د اوسنيو غمجنو حالاتو اصلي عاملينو دديموکراسي او جمهوريت په دور کي ډيره ګړندی وده کړي وه ، له دي خبري څخه څرګنديږي چي له ډيموکراسی څخه زمونږ تالي ښي نه وي يا دا چي ډيموکراسي له مونږ څخه ښي تالي نه درلودلي .

مونږ فکر کاوه لا وايو چي ولسواکي د افغانستان په تاريخ او فرهنګ کي ژوري جرړي لري . دا غټه خبره يواز زمونږ عقيده نه ده ، بلکي د ختيځ او هم د لويديځ پوهانو او مفکرينو ډير خله دا خبره راسره منلي هم ده . سره له دي هم له نوي راوستل شوي ډيموکراسي څخه مونږ ته لږ خوږي ، خو زښتي ترخي تجربي او نتيجي راپاته شوي

دي زمونږ ملي روښانفكرانو ( مشروطه غوښتونكو ، ويښو ځلميانو او داسي نورو ) د نورو ملتونو د نهضت غوښتونكو په څير د ډيموكراي يا جمهوريت د راوستلو په لاره كي ، سر او مال ښندلى دى ، خو مبارزي يي له بده مرغه پر ځېل وخت دومره بريالى نه وي . وروسته بيا البته د ټولني او زماني د تحول غوښتونكي روحيي غوښته وه چي ډيموكراسي او جمهوريت دواړه په نسبي توگه په كراره كرارى كي د پاچهي كورنى له لويو دروازو څخه د خيرات په كاسو كي راووزي ، په كتاب كي دغه ډرامتيك غوندي كيفيت په ښه توگه ښودل شوى دى .

دلته تر ټولو غټه پوښتنه داده ، چي په يوه فطرتا ډيموكراتيكي ټولني كي يوه ډيموكراسي او يو جمهوريت ولي داسي ناكامه سي چي زيانونه يي ډير ځله له گټو څخه زيات شي ؟ ښايي دا پوښتنه ډير جوابونه لري ، خو تر ټولو جامع جواب يي د يوي عنعنوي ټولني له مزاج سره د يوي نوي او په بل ځاى كي د راټوكيدلي سيلسي پديدي دډير گړندي حركت نه برابريدل وي . په كومه ټولنه كي چي د (( انتقاد ))او (( پيغور )) تر منځ پوله ډيره نرمه او نري وي او رقابت پكي ژر د تربوروليٰ يا تربگني بڼه غوره كړي . نو په داسي يوه ټولنه كي د پرمختگ د گړندي كولو دوه مهم عوامل (( انتقاد)) او(( رقابت)) كله چي په منفي توگه تعبير شي ، د خلگو د پښو زولاني گرځي .

زمونږ كورونه او بيا زمونږ د ټولو شريك لوى كور ( هيواد ) ډير ځله د تربوروليو بي ځايه او بي گټي سياليو وران كړى دي . په نولسمه بيا شلمه پيړى كي د هيواد د ډيرو بدبختيو ستر مسؤليت د تربگنيو په غاړه هم پروت دى . همدي تربگنيو د تره زامن ، بلكي وروڼه ، پلرونه او زامن په خطرناكو شخړو كي سره مخامخ كړي دي ، او له بده مرغه د سياسي تربوروليو لمن زمونږ د ژوندانه زماني ته هم راغزيدلي ده . د فراهي صاحب په دي كتاب كي څرگنديږي چي د سوغاتي ډيموكراسي يو مخ د پاچا د تره د زوى محمد داود خان د سياسي فعاليتوننو مخ نيوى و ، او هڅه شوي وه چي ده ته د پاچاهي كورنى د خينو امتيازاتو په وركولو سره ، دى له خينو سياسي حقوقو څخه په احترامانه توگه محروم كړي . خو په مقابل كي محمد داود خان هم د خپلو مټو، پښو او ارادو د آزادولو لپاره د جمهوريت وسله چي د كتاب ليكوال يي بي لزومه كودتا

بولي تر لاسه کړه .له دي کبله چي ډيموکراسي او جمهوريت دواړه د لنډي مودي د
هدفونو لپاره له لويو ورونو څخه راايستل شوي او لورل شوي ډالى وي ، دواړه په
نيمه پنځه
لاري کي نيمګړي پاته شوي دي او د يوي مشهوري محاوري له مخي ء هر شی چي
نيمګړی شي بلا ګرځي ء څکه خو د کتاب ليکوال په څغرده ليکي چي د افغانستان دغه
پنځلس کلن تاريخ د هيواد دورستيو ډيرو پيښو ننشأ ده .

د کتاب د مطالعي څخه موږ پوهيدلای سو چي له عنعنوي ولسواکي سره د
سوغاتي ډيموکراسي مخامخ کيدل د ټکر غوندي يو حالت درلود ، لکه چي فراهي
ليکلي دي :د ١٩٦٤ کال د اساسي قانون د تسويد کميټي د افغانستان عنعنوي لوي
جرګي ته په درنه سترګه نه دي کتلي . دوی د لوي جرګي اصالت ته لويه صدمه
ورسوله .

... چي د لوي جرګي په شکل او محتوا کي دي تغييراتو هغه له خپل اصلي مقام څخه
چي تر دولت هم اوچته وه را ټيټه کړله ، او له بده مرغه هغه په ورستيو سياسي لوبو
کي نوره هم د بيلو بيلو ډلو د لاس آله وګرځيدله چي ډيره بي خايه يي استعمال او
استهلاك کړه .

... زه په داسي حال کي چي محترم فراهي ته دداسي په زړه پوري او ګټور کتاب
د ليکلو له امله مبارکي ورکوم ، له لوستونکو څخه هم هيله کوم چي د افغانستان له
اوسنيو او پرونيو مهمو پيښو څخه د ضروري خبرتيا لپاره دا کتاب په غور او خير
سره مطالعه کړي . پــه درنــاوی

---

د محترم محمد علم بڅرکي د ليك يـوه بـرخـه
د ٢٠٠٢ کال د اپريل د مياشتي ٣ ـ فيننډال ـ هالنيډ
محترم عبدالغفار فراهي !

ستاسي د افغانستان کتاب چي د ډيموکراسی او جمهوريت په باب او د پنځلس
کلونو تذکر پکښي ځای سوي دی ، يو د هغو کتابو څخه دی چي ما ورته بيخي ډير

ضرورت درلود . ځکه په دي وخت کي د اروابناد بينوا صاحب نقش په پارلمان کي ما ته ډير په کار وو . په دي وخت کي موږ وه بينوا صاحب ته ځني مشوري ورکولي چي په پارلمان کي داسي داسي وه وايه او وکه .

دغه رنګه دا زمانه د افغانستان په ډيموکراتيك نقش کي يو ټاکلی حيثيت لري ، په ډيره بيا د چپيانو د کړو له نقطه نظره . او هغه د رامپارتس ترجمه چي مي ولوستله نو د موضوع په اهميت مي سترګي روښي سوی ، ما ډير کوشش درلود چي دا مضمون پيدا کم خو تر پايه موفق نه سوم ، ځو دادی اوس مي ستاسو په کتاب کي ولوستی ، ددي کتاب يو لوی صفت دادی چي هره موضوع يي تر جز او تام پوري تشريح کړيده چي دا د ء ډاکومنټ ء د پاره د يوه ليکونکي سره ډيره مرسته کوی ، او يو مراجعوي کتاب دی ، لکه ډکشنري او يا بل کوم مهم کتاب .

بل ، د محمد هاشم ميوندوال په باب ډير هغه مطالب پکښي ځای سوي دي ، چي زه په هغو خبر نه وم . ځرنګه چي خيال لرم د ء مترقي ديموکراتيك حزب ء په باب هم څــه وليکم نو دا نوشته ما ته ډيره غنيمت سوه ، په ډيره بيا چي د کتاب په پای کي د مهمو پيښو اختصاري پيشليك راوړل سوی دی .

که مي ډيره ستاينه نه وي کړي نو زه به دا کتاب يوه لنډه انسايکلوپيډيا و بولم د افغانستان او ددغه پنځلس کلو د ډيموکراسی او جمهوريت د دوری .

په درناوي

ډير تفاوت سته په انسان کي د معنا په لحا ظ
واړه مشغول دي ځيني ځان ځيني جهان جوړوي
( الفت )

## د کتاب پیژندنه

نـوم : افـغـانسـتـان ، دديموکراسـي او جمهوريـت پـه کلونـو کـي

ليـکـونـکې : عبـدالغـفـار فـراهـي

خپرونکې : دانش کتابتون ، قصـه خـوانـي بـازا ، پـيښـور

د تـلیـفـون نـمبـر ٢٥٦٤٥١٣

کـال : ٢٠٠٣

د چـاپ شـميـر : دريـم چاپ

تعداد : زر ټوکه

پر کتاب نوی کتنه سوي ده ، ډير نوي مطالب پر کتاب علاوه سوي دي

لومړی

## د کتاب د مطالبو لنډیز

حاضر کتاب عبدالغفار فراهي د خپلو خا طراتو په حیث په څه دپاسه دري سوو مخونو کي لیکلې او د لوستلو له پاره یي خپلو هیوادوالو ته وړاندي کوي .

تر سریزي او یادوني وروسته د کتاب په پیل کي هغه مسایل څېړل سوي دي چي په شلمي پیړۍ کي د افغانستان په برخه وو او د افغانستان د خارجي سیا ست په غوره کولو کي یي مؤثر نقش لوبولی دی ، لکه ځیني سیمي چي د افغانستان څخه جلا کړه سوي وي ، دډیورنډ کرښه ، د پښتونستان موضوع ، په سیمي کي نظامي اتحادیي او د عدم انسلاک نهضت .

د محمد داود خان د صدارت دوري ته هم یوه لنډه کتنه شوې ده .

په کتاب کي ددیموکراسۍ دورې پنځه حکومتونه په لازم تفصیل لیکل سوي دي . محمد موسی شفیق چي په ۱۹۷۲ کال د روم په مشورتي غونډۍ کي د صدر اعظم په حیث وټاکل سو، محمد ظا هر شاه غوښتل چي دده په وسیله دیموکراسي نظام په نوي مجرا کي واچوي ، ولې پاچا خپل دغه هدف ته و نه رسید .

په کتاب کي ددغه پنځلس کلن سیا سي تاریخ هغي پیښي څېړل شوي دي چي لیکوال په خپلو سترګو لیدلي او یا د هغو په واقعیت خبر سوی و . لیکوال په دیارلسمي تقنیني دوري کي د ولسي جرګي وکیل و ، ده د ولسي جرګي ډیري پیښي لکه د محمد ظاهر شاه او صدر اعظمانو سره د وکیلانو کتني ، حکومتونو ته د نه اعتماد رایي ، په ولسي جرګي کي د پښتو ژبي موضوع ، د هلمند د اوبو معاهده ، د صنعتي بانکونو قانون د وکیلانو د حاضرۍ معضله او داسي نور مطالب په ډیر تفصیل لیکلي دي چي تر اوسه بل لیکوال پر دغو مطالبو باندي کوم اثر نه دې لیکلې .

د کتاب د ضمایمو په برخي کي دډیورنډ د موافقتنامي متن ، د دیارلسمي تقنیني دوري د وکیلانو او سناتورانو نومونه او د رامپارتس د مجلي د هغي مقالي یوه برخه چي د شهید محمد ها شم میوندوال دښمنانو دده پر ضد تبلیغوله ، درج سوي دي .

ليکوال وايـي چـي د ١٩٦٤ کال اسا سي قانون او ديموکراسي دوره د محمد ظاهر شاه داسي يو سيا سي حرکت و چـــي ده ددغـــي لاري څخه تـر ديـرش کـالـه انزوا وروسته د افغانستان دولتي چاري په خپل لاس کي واخستي او په دغه طريقه يي محمد داود خان د دولت له جرياناتو څخه ليري وساتې . محمد ظا هر شاه پـه هيواد کـي د کاملي ديموکراسې مخه هم نيولي وه ، ده د اساسي قانون متمم قوانين لکه د احزابو او اجتماعاتو قوانينو ته د انفاذ اجازه نه ورکوله ، ده د ولايتي جرگو او ښاروالیو انتخابات ځنډولي وو . کله چـي د ١٩٦٤ کال د اسا سي قـانـون ٢٤ مه مـاده د محمد داود خان پرخلاف پـه لـوي جرگي کـي لا پراخه کړه سوه ، نـو محمد داود خان دي نتيجي تــه ورسيد چي په شا هي دولت کي دده پر ضد دسيسي کيږي او دى د پاچا څخه د دښمني تر سرحده خوابدې سو .

محمد داود خان د شاهي اردو د کښته رتبه صاحبمنصبانو په مرسته د١٩٧٣ کال د جولای د مياشتي پر ١٧ نيټي کودتا وکړه او سلطنتي نظام ته يي خاتمه ورکړه . ده تر کودتا يو کال وروسته خپل د کودتا ډير ملگري ددولت څخه و ايستل او د جمهوري دولت په اساسي قانون کي يي پرته له خپل ملي انقلاب د حزب څخه د نورو احزابو فعاليت غيرقانوني اعلان کړ . ده د شوروي اتحاد څخه د ليريوالي پالسي غوره کړه . محمد داود خان د١٩٧٧ کال د اپريل د مياشتي پر ١٣ نيټي د برژنيف سره لفظي ټکر وکړ او د عدم انسلاك د نهضت څخه يي د کيوبا د ايستلو هڅي پيل کړي . دی د ايران او عربي هيوادونو له لاري ، غربي نړی ته ورنژدي سو . محمد داود خان دډيورنډ د کرښي او د پښتونستان د موضوع د حل کولو جدي خبري د ذوالفقار علي بوټو او جنرال ضيأ الحق سره پيل کړي ، ولي دده ټول اقدامات نيمگړي پاته سوه ، په دي چي د ١٩٧٨ کال د اپريل د مياشتي پر ٢٧ نيټي د خلق او پرچم ډلو دده پر ضد کودتا وکړه او محمد داود خان د خپلي کورني د ١٧ غړو سره په شهادت ورسيد او افغانستان د تباهې کندي ته ولويد .

څرنگه چي په دغه کتاب کي به يي ولولې دافغانستان داوسنيو غمجنو حالاتو اصلي عاملينو دديموکراسي او جمهوريت په دوروو کي ډيره سريع وده کړي وه چي ددغو

دواړو دوروو د مسايلو ټول اړخونه پــه دغه کتاب کــي څېړل شوي دي او لوستل يـي ډېر ګټـوردي . په درناوي ــ د کتاب خـپرونــکي مؤسسه

پوهاند ډاکټر محمد حسن کاکړ
کانکورډ ــ امريکا ـ سپتمبر ۲۰۰۰

## يو نظر

په دي نژدي وختونو کي د فکر او قلم خاوند افغانانو دوطن ، جامعي او تاريخ د بيلو بيلو اړخونو په اړه خپل تجارب ، افکار او نظريات درسالو او کتابونو په بڼه وړاندي کړي دي دغومره ډير آثار چي په دغي مودي کي ددوی له دماغونو نه راوتلي دي ، په بلي ورته دوره کي په دغومره شمير راوتلي نه دي . په نتيجه کي زموږ هڅوب يا فرهنګ ډير شتمن شوی دی .

ددغسي آثارو په لړ کي يو هم د محترم عبدالغفار فراهي دی په نامه د افغانستان دديموکراسي او جمهوريت په کلونو کي . ما دغه اثر پخوا له دي چي خپور شوي وي ولوست . په لوستلو کي يي راته څرګنده شوه چي دا يو ډير مهم اثر دی . غټ اهميت يي په دي کي دې چي هغه يو رښتينی اثر دی . په هغه کي پيښي يا د پيښو هغي برخي بيان شوي چي د مؤلف په نظر رښتيا او مهمي دي . ده په دي ډول خپل اثر دباور وړ او ارزښناك ګرزولې دی . په دغه اثر کي په عمده ډول په ولسي جرګي کي يعني چيرته چي دې وکيل و دده تجارب بيان شوي ـ يعني هغي پيښي چي ده په خپله حس کړي يايي له خپلو همکارانو نه اوريدلي دي او ده دغه پيښي په احتياط سره بيان کړي دي او خپل ځان يي پکي غټ او مهم ښوولې نه دې ، سره له دي چي ده په ولسي جرګي کي ديوه مخکښ وکيل په شان رول لوبولې دې . ليکونکې په خپل اثر کي په دي باندي لنګر اچوي چي پيښي داسي بيان کړي چي لوستونکي هغسي پري پوه شي لکه چي خپله دی پري پوهيږي . دغه اثر که څه هم د مؤلف له نظره بيان شوي ، په هغه باندي نه څرخي

. ځرنګه چي ليکونکې په ولسي جرګي کي د فراه د بالابلوك وکيل و ، او څنګه چي ده هلته مخکښه رول لوبولې . او څنګه چي دی يو تعليم کړې شخص او دوطن او جهان له جرياناتو سره علاقمن و او پخوا تر هغه يي ددولتي مامور په حيث دننه په هيواد او دباندي وظايف تر سره کړي دي هغه د خپلي موضوع په اړه مهم معلومات راغونډ کړي او هغه يي په دغي مجموعي کي په روانه ، طبعــي او محاوره يــي پښتــو کــي لوستونکو ته وړاندي کړي دي . په دی ډول دغه ليکنه هر هغه پښتو لوستونکې د هغي لوستلو ته هڅولی شي چي له افغانستان ، افغانانو او دهغو له تاريخ سره علاقه لري . په دغسي روانــه پښتو کــي او ددغسي مهمي موضوع پــه اړه دا لومړنــې اثــر دې چــي مــا لــوستــې دی .

ددغه اثر بل لوی اهميت د هغه په موضوع کي يعني د قانوني پاچايي په اړه دی . د قانون د حکومت له نظره د پاچا محمد ظاهر شاه قانوني پاچايي دوره د پاچا امان الله او د پنځوسمي لسيزي لنډې دموکراسي نه وروسته ډيره مهمه دوره ده . په دغي دوري کي ولسي جرګه او په مجموع کي مقننه قوه تر اجرائيوي قوي يا حکومت نه د بنيادي لوايحو په ايستلو کي دمخه وه . ډير شمير قانوني لايحي يي وايستلي چي د ښاروالپولايحه او د سياسي ګوندونو لايحه يي د نوي نظم د لا دموکرات کيدو او اغيزمن کيدو د پاره بنيادي لايحي دي . خو پاچا د خپلو حکومتي مشاورينو په شپارښتنه د هغو له لاسليك کولو نه ډډه وکړه . دوی ويريدل چي که دغي لايحي قانوني شي ددوی قدرت به کم شي . داسي ښکاري چي پاچا او د هغه مشاورين د هغه اساسي قانون په باب چي په خپله د پاچا په نوښت ايستل شوی و ، ربښتني نه وو قانوني حکومت ته د دوی نه ربښتين توب د نورو عواملو په ډله کي يو عامل شو چي دموکراسي ورو ورو د انارشي په لور روانه شي . د انارشي د پيدا کيدو بل عمده عامل د خينو حکومتونو هغه ناتواني وه چي ويي نه شوه کولي نويو مسايلو او نويو غوښتنو ته اغيزمن ځوابونه ورکړي کومي چي د قانوني حکومت ، دموکراسي او آزادې له برکته پيداکيدلي او غير قانوني مګر پيژندل شويو فعالو ګوندونو په تيره افراطي ګوندونو هغه په زياتيدونکې ډول غځولي . له همدي امله حکومتونو تر آخره پوري کومه

هغه انارشي چي په تعليمي مؤسيسو په تيره په پوهنتون کي پيدا شوې وه بي اغيزي کولی ونه شوه . صدر اعظم محمد هاشم ميوندوال ته موقع ورکړه نه شوه چي دا او دغسي نوري اساسي کشالي هواري کړي او موسي شفيق ته هغه وخت د صدارت مقام ورکړ شو ، چي وخت له وخت نه تير و . دوی دواړو د خپل اقتدار په لنډو دورونو کي وښودله چي د غټو مسايلو د حل کولو د پاره کفايت او د هيواد او د نظام د آينده لپاره بنيادي فکرونه لري . البته پخواني پاچا بـه چي په دغي دوري کـي په دولتي چارو کـي له خپل واك نه پوره کار اخسته ، د خان د پاره دلايل ولري ، خودی چي هر څومره دلايل هم ولري له دي نه انکار نه شي کيدلې چي ده سلطنت له حکومت نه هغسي چي په اساسي قانون کي منسجل شوی و ، بيل نه کړ . حتي په خپله يي د ولسي جرگي په چارو کي ، چي په دغه اثر کي په کراتو راغلی ، لاسوهني وکړي . او په دي ډول يي خپل خان ته او د خپل سلطنت مقام ته مسؤوليتونه او شکونه متوجه کړل . زه به دلته د بيلگي په ډول د ژبو د پيشنهاد په هکله چي په ۱۹۷۱ کال کي يي د شپږوو مياشتو له پاره ولسي جرگه دوه ځايه کړي وه ، دغسي لاسوهنـي تـه اشـاره وکړم . مؤلف ليکـي (( دولت او حکومت ... د تالار وکيلان هم دي ته نه پريښودل چي خپل نصاب تکميل کړي او دغه موضوع يکجانبه په تصويب ورسوي )) خو هغه وخت چي پاچا او نوي صدراعظم غوښتل له ايران سره د هلمند د اوبو په ا ړه دولسي جرگي موافقت تر لاسه کړي د پخوا پر خلاف يي کوښښ وکړ ، د ژبو موضوع په اتفاق سره حل شي دلته نو (( پاچا او صدر اعظم دواړو دژبو د پيشنهاد مخالفو وکيلانو ته سپارښتنه وکړه چي د ولسي جرگي عمومي غونډي ته حاضر شـي . دوی تـر شپږ مياشتو اعتصاب نه وروسته غونډي ته حاضر شول .... او دغه پيشنهاد درايـو پـه اتفاق پـه تصويب ورسيدی . )) ليري ليدونکي او ربښتني واکمنان او لويان قوانين نه ماتوي په تيره چي په خپله يي ايستي وي . که واکمنان او چارواکي قوانين رعايت نه کړي نور په تيره مخالفان يي هيڅکله رعايت نه کوي . په دغسي فضا کي د قانون حکومت بيخ نه نيسي او جامعه نه مدني کيږي .

لکه چي دمخه مي وويل دغه اثر د هغه چادې چي دولسي جرگي په جرياناتو باندي

پوه ، له خپلي وظیفي سره علاقمن او په پارلماني طرز باندي معتقد و . په دي حال کي
دا طبعي ده چي ولسي جرگه به دلته په ښه رڼا کي کتل شوي وي ، یعني د هغي او د
وکیلانو په اجراأتو او فعالیتونو باندي به لنگر اچول شوي وي ، او په نیمگړو خواوو
باندي به یي څه نه وي لیکل شوي ، خو لیکونکې چي په دي اړه څه لیکي ډیر مهم دي .
د مثال په ډول دده په فعالي برخي اخستلو سره نږدي څلویښتو وکیلانو د ملي
مسایلو په برابر کي گډ دریځ ښولي وو دې لیکي ، (( دا یوه سیاسي ډله نه وه . دوی
کومه رهبري نه درلوده . د هیواد د هیڅ حزب یا ټولني سره یي اړیکي نه درلودلي .
دوی د سلطنت یا بل مقام څخه الهام نه اخستې . دوی په کوم ء واحد ء قوم یا سمت
پوري تړلي هم نه وو . بلکه دا دریځ د افغانستان د اکثرو ولایتونو د وکیلانو د مشترك
تفاهم څخه جوړ شوې و . دوی یو د بل سره تحریري یا شفاهي تعهد نه درلود . د
تصامیمو په وخت کي ددوی شمیر ثابت هم نه و په حقیقت کي دا د وکیلانو داسي
ټولنه وه چي د تصامیمو په وخت کي به یي ملي گټي په نظر کي نیولي . )) دغه حرکت
چي د وکیلانو په خپل نوښت منځ ته راغلی ، او د لیکونکي په وینا مخ په قوي کیدوو ،
څرگندوي چي ولسي جرگه د چارواکو له لاسوهنو او نورو نیمگړتیاوو سره سره په
ملي قوت باندي بدلیده او قانوني او پارلماني طرز نضج نیوه . دغه حرکت داسي ښیي
چي ملي پیوستون په پارلمان کي مخ په ټینگیدو وو . ددغه حرکت او تمایل یو مظهر
شخص مؤلف هم دی . دی وایي چي پخوا له دي چي د وکالت د گټلو د پاره د خپلي
سیمي په خلگو وگرزي هغویي دومره ښه نه پیژندل لکه چي تر هغه وروسته یي و
پیژندل . د لیکونکي دغه اعتراف څرگندوي چي یو څوك د وکیل په حیث نظر دیته چي
د هغه محل خان یا ملك یا مشر او یا تعلیمیافته متنفذ دولتي مامور وي ، د خپل محل
خلگ لا ښه پیژني او په اړتیاوو او غوښتنو او دود دستور باندي یي لا ښه پوهیږي .
ټول یا زیاتره وکیلان به هم همدغسي وي . نو د انتخابي اوږدو مبارزو په نتیجه کي
وکیل کیدل ، او بیا په شورا کي په ملي مسایلو کي له همفکره وکیلانو سره گډ دریځ
نیول هم د ملي پیوستون تمایل ښیي او هم دغسي وکیلان د ملت او حکومت تر منځ د
ښي پوهاوي او نژدي والي واسطه کیدلای شي دغه حال دا هم ښیي چي په افغانستان

كي پارلماني طرز عملي او مطلوب دی . خو چي حكومتي چارواكي ددغه تمايل له قوي كيدلو سره مرسته وكړي . كه دوی دغسي وكړي ملي پيوستون او قانوني او پارلماني طرز به ريښي وغزوي او ورو ورو به د كلتور برخه وګرزي . خو حكومتي چارواكو دغسي سلوك غوره نه كړ . په نتيجه كي ګډ دريځه وكيلان د نورو وكيلانو په شان هغسي ناكام شول لكه چي په پنځوسمي لسيزي كي وكيلان او دويښ زلميانو حركت چې هغه ته ورته ګوندي معتدل ملي حركت و ناكام شول ، او ددوی په ناكامي سره قانوني حكومت او داسي هم اعتداليون له اعتباره ولويدل او بر عكس د قانوني طرز مخالفان او افراطيان لا فعال شول . ددغو او هم داراز د نورو عواملو له امله قانوني پاچايي د محمد داود په كودتا سره نسكوره شوه او جمهوري نظام يي پر ځای ودرول شو ، چي هغه هم په دغه اثر كي په لنډ ډول بيان شوی دی .

تاسي دي تصادف ته وګورئ چي په معاصر افغانستان كي د عصري كيدو اصلاحي دورې دري ځله په قوت سره راغلي او هر يوه يي له لسو كلونو وروسته ختمه شوه . په دي تفاوت چي د امير شير علي خان دوره د انګريزانو په يرغل سره ختمه شوه ، او د پاچا امان الله خان او پاچا محمد ظاهر شاه قانوني دوره په خپله د افغانانو له خوا ختمه شوه .

په پای كي وايم چي په دغه اثر سره د قانوني پاچايي لس كلنه دوره نوره هم واضحه شوه ، له دي امله يي لوستل د ټولو هغو كسانو د پاره ضروري دي چي غواړي ددغي مهم دوري په واقعيتونو باندي ښه پوه شي . ځومره به ښه وي چي كه د مؤلف د ولسي جرګي همكاران او داسي هم د وخت د حكومتونو متصديان ، د هغه په شان خپل تجارب او معلومات را ټول او خپاره كړي . پخواني وكيل محترم محمد علم فيض زاد لا دمخه د جرګه های بزرګ ملي افغانستان په نامه يو غټ اثر كښلی ، داسي هم نوميالي ژورناليست محترم صباح الدين كشككي ددهه قانون اساسي په نامه يو كتاب ليكلي . ددغو او نورو ورو ليكونو له بركته موږ اوس هم ددغي مهمي دوري په اړه يو څه پوهيږو . خو موږ ديته اړيو چي د هغي په ټولو اړخونو باندي په تفصيل سره پوه شو ، تر څو وويلي شو چي څوك ، څنګه ، ولي او چيرته خطا وتل او قانوني پاچايي ولي

له انکشاف نه ولويده او ختمه شوه . د محترم فراهي دغه اثر په دغي برخي کي له لوستونکو سره مرسته کوي ، له دي امله يي هم د لوستلو سپارښتنه کوم .

پـا ی

## اهـــدا

---

دا کتاب خپل محترم پلار

ارواښاد دیـن محمد خـان

ته اهدا کوم

## مننه

لاندي دوستانو او زما د فا ميل غړو ددغه كتاب د تكميلولو په برخي كي زما سره مؤثري مر ستي كړي دي چي زه دلته ددوی څخه د زړه له كومي مننه كوم .

- ښاغلي غلام محي الدين زرملوال ، پوهاند ډاكټر محمد حسن كاكړ او كانديد اكاډميسن ظا هر افق دغه كتاب تر خپريدلو دمخه لوستی دی او ماته يي ډيري ښي مشوري راكړي دي .

- د ډاكټر ضا من مومند او نورو دوستانو د كتابخانو څخه مي استفاده كړې ده .

- زما ورور عبدالواحد فراهي ، زما لور ګلالۍ فراهي د كتاب د ليكلو په ټولو مراحلو كي زما سره لازمي مرستي كړي دي .

- زما زامنو عبدالجبار فراهي ، بريالي فراهي ، زما لور توريكې فراهي او د ورجينيا د سنترويل د عامه كتابخاني غړي Eric Timpson د كمپيوتر او د كتاب د عكسونو په برخي كي زماسره مرسته كړي ده .

فــراهـــي

# د مطالبو فهرست


| عنوان | مخ |
|---|---|
| سریزه | ۱ |
| یادونه | ٦ |
| لومړۍ برخه | |
| لومړی فصل | |
| الف ـ هغه مسایل چي په شلمي پیړۍ کي د افغانستان په برخه وو | ۱٤ |
| ۱ ـ هغه سیمي چي د افغانستان څخه بیلي شوي دي | ۱٥ |
| ۲ ـ دډیورنډ د کرښي موافقتنامه | ۲۲ |
| ۳ ـ افغانانو دډیورنډ کرښه نه ده منلي | ۲٦ |
| ٤ ـ د نړۍ د هیوادونو سره د افغانستان سیاسي منا سبات | ۳۰ |
| ٥ ـ د پښتونستان موضوع | ۳٤ |
| ۶ ـ د نظا مي اتحادیو په وجه افغانستان ترنور فشار لاندي راغی | ٤۳ |
| ۷ ـ د عدم انسلاك نهضت | ٤٥ |
| دوهم فصل | |
| ب ـ د محمد داود خان د صدارت دوره | ٥۱ |
| ۱ ـ د محمد داود خان حکومت | ٥۲ |
| ۲ ـ دصدارت څخه د محمد داود خان استعفا | ٦۱ |
| ۳ ـ د محمد داود خان تر استعفا وروسته د پاچا سره دده مناسبات | ٦٤ |
| دوهمه برخه | |
| دریم فصل | |
| ج ـ ديموکراسي دوره | ٦۹ |
| ۱ ـ دديموکراسي دوري پیل | ۷۰ |
| ۲ ـ اسا سي قانون | ۷۰ |

٣ ـ د تسوید کمیټي افغاني لوي جرگي ته تغییر ورکړی دی ٧٢

| عنوان | مخ |
|---|---|
| ٤ ـ مطبوعات | ٧٦ |
| ٥ ـ سیا سي گوندونه | ٧٩ |
| ۶ ـ د ډاکټر محمد یوسف حکومت | ٨٧ |
| ٧ ـ د عقرب ددریمي پیښه | ٩١ |
| ٨ ـ د محمد هاشم میوندوال حکومت | ٩٢ |
| ٩ ـ د نور احمد اعتمادي حکومت | ٩٨ |
| ١٠ ـ د پل خشتي په مسجد کي ددیني علماو غونډي | ١٠٢ |
| ١١ ـ ډاکټر عبدالظا هر د یوه عبوري حکومت مشر و | ١٠٥ |
| ١٢ ـ محمد موسي شفیق څنگه صدر اعظم سو ؟ | ١٠٩ |
| ١٣ ـ ډاکټر عبدالصمد حا مد ولي صدر اعظم نه سو ؟ | ١١٥ |
| ١٤ ـ د محمد موسي شفیق حکومت | ١١٧ |
| ١٥ ـ د محمد موسي شفیق د حکومت اجراآت | ١٢١ |
| ١٦ ـ دیموکراسي دورې ته یوه کتنه | ١٢٤ |

دریمه برخه

څلورم فصل

| عنوان | مخ |
|---|---|
| د ـ تقنینیه | ١٣٢ |
| ١ ـ ددیموکراسي دوري شورا | ١٣٣ |
| ٢ ـ دوولسمه تقنیني دوره | ١٣٤ |
| ٣ ـ د دیارلسمي تقنیني دوري ولسي جرگه | ١٣٧ |
| ٤ ـ زه څرنگه وکیل سوم | ١٤٠ |
| ٥ ـ د پاچا سره د وکیلانو دوي کتني | ١٤٤ |
| ۶ ـ د وکیلانو گډ دریځ | ١٤٧ |

| | |
|---|---|
| ۷ ـ د نور احمد اعتمادي سره کتنه | ۱ ۵۱ |
| ۸ ـ د ولسي جرگي اداري هیأت | ۱ ۵۳ |

| عنوان | مخ |
|---|---|
| ۹ ـ د صنعتي بانك د قانون سره د وکیلانو مخالفت | ۱۵۵ |
| ۱ ۰ ـ حکومت د احزابو د قانون سره مخالف و | ۱ ٦۱ |
| ۱ ۱ ـ حکومت د وکیلانو د مصونیت حدود ټا کل | ۱٦۳ |
| ۱ ۲ ـ د سر آهنگ یوه خبره | ۱٦۵ |
| ۱ ۳ ـ د اطلاعاتو او کلتور وزیر ته د نه اعتماد رایه | ۱٦۷ |
| ٤ ۱ ـ د نور احمد اعتمادي حکومت ته د نه اعتماد رایه | ۱٦۹ |
| ۵ ۱ ـ د ډاکټر عبدالظاهر سره د وکیلانو کتنه | ۱۷۰ |
| ۶ ۱ ـ زما پارلماني وینا | ۱۷۲ |
| ۱ ۷ ـ د محمد موسي شفیق یوه ټوکه | ۱۷۵ |
| ۸ ۱ ـ د معا رف او عالي تحصیلاتو قانون | ۱ ۷ ۷ |
| ۱ ۹ ـ حکومت د وکیلانو په بدنا مولو کي لاس درلود | ۱ ۸۰ |
| ۲ ۰ ـ وکیلانو ته د حج سهمیي | ۱۸٤ |
| ۲ ۱ ـ د ژبو مسأله پر ولسي جرگي تحمیل سوی وه | ۱۸۵ |
| ۲ ۲ ـ د وچ کالي په وخت کي ولسي جرگي نصاب نه درلود | ۱ ۹٤ |
| ۲ ۳ ـ د محمد داود خان سره کتنه | ۱۹٦ |
| ٤ ۲ ـ حکومت د وکیلانو په حاضریدلو خوشحاله نه و | ۱۹۸ |
| ۵ ۲ ـ د ولسي جرگي په ارتباط یوه ټوکه | ۲۰۰ |
| ۶ ۲ ـ د سپین ږرو جلبیانو موضوع | ۲۰۲ |
| ۲ ۷ ـ د محمد موسي شفیق سره کتنه | ۲۰٤ |
| ۲ ۸ ـ د سیستان د سیمي او د هلمند د اوبو تاریخي سوابق | ۲ ۰ ۷ |
| ۲ ۹ ـ د هلمند د اوبو معاهده په ولسي جرگي کي | ۲۱۰ |

| | |
|---|---|
| ۳۰ ـ زما وینا | ۲۱۳ |
| ۳۱ ـ د هلمند داوبو د معا هدي په باب ځو خبري | ۲۱٦ |
| ۳۲ ـ د هلمند د اوبو د معاهدي په هکله د میوندوال وینا | ۲۱۷ |


څلورمه برخه


| عنوان | مخ |
|---|---|
| پنځم فصل | |
| ۵ ـ د جمهوریت دوره | ۲۲۰ |
| ۱ ـ د محمد داود خان کودتا | ۲۲۱ |
| ۲ ـ د شورا منحل کیدل | ۲۲۵ |
| ۳ ـ پاچا ژر استعفا وکړه | ۲۲۵ |
| ٤ ـ آیا سلطنتي کورني د کودتا کونکوو په هویت خبر وو ؟ | ۲۲۷ |
| ۵ ـ مرکزي کمیټه | ۲۲۸ |
| ۶ ـ د جمهوري نظام مؤثر اشخا ص | ۲۳۱ |
| ۷ ـ د محمد هاشم میوندوال د کودتا اتهام | ۲۳٦ |
| ۸ ـ د محمد ها شم میوندوال په باب ځو نوري خبري | ۲۳۹ |
| ۹ ـ د جمهوري دولت اصلاحي پروگرام | ۲٤۲ |
| ۱۰ ـ اسا سي قانون | ۲٤٤ |
| ۱۱ ـ لویه جرگه | ۲٤۵ |
| ۱۲ ـ د ملي انقلاب گوند | ۲٤٦ |
| ۱۳ ـ په ایران کي افغاني کارگران | ۲۵۰ |
| ۱٤ ـ پر جمهوري نظام ولي کودتا وسوه ؟ | ۲۵۲ |
| ۱۵ ـ کورنۍ ستونزي | ۲۵۳ |
| ۱۶ ـ د ایران سره د افغانستان منا سبات | ۲۵۵ |
| ۱۷ ـ د محمد داودخان او برژنیف لفظي ټکر | ۲٦۰ |

١٨ ـ د عدم انسلاك د نهضت څخه د كيوبا د ايستلو پيشنهاد ٢٦٤
١٩ ـ د پا كستان سره د افغانستان مناسبات ٢٦٧
د پای خبري ٢٧٠

ضميمي

| عنوان | مخ |
|---|---|
| ١ ـ مهمي نيټي | ٢٧٨ |
| ٢ ـ ددیارلسمي تقنيني دوري منتخب وكيلان | ٢٨٥ |
| ٣ ـ د گړ دريځ وكيلان | ٢٩٤ |
| ٤ ـ ددیارلسمي تقنيني دوري سناتوران | ٢٩٥ |
| ٥ ـ د ډيورنډ د موافقتنامي انگريزي متن | ٢٩٧ |
| ٦ ـ دډيورنډ د موافقتنامي ژباړه | ٣٠٠ |
| ٧ ـ مأخذونه په پښتو او دري | ٣٠٣ |
| ٨ ـ د عكسونو او نورو اسنادو پيژندنه | ٣٠٤ |
| ٩ ـ مأخذونه په انگريزي | ٣٠٦ |
| ١٠ ـ تر لومړي چاپ وروسته ځيني څرگندوني | ٣٠٧ |

بسم الله الرحمن الحیم

## سریزه

زه د ډیر وخت څخه په دې فکر کې وم که ما ته یو وخت میسر سي چې زه د خپلو سترګو لیدلي حالات د مخه تر هغه چې د ذهن او حافظې په ذهول اخته سم د کا غذ پر مخ ولیکم ۰ ولي زه په دې نه پوهیدلم چې د حالاتو دغه لیکنه د کوم ځای څخه پیل کړم .

ډیر خلګ د خپلو سترګو لیدلي حالات د خپلو ځا طراتو تر عنوان لاندي د وړکتوب د مرحلې څخه پیل کوي خو ما دا کار په دي دلیل و نه کولای سو چي زه د وړکتوب څخه داسي خاطرات نه لرم چې نورو ته یي د لوستلو له پاره وړا ندي کړم په دي ارتباط صرف دومره لیکلای سم چي زه د فراه د نورزو د قوم په یوي مخورې او مړي کورنې کي زیږیدلی او لوی شوی یم . تر لومړنیو زده کړو وروسته مي په خپل لګښت په کابل کي د حبیبي لیسه او د حقوقو پوهنځی لوستی دی ، تر تحصیل وروسته مي د خارجه چارو په وزارت کي د سیاسي مدیر ، دایران په مشهد کي جنرال قونسل او په واشنګتن کي دافغاني شارژدافیر په توګه کار کړی دی، د۱۹٦۹ کال څخه بیا تر ۱۹۷۳ کال پوري د دیارلسمي تقنیني دوري په ولسي جرګي کي وکیل وم او په ۱۹۸۸ کال کي دیوه کال له پاره د راستنیدونکو چارو وزیر هم وم ۰

د سپه سالار شاه محمود خان د صدارت د دورې دیمو کراسي ، د محصلینو اتحادیه او د اوومي دوری شورا زما په یاد نه دي چي پر هغو باندي څه مطا لب و لیکم ما خپله لیکنه د ۱۹۵۳ کال د محمد داود خان د صدارت د وخت څخه پیل کړې ده چي په دغه کال کي ما د حبیبي د لیسي په اتم ټولګي کي زده کړه کوله۰ ولي په حقیقت کي د دیمو کراسي او جمهوریت دوري د دي کتاب اصلي موضوع تشکیلوي ۰ څوک چي د افغانستان د دیموکراسي او جمهوریت پر دغه پنځلس کلن

سياسي تاريخ باندي ليكنه كوي ، دې مجبور دې چي د محمد داود خان د صدارت دوره هم تشريح كړي ، په دي دليل چي د دغو دواړو دوروو ريښي د محمد داود خان د صدارت په دوري كي ښخي شوي دې ٠

د دغــي ليكنــي پــه سر كــي ځنــي هـغـه مطالب چــي د افغانستان سرنوشت په هغــو پــوري تړلـي دی لکه د پـړـورنــې كـربـښـه ، د پښتـونستــان مـوضــوع د عـدم انســلاك نـهضت او داســي نـور مطـالـب پــه ډيـر اخـتصـار ســره ليـكل ســوي دي .

ددغه كتاب پيل د محمد داود خان د صدارت دوره او پاى يي د محمد داود خان د جمهوريت دوره ده ، چي دغو دواړو مرحلو ته د محمد داود خان د حكومت كولو دوري ويل كيداى سي ٠

د محمد داود خان دصدارت د دوري كارونه چي د افغانانو د ملي هيلو سره يي مطابقت درلود او په هغي دوري كي د افغانستان بين المللي حيثيت ډير لوړ سو او افغانستان د لويو ناپيلو هيوادونو په ډلي كي ودريدى . په دغي دوري كــي ډيــري خارجي مرستي افغانستان ته جذب سوي ، چي د دغو مرستو په وسيله په هيواد كي ډيري اقتصادي او صنعتي پروژي په كار ولويدلې . په هيواد كي اجتماعي نهضتونه پيل سوه ، افغانستان د پر مختيا پر لوري وړاندي ولاړ چي د ډيرو وطنوالو په نظرد دغي دورى پر مختگونو محمد داود خان د هيواد د لويو مشرانو لكه زمان شاه دراني او اعليحضرت اما ن الله خان په قطار كي ودروې ٠ ولي د محمد داود خان دوهم حكومت چي د يوي بي وختي او بي لزومي كودتا په وسيله قدرت ته ورسيدى او ډير ژر د خپلو ملگرو او نورو هيواد والو او خارجي هيوادونو مخصوصا شوروي اتحاد سره په مشكلاتو اخته سو ، چي د دغو مشكلاتو په نتيجه كي د خلق او پرچم ډلو كودتا وكړه او محمد داود خان د خپلي كورني د اوولســو غــړو ســره په شهادت ورسيدى او زموږ هيواد د لويو مصيبتونو سره مخا مخ سو ٠

د محمد داود خان د حكومت كولو د دواړو دورو په منځ كي د ديموكراسي لس كلنه دوره راځي كه څه هم په دغو لسو كلونو كــي پــه افغانستــان كــي پنځه

مختلف حکومتونه جوړ سوی او له منخه تللي دي ، ولي په حقیقت کي دغه لس کلنه دوره په هیواد کــي د محـمـد ظاهر شــاه د کار کـولـو دوره ده چــي د دغه کتاب لویــه برخه تشکیلوي . د کتاب په دغي برخي کي ډیر مطالب د دیارلسمي تقنیني دورې د ولسي جرګي پر اجراآ تو لیکل سوي دي چي په دغو پاڼو کي ولسي جرګي ته د پاچا لارښوونه په ځرګند ډول لیدله کیږي ۰

په دي کي شك نسته چي د پخواني پاچا او محمد داود خان دحکو مت کولو دوروو مثبت او منفي ټکي درلودل چي ډیرو لیکوالانو هغه څیړلي دي او ځینو لیکوالانو پر دغو دوروو باندي پنځ کتابونه لیکلي دي ، زه په خپل وار سره پر دغه پنځلسو کلونو باندي خیل مشا هدات لیکم او پــه حاضر کتاب کي یــي هیـواد والو تــه وړاندي کوم او هیله من یم چي د دوی د توجه وړ به و ګرځي ۰

دلته د دي خبري لیکل ضروري بولم چي ګران لوستونکي په دی پوه سي چي زه دواړو شخصیتونو اروانښاد محمد داود خان او محمد ظا هر شاه ته په درنه سترګه ګورم او په دی عقیده یم ( څوك چي کلي په نامه لري نو یو خوی تر نورو ښه لري ) څرنګه چي دوې دواړو د هیواد پــه ډیـري مشکلي او حسا سي تا ریخي مرحلي کي زموږ د لرغوني هیوادافغانستان رهبري پر غاړي درلوده ، نو خکه د دیموکراسي او جمهوریت د تطبیق په وخت کي ددوی څخه ځیني اشتباه ګاني سوي دي چي هغه مطالب په دغه حاضر کتاب کي څیړل شوي دي ۰

دغه کتاب چي د ۱۹٦۳ کال څخه بیا تر ۱۹۷۸ کال پوري د افغانستان پر پنځلس کلني تاریخي دوري باندي رڼا اچوي دغه لاندي خصوصیات لري :

ـ د افغانستان دغه پنځلس کلن سیاسي تاریخ چي د هیواد د ورستیو ډیرو پیښو او حوادثو منشأ ده ، تر هغو پوري چي څوك په دغو دوروو سم پوه نه سي ، زما په عقیده د افغانستان په اوسنیو غمجنو حالاتو ښه نه سي پوهیدلای .

ـ په دغو دوروو کي افغانستان د انزوا خارجي سیاست پري ایښي و او په جهاني مسایلو کي یي دآزاد قضاوت لاره غوره کړې وه .

ـ په دغو دوروو کي په افغانستان کي دیموکراسي راغلي او پــه هیواد کي سیاسي

احـزابـوډېر سريع رشـد کړی وو او يو د بل ضد خارجي مفکورو افغاني جا معي ته لاره پيدا کړي وه .

ـ د افغانستان په تاريخ کي د اول وار له پاره په دغو دورو کي په هيواد کي دوې کودتا گاني سوي دي ۰

ـ په دغه کتاب کي ما د افغانستان د ديارلسمي تقنيني دورې د ولسي جرگې هغه پيښي څېړلي دي چي تر اوسه کوم بل ليکوال پر دغو پيښو باندي څه نه دي ليکلي .

ـ کله چي ځيني گران لوستونکي په دغه کتاب کي د ديارلسمي تقنيني دورې د ولسي جرگې برخه لولي دوی به حتما دا تصور وکړي چي ما د دغي دورې د وکيلانو دفاع کړې ده ، ولي چي د دغي دورې وکيلان په افغاني جامعي کي په قاچاقبرې او رشوت خورې مشهوره سوي وو ، او ځينو افغانانو به ويل چي وکيلان خپلو ملي مسؤوليتونو ته توجه نه کوي او د دوی مجلس ته د نه حاضريدلو په وجه به ولسي جرگي نصاب نه درلود ، ولي زه په اطمينان سره دا ليکم چي د ولسي جرگي د ټولو وکيلانو په برخه کي د با زار او کوڅو پورتـه اتهامات حقيقت نـه لري ، مـا د ديارلسمي تقنيني دورې د ولسي جرگي په ارتباط ډېر مطالب په دغه کتاب کي څېړلي دي او زه هيله کوم چي هغه مطالب په پوڅه دقت سره ولوستل سي .

ته شا هد د ښو او بدو د جهان يي
څه چي گوري که يي نه وايي سزا سته ( ۱ )

ـ ما په دغي ليکني کي تر خپله وسه کوښښ کړې دې چي د هيواد د پيښو دغي دوري په ډيري بي طرفي او پوره امانت دارې سره و څېړم ۰

ـ په دغه کتاب کي نه چا ته بد ويل سوي دي او نه هم د چا بي ځايه ستاينه سوي ده ، هغو وطنوالو چي د دغو دوروو په پيښو کي برخه درلوده د دوی نومونه په ډيري امانت دارې سره ذکر سوي دي ۰

دلته دامطلب د يادولو وړ بولم چي په دغو پنځلسو کلونو کـي د افغانستان په حکومت او شورا کي ډيري پيښي تيري سوي دي چي پر هغو باندي څو کتابونه ليکل کيدای سي ، ولي دلته ما ډيري هغه پيښي را اخستي دي چي زما په مخ کي تيري سوي

دي او يا زه د هغو په واقعيت خبر سوئ وم ، نو که په دغو پاڼو کي ( زما ) کلمه ډيره راغلي وي ، هيله من يم چي هغه زما خود خواهي يا خود ستايي تعبير نه کړي ، بلکه هغه د يوه راوي او عيني شاهد خاطرات و بولئ چي د هيواد د سياسي تاريخ پر يوي حساسي مرحلي باندي يي دخپلو سترگو ليدلي حالات دلته ثبت او وړاندي کړي دي دلته دامطلب هم د يادولو وړ بولم چي دغه کتاب څکه په طبعي ، رواني او محاوره يي پښتو ليکل سوې دې چي زه نه غواړم چي په خپلي ليکني کي داسي کلمات استعمال کړم چي عام لوستونکي په هغو ونه پوهيږي . بې ځايه به نه وي که په دغه ارتباط دلته خپله يوه مشاهده وليکم :

د افغانستان د خارجه چارو وزارت ، افغاني سفارتونو او سياسي نماينده گيو ته دوه قسمه خپروني ليږلي چي يوه عادي او بله محرم يا سري خپرونه وه . دديموکراسي دورې په وروستيو کلونو کي د خارجه چارو وزارت د محرم د کلمي پر ځای د بهير کلمه انتخاب کړې وه . څرنگه چي د خارجه وزارت ډير مامورين ددغي کلمي په معنا نه پوهيدل ، ما د خارجه وزارت د معين سيد وحيد عبدالله په غوښتنه د پښتو ټولني د رئيس ارواښاد محمد صديق روهي څخه پوښتنه وکړه چي آيا د بهير کلمه د محرم خپروني له پاره مناسبه کلمه ده او که يه ؟ ده زما په جواب کي وويل چې بهير يو محلي لغات دې چي په هيڅ صورت د محرم په معنا نه استعماليږي . تر دغي مشوري وروسته د خارجه چارو وزارت د بهير کلمه د محرم خپروني څخه حذف کړه . د کتاب د دريم چاپ لوی خصوصيت دادی چي ډير نوي مطالب چي ما وروسته پيدا کړي او د کتاب په بيلو برخو کي مي پر پخوانيو مطالبو علاوه کړي دي ، چي د کتاب په پيل کي نوي څرگندوني ، د هلمند د اوبو د معاهدي په ارتباط د محمد هاشم ميوندوال وينا ، د شورا تاريخچه ، د ولسي جرگي په باب نوري خبري او د محمد داود خان د کورنی د شهيدانو نمونه د ياد شوو مهمو مطالبو څخه دي .

په پای کي زه د ټولو لوستونکو او مخصوصا د ديارلسمي تقنيني دورې د ولسي جرگي د وکيلانو څخه چي دا ليکنه لولي صميمانه هيله کوم چي که د پيښو په تفصيل کي څه لږوالي يا زياتوالې د دوی په فکر راغلي وي ، زه خوشحاليږم چي که ما په هغو

ټکو خبر کړي . په درناوي     عبدالغفار فراهي

ورجينيا ــ ١مريکا ـ د ٢٠٠١ کال د جنوري مياشت

## يادونه

الف : ځني افغانان په دي عقيده دي چې که محمد داود خان د کودتا لاره نه وای پرانستلي او په افغانستان کي يي نظامي کودتا نه وای کړې نو د خلق او پر چم ډلو به د ثور په کودتا لاس نه وای پوري کړي او زموږ هيواد به په اوسنيو مصيبتونو نه وای اخته سوې . ولي يو لړنور افغانان په دي عقيده دي چې که د ديموکراسي د لسو کلو نو په دورې کي د اساسي قانون متمم قوانين لکه د سياسي احزابو ، اجتماعاتو او داسي نور قوانين نافذ سوې وای او د افراطي چپو او ښيو گوندونو پر ځای د معتدلو ملي گوندونو د رشد او تکامل له پاره زمينه برابره سوې وای نو بيا به محمد داود خان ته هم گرانه وای چي په افغانستان کي يي کودتا کړې وای .

گران لوستونکي په دي پوهيږي چې په ١٩٧٩ کال کي زموږ په گا ونډي هيواد، ايران کي آيت الله خميني قدرت ته ورسيد او تر هغه يو کال د مخه په ١٩٧٨ کال کي په افغانستان کي خلق او پر چم کودتا کړي وه ، چې دا دواړي پيښي تصادفي نه وې بلکه دواړو پيښو عمده تاريخي عوامل درلودل چې په افغانستان او ايران کي د دغو تاريخي عواملو ځو ټکي دلته د مثال په توگه وړاندي کيږي :

١ ـ په ايران کي : کله چې د ١٩٥١ کال د می په مياشت کي ډاکټر محمد اقبال مصدق د متحدي جبهي او د تودي د حزب په مرسته په ايران کي صدر اعظم سو ده د خپل دوو کالونو او دوو مياشتو د صدارت په دوران کي د ايران د تيلو صنعت ملي کړ او د پارلمان له لاري ځخه يي د ايران د پاچا محمد رضا پهلوي صلاحيتونه ډير محدود کړه ، ځو په آخر کي د ايران پاچا مجبور سو چي د ايران سلطنت پريږدي او بغداد ته ولاړ سي . ولې ځو ورځي وروسته د ١٩٥٣ کال دآگست د مياشتي پر ١٩ نيټي جنرال زاهدي د CIA په رهبري د ايران د پاچا په گټه کودتا وکړه د دغي

کودتا په نتیجه کي د ایران پاچا بیرته قدرت ته ورسید ( ۲ )

په ایران کي دغه کودتا د CIA د نماینده Kermit Rooseveilt له خوا رهبري کیدله ، د دغي کودتا فلم همیشه د امریکا په تلویزیون کي ښوول کیږي ۰ په دغه تلویزیوني فلم کي ( کرمیت روزولت ) وایي (( ما د کرج د کوچني ښار څخه په لاریو کي ډیر خلگ چي د ایران د پاچا په گټه یې شعارونه ورکول د تهران ښار ته را انتقال کړه او وروسته مي په نظامي عملیاتو لاس پوري کړ ۰ ))

دلته دا مطلب د لیکلو وړ بولم چي د سي .آی .اې .دغه نماینده ، پخوا په جنوبي امریکا کي څو نوري کودتا گاني هم رهبري کړي وي .

د ایران پاچا د خپل سلطنت په پاته کلونو کي په ډیر شدت سره د چپو قوتونو په ترټلو اوکمزوره کولو اخته و ، چې د ایران د پاچا د دغه عمل په نتیجه کي د تودې د گوند ډیر غړي د ایران څخه و وتل او ډیر نور یې و وژل سوه او ځیني نور یې بندیان سوه چي په پای کي د تودې گوند پر ډیرو کوچنیو ډلو و ویشل سو . ( ۳ )

د ایران پاچا د ایران په جا معي کي د تودې د گوند تصفي او محوه کولو ته دومره متوجه و چي دوه ویشت کاله وروستــه کله چي په ۱ ۹ ۷ ۵ کال کي ده د رستا خیز د حزب د جوړولو اقدام وکړ ، ده په هغه محفل کي چي د رستاخیز د حزب د رسمي تاسیس په ارتباط جوړ شوی و داسي و ویل (( د تودې ډله بي وطنه ده او تردي وروسته په ایران کي د دوی ځای به محبس وي او یا به پاسپورتونه اخلي او د ایران څخه به وزي ))

د چپو عناصرو او مخصوصا د تودې د حزب د غړو په مقابل کي د ایران د پاچا د دغه شدید عمل په نتیجه کي د ایران ځیني چپ او دیمو کرات عناصر مجبور سوه چي ږیري پریږدي او دیني مدرسو ته مخه کړي او د آیت الله تالقاني او نورو مذهبي مشرانو سره ملگري سي ۰ د ایرا ن په مطبوعاتو کي به دغو اشخاصو ته اسلامي ما ر کسیستان ویل کیدل،

د ایران د پا چا د دغه یو اړخیز عمل په نتیجه کي د ایران مذهبي حلقو د ایران په تحصیل یا فته او منورو قشرونو کي داسي نفوذ وکړ څو چي د ایران سلطنت ته یي

ډیر لوی خطر متوجه کړ ۰ د مثال په توګه ، د ایران په ډیرو ښارونو کي د پوهنتونونو او ښوونځیو خوانو شاګردانو د رستاخیز د حزب او د ایران د پا چا د سپین انقلاب او په ایراني جامعي کي د فساد په مقابل کي پراخه مبارزه پیل کړه ۰ ایراني خوانانو په سر کي پر سینما ګانو ، بانکونو او د شراب خرڅولو پر مغازو باندي بریدونه کول

او ددغو خایونو ښیښي به یي په کا ږوو ویشتلي . د مشهد په ښار کي افغاني جنرال قونسلګرۍ ته مخا مخ د شراب خر څولو یوه مغازه وه چي په ۱۹۷۷ کال کي د یوي ډلي خوانو شاګر دانو له خوا دغه مغازه په ډبرو و ویشتله سوه چي دمغازي ټولي ښیښي یي ور ماتي کړي او ډیر ژر دغه شاګر دان دامنیتي قوو له خوا مخا صره سول څو شاګردان و نیول سوه اما ډیر شا ګر دان د افغاني جنرال قونسلګرۍ د باغچي د لاري څخه په نورو کو څو کي خپاره سوه . په ۱۹۷۸ کال کي د عامو خلګو او شاګردانو مظا هرو په ایران کي شدت پیدا کړ او شپا ړس میاشتي وروسته د ایران پاچا مجبور سو چي د ایران خاوره پریږدي او مصرته ولاړ سي . د ۱۹۷۹ کال د فبروري په میاشت کي آیت الله خمیني قدرت ته ورسید . ( ٤ )

۲ ـ په افغانستان کي : زموږ په هیواد افغانستان کي د ۱۹۱۹ کال د فبروري د میاشتي پر ۲۲ نیټي اعلیحضرت امان الله خان د افغانستان پاچا سو چي د ۱۹۲۹ کال د جنوري د میاشتي تر څورلسمي نیټي پوري یي په افغانسان کي سلطنت و کړ د ده د سلطنت په وخت کي وروسته تر هغه چي افغانستان خپل استقلال واخست ، ده په هیواد کي د معارفو ، مطبو عاتو ، عمراني چارو او د افغاني جامعي په نورو چارو کي اصلاحي ریفور مونه پیل کړه ، د ده د اصلاحاتو لمړي مرحله چي د ۱۹۱۹ کال څخه بیا تر ۱۹۲۳ کال پــوري رسیـږي ډیـره بـریالـۍ وه ، ولې د ده د اصلاحي پروګرامونو په دوهمي مرحلي کي د خارجي هیوادونو په لمسون ، ارتجاعي قوتونو په هیواد کي عکس العملونه ایجاد کړه څو جي وروسته خبره دي ځای ته ورسیده چي حبیب الله کلکاني د خپلو درېو سوو ملګرو په مرسته د هیواد پای تخت ونیوی او اعلیحضرت امان الله خان د کند هار د لاري څخه د افغانستان پریښوولو ته مجبور

سو . د دغي پيښي په نتيجه کي تر ډيره وخته په افغانستان کي تنويري چاري او اجتماعي نهضتونه خا موشه سوه .

د اعيحضرت محمد ظاهر شاه د سلطنت په دور کي بيرته په هيواد کي تنويري او اجتماعي چارو ته توجه وسوه ولې د دغو پروګرامونو په تطبيق کي ډيري اشتباهګاني سوي دي ، د مثال په توګه :

ـ د ۱۹۵۹ کال د آ ګست د مياشتي پريو ديرشمي نيټي د محمد داود خان د صدارت په وخت کي د ښځو مخ لڅې اعلان سو چي په کندهار کي د دغه اجتماعي نهضت په مقابل کي قيام وسو ، چي د هغه وخت حکومت د برچي په زور د کندهار د خلګو د دغه مخالفت مخه ونيوله .

ـ د افغانستان د ديمو کراسۍ په دوري کي په ۱۹٦۸ کال کي د اصلاح په ورځ پاڼي کي د ( مرد نه زنه ) تر عنوان لاندي يو کاريکاتور خپور سو چي د ډيرو افغانانو په فکر د دغه کاريکا تور هدف حضرت پيغمبر ء ص ء ته اشاره وه .

ـ په همدغه کال کي د پر چم په جريدي کي پر لينين درود ويل سوې و ،

د پورته ناوړه اعمالو په نتيجه کي په ۱۹۷۰ کال کي د هيواد د ډيرو برخو علماوو د درو څلويښتو ورځو له پاره د پل خشتي په مسجد کي را غونډ سوي وو چي په هيواد کي د چپو افکارو او د دولت د نشراتي پاليسي پر ضد يي خطابي ورکولي .

د افغانستان په دولتي او حکومتي حلقو کي د ديني علماوو دغه عمل د امان الله خان د وخت د حالت سره مشابه بلل کيدی . دوی د ديني علماوو دغه حرکت يو ارتجاعي عمل او هغه يي د خارجي هيوادونو په لمسون با له .

د افغانستان دولت او حکومت د ديني علماوو غوښتني و نه منلي او د دوی پر ضد يي د ډير شدت څخه کار واخستی او د شپي له خوا څخه يي ټول علما په زوره د مسجد څخه و ايستل او دوی يي په عسکري لاريو کي واچول او مربوطه ولايتونو ته يي ورسول او په ولاياتو کي يي د ټولو څخه داسي تعهدنامي واخستي چي ، وروسته تر دي به دوی په داسي اجتماعاتو کي برخه نه اخلي .

د ديني علماو پر ضد د حکومت د دغه شديد عمل څخه د هيواد چپو احزابو

ډیره ګټه پورته کړه ، څرنګه چي د هیواد چپو احزابو د دیمو کراسۍ په دورۍ کي ډیر رشد کړۍ و او د پوهنتون او لیسو په شا ګردانو کي یي ډیر پلویان درلودل ، نو ډیر ژر دغه چپ احزاب د افغانستان اردو تــه متوجه سوه او پـه اردو کي یي هم ډیر ژر نفوذ وکړ چي په لږ وخت کي یعني په ۱۹۷۸ کال کي خلق او پر چم ډلو د اردو په مرسته کودتا وکړه چي د دغي کودتا په نتیجه کي افغانان یو د بل سره په جنګ اخته سوه ، او زموږ هیواد د لوي تبا هۍ سره مخا مخ سو .

پورته مثالونه دا ثابتوي چي که د افغانستان او ایران دولتي مشرانو په افغانستان او ایران کي د دواړو هیوادونو د عیني شرایطو سره سم یو متوازن ملي سیاست غوره کړي وای ، د دي امکان موجود و چي په دغو دواړو هیوادونو کي به د کيڼ او ښۍ اړخ د تحولاتو مخه نیوله سوۍ وای او دواړو هیوادونو به سالمه وده کړي وای .

که افراط دي که تفریط یو د بل سر خوري

هــر یو بل ته قبر کن د بل اجل دي ( ٥ )

ب : د تاریخ په اوږدو کي افغانستان د خپل تاریخي موقعیت په وجه همیشه د خپل شمالي او جنوبي ګاونډیانو د منافعو قرباني سوی دی . په تیرو دوو پیړیو کي د افغانستان په برخه کي د انګریزانو پالسي داوه چي روسان او بیا وروسته شورویان باید د افغانستان د لاري ددوی مستعمیري یعني هند ته داخل نه سي . نو څکه دوی د افغانستان څخه د یوي حایلي او متروکي منطقي په حیث استفاده کوله او د خپلي دغي پالسي د تحقق له پاره یي ډیري سیمي د افغانستان څخه بیلي کړي ، د دیــورنـد او ګندمك معاهدي یي پر افغانستان باندي تحمیلي کړي . تر دوهم جهاني جنګ وروسته چي زموږ په سیمو کي د انګریزانز ځای امریکایانو ونیوی ، نو پخوانی پالسی تغیر و موندی ، په سر کي د نظامي اتحادیو د لاري د افغانستان د ګاونډیانو پــه وسیله ، د شوروي اتحاد محاصره پیل سوه ، ولي د ثور د ۷ تـر کودتا وروسته یــي افغانستان د تلکي په حیث استعمال کړ او قطبي خرس یي په دغـي تـلکـي کي داسـي راشکیل کـړ چي په هغه هیواد کي مسلط سوسیالستي نظام یي د ابد له پاره د تاریخ په کندي کي واچوی . ولي په اوسنی پیړی کي غربي نړی د منځني آسیا د تیلو او ګازو سرشارو

ذخيرو ته د رسيدلو له پاره د افغانستان په شمالي گاونډيو ملكونو كي پراخي هڅي پيل كړي دي چي ددغو ذخيرو پايپ لاينونه به د افغانستنان د لاري بحر ته غزول كيږي ولي اوس هم جنگ ځپلي او بيدفاع افغانان په خپل راتلونكي هيڅ نه پوهيږي او د نامعلوم سرنوشت په انتظار كي دي ( ٦ )

ج : په ١٩٦٣ كال كي هغه وخت چي د ايران د پا چا محمد ر ضا پهلوي پـه منځگړيتوب د افغانستان او پا كستان سيا سي منا سبات بيرته عادي سوه نو په هغي افغاني ډلي كي چي د تورخم له لاري ځخه يي پيښور ته سفر وكړ زه هم شامل وم دغو دولتي ما مورينو په پيښور كي افغاني قونسلگري پرانستله ، د افغانستان او پاكستان تر منځ يي تجارتي او ترانزيتي منا سبات بيرته عادي كړه ٠

كله چي زه د اول وار له پاره په پيښور كي مقيم سوم او د صوبه سرحد ځيني سيمي مي وليدلې چي په هر كلي كي بريښناوه ، د چښلو صحي اوبه هر چا ته مهيا وې ، هلته سړكان پاخه وو او د اورگاډي پټلې د هغه ولايت هر كنج ته غزول سوي وو د كرني طريقه يي هم ډيره پر مخ تللې وه ، د هغه ولايت په ټولو سيمو كي د غلو او ميوو ډيره پريماني وه ، ډير لوى پوهنتون او نوري تعليمي مؤ سيسي د خوا ناـو د زده كړي له پاره جوړي سوي وې ، په ښا رو نو كي آزاد اخبارونه خپريدل او په مختلفو وختو نو كي د پيښور پـه ښار كي سيا سي اجتما عات كيدل چي دا ټول دپرمختگ او د تمدن نښي زما له پا ره ډيري نوى او جا لبي وې ٠

ما يوه ورځ يوه پيښوري دوست ته چي د طب ډاكټر و په حسا دت سره و ويل چي دلته ستا سئ د ژوند كولو له پاره ډير عصري وسايل برابر سوي دي ولې زموږ په هيواد كي ډير كار نه دې سوي ، نو په دغه وجه موږ د ژوند كولو ډير وسايل په لاس كي نه لرو .

دغه ډاكټر زما پر خبرو د تبصرې كولو په وخت كي زما ځخه داسي پو ښتنه وكره (( آيا افغانان د خپل اوسني ژوند ځخه خوښ دي او كه عصيان يي كړئ دې او په خپل هيواد كي يي بي امنيتي راوړې ده ؟ ))

ما ده ته په جواب کي و ويل چې زموږ په هيواد کي د غلو او داړه ما رانو شمير ډير لږ دې . افغانا ن د خپل هيواد هري سيمي ته په ډير اطمينان سره سفر کوي ، نارينه او ښځي خارجي سيلا نيان ، زموږ په ټول هيواد کي خپاره دي ولې د دغو بهرني اتباعو سر او مال ته څوك تاوان نه رسوي ، او حتې ميلمه پالنه يي هم کيږي ،زما تر خبرو وروسته دغه ډاکټر ما ته وويل (( ستا د خبرو څخه داسي ښکاري چي ستا سي د هيواد خلگ په خپل اوسني ژوند خوشحاله دي )) ده زياته کړه (( زه تاسو افغانانو ته يوه مشوره در کوم او هغه دا چي تا سي بايد پام وکړې چي په خپل هيواد کي بي ځايه لاسونه و نه وهئ او پريږدې چي ستا سي هيواد په کراره سره آباد سي او په راتلونکو کلونو کي به د هو سا ژوند خا وندان سئ ))

زه چي اوس د خپل هيواد او سني بده ورځ وينم ، نو ما ته هر وخت د هغه ډاکټر پورته حکيمانه مشوره را په ياد سي ، او په دي فکر کي سم چي آيا ولې موږ افغانان پخوا په دي خبره نه پو هيدلو چي په خپل هيواد کي بي ځايه لاسونه و نه وهو !

په تيرو ديرشو کلونو کي زموږ په هيواد کي هر راز لاسونه و وهل سوو ، هلته نيمگړې ديمو کراسي راغله ، وروسته له هغه د سرطان د ٢٦ او دثور د ٧ کودتاگاني و سوي ، چي د وروستي کودتا په نتيجه کي د شوروي سري لښکري زموږ په پاك هيواد ور ننوتلي او د افغا نستان خپل وا کي د منځه ولاړه ٠ د شوروي تر نظامي اشغال وروسته زموږ هيواد د شرق او غرب د نړې د لويو قوتونو د حرب ميدان وگرزيدې ، د لسو کلو نو تر جنگ وروسته ، د افغا نانو په سر ښندنه او جهاد په افغا نستان کي شوروي ما ته و خوړله او په کښته سترگو زموږ د هيواد څخه و ووت .

ولي د تا سف ځای دادې چي په افغا نستان کي يوه جهاني اشغا لگر قوت ماته وخوړله او د هغه رقيب بل جها ني قوت خپل هدف ته ورسيدې چي د شوروي تر ماتي او ټو ټې کيدلو وروسته ، د خير پر غونډی کښينا ست او د يو سيل بين حيثيت يي غوره کړ ، د جنگ خپلي افغانستان مقدرات اوس د سيمي د هيوادونو په لاس کي دي او اوس عرب او عجم زموږ په هيواد کي لاسونه وهي او د ژوند کولو هر څه يي د

افغانانو څخه وا خستل چي د شوروي اتحاد د ناروا تجاوز په نتيجه کي ، په لکونو افغانان مړه يا ټپيان سول او زموږ هيواد د خاورو سره برا بر سو ۰ په مليونونو افغانانو خپل هيواد پري ايښي دي او په پرديو هيوادونو کي يي سرونه پناه کړي دي او د خپل هيواد له پاره هيڅ نه سي کولای ۰

چا يي پلو ليدلي نه وو اوس د جمرود پر لوري څي سر تور سرونه ( ۷ )

زما په عقيده اوس موږ ټولو او مخصوصا چيز فهمو افغا نانو ته په کار دي چي په خپلو کي سره متحد سو او د پرديو هيوادونو دلاس وهني مخه و نيسو او د يوه واحد او سر لوړي افغانستان په فکر کي سو ۰

---

## ددي برخي يادداشتونه

١ ـ الفت ، گل پا چا ، د الفت مرغلري ، مخ ٢٧

٢ ـ ابرا هميان ، اروند ، ايران د دوو انقلا بو نو تر منځ ، مخ ٢٧٩

٣ ـ همدا اثر ، مخ ٢٤

٤ ـ زما مشا هدات

٥ ـ د الفت مرغلري ، مخ ٣٨٦

٦ ـ زما مشاهدات

٧ ـ د مجا هد ولس مختلفي گڼي

## لومړي برخه

## لومړی فصل

### الف : هغه مسايل چي په شلمي پيړۍ کي
### د افغانستنان په برخه شوي وو

#### ۱ ـ هغي سيمي چې د افغانستان څخه بيلي سوي دي

زموږ لرغوني هيواد افغا نستان چي د مختلفو مدنيتونو او کلتورونو لکه د منځني ختيز ، منځنی آسيا ، د هند د نيمي وچي ، ليري ختيز او د پا مير له لاري څخه د چين د سنکيانگ د ايا لت سره په ارتباط کي واقع سوی دی او ډير مهم ستراتيژيك موقعيت يي لرلی دی ، نو ځکه د تاريخ په اوږدوکي هميشه د مختلفو لښکرکښيو او فتوحاتو په وجه ، متأثر شوی هم دی ۰

د اتلسمي پيړۍ په پيل کي د افغانستان سرحد د هرات څخه تر کشميره ، او د آمو د رودڅخه تر عربي بحيري پوري رسيدی . ولې د افغا نستان اوسني سرحدات د نولسمي پيړۍ په وروستي لسيزي او يا د شلمي پيړی په پيل کي جوړ سوي دي ( ۱ )

د افغا نستان په څنگ کي انگريزانو چي د هند په نيمه وچه کي د يوه استعماري

هیواد په بڼه ، خپلي منګلي ښخي کړي وي او د هند پر طلایي مستعمري باندي تود راغلي وو او نه یي غوښتل چي بل استعماري هیواد د دوی سره په دغه ثروت کي شریك سي ٠ نو دوی د دروو خواو څخه هند ته د ننوتلو لاري تړلي وي ، د هند د شمال خوا ته د همالیا غر هم هند ته د مهاجمینو د دخول ما نع و ٠ چي په وچه کي یوازي یوه لاره د هند دمدخل په حیث په شمال لویدیز کي موجوده وه چي هغه لاره د افغانستان په لاس کي وه .

د تاریخ په اوږدو کي په استثنا د عربو او انګریزانو نور ټول د نړي مهاجمین د افغا نستان له لاري څخه ، هند ته ورننوتلي دي ٠ د بلي خوا څخه کله چي انګریزانو د ( پاني پت ) په جنګ کي د افغا نستان نظا مي قوت او په هند کي د افغانانو معنوي نفوذ ولیدی نو دوی دي نتیجي ته ورسیدل چي په را تلونکي کي په خپله افغانستان د انګریزانو د منافعو له پاره لوی خطر وي . ( ٢ )

کله چي انګریزانو په پنجاب کي د زمان شاه نظا مي حرکات او د افغانانو سره د هندیانو د مرستي تما یلات ولیدل نو د دوی حدس او ګمان په یقین بدل سو او انګریزانو خپل ټول قوت افغا نستان ته متوجه کړ ٠

په سرکي انګریزانو د افغا نستان په باره کي ( تدا فعي سیا ست ) غوره کړ او هند ته یي د افغا نستان د ورننوتلو مخه ونیوله ، و روسته د انګریزانو دا پالسي په ( تعرضي سیا ست ) واوښتله چي دوی خپل دغه وروستۍ سیا ست په مختلفو شکلونو په افغا نستان کي عملي کړی دی .

لنډه یي دا چي په افغانستان کي د انګریزانو سیا ست دا وو چي افغا نستان با ید تجزیه او ټوټي کړل سي ، افغا نان په خپلو کي په نفاق او کورني جنګ اخته سي ، او افغا نستان د انګریزانو د لاس پوځو حا کمانو تر کنترول او اداري لاندي راوستل سي ، او د ضرورت په وخت کي افغا نستان د دوی له خوا نظا مي اشغال کړل سي .

د انګریزانو اصلي هدف دا و چي افغا نستان یو کمزوره ، محتاجه او د دنیا څخه منزوي او یوه متروك هیواد په څیر و سا تل سي او په افغا نستان کي د نوي فرهنګ او تمدن د را تلولو مخه و نیوله سي ، انګریزا نو ، خپله پورتني طرحه د اتلسمي پیړۍ په

وروستي نما يي كي ( د زمان شاه دوره ) او بيا د شلمي پيړۍ تر منځنيو پوري ( د دوهم جهاني جنگ تر پا يه ) په مختلفو شكلونو په ا فغا نستان كي تطنيق كړي وه ٣

انگريزانو د افغا نستان د كمزوره كولو په غرض خپل تدا فعي سيا ست داسي پيل كړ ، دوی دخپلو نمايندگانو John Malcolm او Sir Harford Jones په وسيله ډيري نظا مي او ما لي مرستي د ايرا ن پا چا فتح علي شاه ته وړا ندي كړي. انگريزي معلمين او مهندسين يي د ايران په اردو كي و گمارل ، ايراني قاجاري دولت يي دي ته تشويق كړ چي افغاني د خرا سان ولايت ا شغال كړي ٠

د انگريزانو د دغو اقداما تو په نتيجه كي د ايران قاجاري دولت د فرا نسي د دولت سيا سي هيأت د ايران څخه و شاړه ، انگريزانو د ايران د دولت څخه وغوښتل چي د ايران د لاري څخه ، هند ته د هر اروپا يي هيواد د لښكرو مخه و نيسي ٠ ايرانيان بايد افغا ني لښكري پري نږدي چي پر هند باندي حمله وكړي ، كه چيري د افغا نستان پا چا زمان شاه پر هند باندي د حملي اراده وكړي ، بايد د ايرن قاجاري دولت د افغا نستان پر خاوري تجاوز وكړي او د خراسان ولايت و نيسي ، انگريزان د خپلي جا سوسي دستگاه په وسيله په افغا نستان كي دننه په دي بريا لي سول چي د افغا نستان دولت مات كړي او د افغا نستان پاچا له منځه يوسي ، د زمان شاه رقيب ياغي شا هزاده محمود د ايرانيانو له خوا تجهيز او افغانستان ته و ليږل سو ، د انگريزانو د دغه فعا ليت په نتيجه كي زمان شاه و وژل سو او د افغا نستان مركزي دولت د منځه ولاړ ، په افغا نستان كي سيا سي او اداري خلا ايجاد سوه ، په هيواد كي داخلي جنگونه پيل سوه او د ايران قاجاري دولت د خراسان ولايت و نيوي ، وروسته بيا انگريزانو خپله تعرضي نقشه چي د افغا نستان د تجزيي او ټوټي كولو له پاره جوړه سوی وه عملي كړه . ( ٤ )

د پنجاب مها را جا ( رنجت سنگه ) چي په ١٧٩٩ كال كي د زمان شاه له خوا د پنجاب د والي په حيث مقرر سوی و د زمان شاه تر پاچاهي وروسته چي افغانستان په كورني جگړه اخته سو ، رنجت سنگه د انگريزانو په تحريك او حمايه ، پنجاب د يوه خپلواك هيواد په حيث اعلان كړ ٠

په ۱۸۱۲ کال کي د اټك کلا ، د پنجاب سيکانو و نيوله

په ۱۸۱۸ کال کي د ملتان ولايت د سيکانو واکدارانو و نيوې

په ۱۸۱۸ کال کي د کشمير ولايت د سيکانو له خوا اشغال سو

په ۱۸۲۱ کال کي ديره غازي خان او ديره اسماعيل خان د سيکانو حکومت ونيوې .

په ۱۸۳۳ کال کي د پيښور ولايت د سيکانو د حکومت له خوا اشغال سو ۰

پورتنۍ سيمي چي د افغا نستان د خاوري برخي وي او د پنجاب مهارا جا رنجت سنگ لـه خوا نيولـي شوي وي ۰ پـه ۱۸۳۲ کال کـي د هغه تـړون له مخـي چي په

شکار پور کي د افغا نستان د مخلوع پاچا شاه شجاع او رنجت سنگه تر منځ عقد شوې و ، دغي سيمي په پنجاب پوري و تړلي شوي ۰

پـه ۱۸٤۳ کال کـي د سند ولايت د افغا نستان څخه جـلا او د انگريزانـو حکومت ونـيـوې ۰

دبلوچستان ولايت د ۱۸٥٤ کال څخه بيا تر ۱۸۷٦ کال پـوري په تدريج سره انگريزانو اشغال کړ۰

په ۱۸۸٤ کال کي د ( مرو ) ولايت د تزاري روس له خوا و نيول سو ۰

په ۱۸۷۹ کال د مي د مياشتي پر ۲٦ د گندمك د معاهدي مطابق د ( فوشنج ) څخه تر ( کوړك ) پوري ، ( کرم ) او ( لنډې کوتل ) د امير محمد يعقوب خان له خوا انگريزانو ته ور کړل سول۰

په ۱۸۸٥ کال کي د ( پنجده ) سيمه تزاري روسيي و نيوله .

په ۱۸۷۲کال کي د سيستان د ولايت يوه برخه د انگريزي حکم له خوا د ايران دولت ته ورکړه سوه ( ٥ )

په اتلسمي پيړۍ کي هغه دولت چي په افغا نستان کي د ابداليانو د کورنۍ له خوا جوړ سوې و ، او دغه دولت خپله خارجي پالسي د افغا نستان د طبعي حدودو مطابق تثبيته کري وه ، ولي په نولسمي پيړې کي چي ابدالي دولت د منځه ولاړ او د هغه پر ځای د محمد زوو حکومت منځ ته راغي ، د هيواد ساحه د هري خوا څخه مخصوصا

د ختيز او جنوب له خوا غوځه سوه تر څو چي اوسنی شکل يي اختيار کړ او افغانستان د سند د رود د بحري غاړي څخه پر شا و تمبول شو او په وچه کي يو محصور هيواد سو . ( ۶ )

---

لومړني تبصره : د افغا نستان جنوبي او جنوب شرقي سرحد چي ( ۱۵۱۰ ) ميله دې په ۱۸۹۳ کال کي د ډيورنډ د کرښي په وسيله تثبيت شو

د افغا نستان شما لي سرحد چي ۱٤۸۱ ميله کيږي ، لويه برخه يي په ۱۸۹٦کال کي د پخواني روسي ددولت سره تثبيت شو ٠

د افغا نستان غربي سرحد چې ( ۵۵۰) ميله کيږي ، په ۱۹۳۵ کال کي د ايران د دولت سره تثبيت سوې دې ٠

د افغا نستان په شمال شرق کي د واخان په سيمي کي د افغا نستان سرحد چي (۵۰ ) ميله دې په ۱۹٦٤ کال کي د چين د هيواد سره تثبيت شو ٠

دوهمه تبصره : روسانو د ۱۸۸۵ کال د مارچ د مياشتي پر ۳۰ نيټي په يوي خونړۍ جگړي کي چي په هغي کي ( ۸۰۰ ) افغانان په شهادت ورسيدل ، د پنجده علاقه و نيوله ٠ د ډيورنډ د بيو گرافي کتاب دغه پيښه داسي تشريح کوي ٠

روسان په ۱۸۸٤ کال کي د ( مرو ) په اشغال سره د افغا نستان سرحد ته نور هم نژدي سول ، کله چي روسانو د مرکزي آسيا ريلوي اعمار کړه او بخارا ، سمرقند او تاشکند د دغي امپراتورۍ يوه برخه سوه نو انگريزان دي نتيجي ته ورسيدل چي اوس روسان په ډيري آسا نۍ سره د مخکي او د بحر له لاري څخه ډير نظا مي قطعات د افغا نستان شمال غربي سرحد ته راوړلای سي ، او برتانوي هند تر لوی خطر لاندي راځي ، نو انگريزانو روسانو ته پيشنهاد وکړ چي بايد د افغا نستان شمال غربي سرحد چي ( ۲۲٦ ) ميله کيږي ، بيا د سره څخه تثبيت کړل سي ، چي د دغه کار له پاره د انگريزانو له خوا د ميجر جنرال Sir Peter Lamsden په مشري يو لوې او مجهز هيأت د کوټي ، نوشکي ، هلمند او فراه له لاري څخه د ۱۸۸٤ کال د نومبر پــه مياشت کي د هرات د ولايت د کوهسان ولسوالۍ ته ورسيدې ٠ او د روسانو له

خوا جنرال Zeienoi د هغه هيواد د هيات  مشري پر غاړه درلودله ، انګريزانو او روسانو پخوا  دا منلي وه چي په دغي سرحدي سيمي کي  هره ساحه چي د هر هيواد په لاس کي وي ، هغه ساحه به د هغه هيواد د خاوري يوه برخه وي ۰ چي د پنجده علاقه د افغانستان په تصرف کي وه  او د انګريزي هيات مشر لمزدن  پخپله پنجده ته ورغلي و او ده داموضوع تا ئيد کړي وه ، په دغي منطقي کي د افغا نانو او روسانو ډير نظامي قوتونه ځاى پر ځاى سوي وو او دواړو خواو پر دغي منطقي با ندي جنګ ته آماده ګي نيوله ، د افغا نانو نظا مي قوت چي ( ۸۰۰ ) سپاره  او ( ۱۲۰۰ ) پلي عسکر وو په دي  لاندي ډول د جنګ په محاذ کي ځاى پر ځاى سوي وو ۰

الف : د جبهي په کيڼي خوا کي د جنرال غوث الدين خان تر قو ماندي لاندي د هرات د سپرو قوه وه چي يو توپ يي هم درلود ۰

ب : د جبهي په منځ کي د نا يب سالار عبد الرحيم په مشرۍ  د پيا ده عسکرو قوه وه .

ج  : د جبهي ښي خوا ته د کرنيل شاه مراد خان په مشرۍ د پيا ده عسکرو قوه وه۰

د : په آقتيپه کي د خا صه دارانو ډله ، او دوه توپو نه  تعبيه سوي وو ۰

ه : پنځه خفيف توپونه د پل خشتي په شمال شرقي خوا کي ځاى پر ځاى سوي وو .

د افغا نانو اسلحه  ( دهن پوره ) تو پك وو چي اكثر دغه توپك د با ران د اوريدلو په وجه د کاره لويدلي وو . ولي روسانو ډير لوي او مجهز نظا مي قوت د افغا نانو په مقابل  کي درولي و .د افغا نانو او روسانو د نظامي قوتونو موقعيت په هغي نقشي کي ځرګنديږي چي د دغه کتاب په ضميمه  پاڼو کي راغلي ده۰

روسان د ما رچ د ميا شتي پر  ۳۰ نيټى پرپل خشتي باندي د  کشك د رود ځخه  تير سول  او په زوره يي پنجده اشغال کړه . په دغي جګړى کي د کرنيل شاه مرادخان په شمول اته سوه افغا نان په شهادت و رسيدل .

دېيورنډ د بيوګرافـي پـه کتاب کـي  دا هم ليکل سوي دي چــي د جنګ د محاذ افغانانو  بـه ويل چي انګريزانو  غوښتل چـي افغانان او روسان سره وجنګوي ، او دوى افغانان دجنګ لـه پاره ډير تشويقول ، ولــي دوى هيڅ راز مرستــه د افغا نـانـو سـره

نه ده کړي .

د پنجده د حادثې په وخت کي امير عبدالرحمن خان د برتانوي هند د ويسرا ( لارډ دوفرين ) په بلنه په راولپنډي کي و . د ډيو رنډ د قوله په دغه کتاب کي ليکل سوي دي چي (( موږ ته د پنجده د حادثې خبر د شپې له خوا ناوخته راورسيد او زه په هغه شپه امير عبدالرحمن خان ته ورغلم او ده ته مي د پنجده په جنگ کي د افغا نانو د ظالمانه وژل کيدلو او مخصوصا د افغاني جنرالانو د وژل کيدلو خبر ور کړ ۰ ولي امير عبدالحمن خان د دغي پيښي سره علاقه ونه ښووله او ما ته يي په جواب کي و ويل چي ما ته تکليف مه راکوه ۰ او دايي هم و ويل چي د دوو سوو يا درو زروو افغا نانو وژل کيدل اهميت نه لري او ديوه يا دوو جنرالانو وژل کيدل تر هغه لا هم بي اهميته دي په دي چي افغا نستان ډير جنرالان لري.))

د پنجده حادثې انگريزان او روسان د جنگ سرحد ته نژدي کړل چي په پای کي د ۱۸۸۵ کال د دسمبر د مياشتي پر ۱۰ نيټي د ( لارډ سلسبري ) او د روس د سفير له خوا په لندن کي يوه معا هده لاس ليك سوه چي د دغي معا هدې پر اساس د پنجده سيمه روسانو ته ورکړه سوه او د ذوالفقار تنگی د افغا نستان د خاوري يوه برخه سوه ( د ډيورنډ د بيوگرفي کتاب مخونه ۱۳۳ تر ۱۵۰ )

دريمه تبصره ـ د گندمك معا هده : وروسته تر هغه چي امير شير علي خان د کابل څخه مزار شريف ته ولاړ، او د ۱۸۷۹ کال د فبروري د مياشتي پـر ۲۱ نـيـټـي په مزار شريف کي وفات سو ، د ده زوی محمد يعقوب خان خان په کابل کي د افغانستان د امير پــه حيث اعلان کړ . چي وروستـه ده د انگريزانـو سره يــوه معا هده لاس ليك کړه . دغــه معا هــده د اميــر محمد يعقوب خان او د انــگريــز ( لوويس کيوناري ) تر منځ د جلال آباد د ښار په ۹ ۲ ميلی کي د کندمك په کلي کي لاس ليك سوې ده . ( ۷ )

د دغي معا هدي په وجه د افغا نستان ملي حا کميت او د خاوري تما ميت ته لويه صدمه ورسيدله۰

## ۲ ـ دډیورنډ د کرښې موافقتنامه

د ۱۸۹۳ کال د نومبر د میا شتې ۱۲ نیټه

د برتانوي هند د خارجه چارو وزیر Henry Mortimer Durand دیوه هیأت په مشری د ۱۸۹۳ کال د اکتوبر د میاشتې پر دوهمې نیټې کابل ته ورسید ۰ انګریزانو د مخه تر هغه چې د ډیو رنډ د موا فقتنا مې په باب د افغا نې مقا ماتو سره خبري وکړي دوی د افغا نستان په سرحداتو کې وضعه په خپله ګټه مغشوشه کړه ، دوی په سرحدي سیموکې د اقوامو تر منځ خونړۍ جګړې پیښې کړي ، انګریزانو د توري د قوم یوه قبیله ، دي ته تشویق کړه چې د نورو اقوامو په مځکو کې د ( پټاله ) په نا مه یوه نوې واله و کا ږي چې دغه کا ر د هغه ځای د اقوامو تر منځ لوی اختلاف را پیدا کړ . چې مقا بـل لـورې دخپل حق د دفاع لـه پـا ره راو پاڅیدل او یـو لـوي خونړې جنګ ومښت .

په ختیزو سیمو کې انګریزانو اعلانونه خپاره کړه او په دغو اعلانونو کې دوی خپلو سرحدي معاش خورو ته لیکل وو چې ، د هغه چا معاش به دوه برابره سي څوک چـي د انګریـزانـو دولت تـه یـو اطا عت لیـك ورانـدي کـړي . هغه وخت چــي امیـر عبدالرحمن خان دغـه اعلانونـه ولوستل ، نـو یـي خپل سپاه سالار غلام حیـدر خان تـه و لیکل (( که د انګریزانو حیله او فریب او د پیسو پا شل په مسلما نانو کې نه وای ، دوی نه سوای کولای چې د هند اسلا مي هیواد و نیسي ، بیا د سند د رود څخه چې د افغانستان طبعي سرحــد دی را تیر سـي پیښور ، دیـره جات او د سند سیمه ونیسي او د افغا نستان خاوره د افغانستان د دولت سره و ویشي )) ( ۸ )

دننګرهار په سرحد کې هم انګریزانو خلګ تحریك کړه چې د ( مچني ) په سیمي کې یوه واله و کاږي او د هغه ځای د خلګو تر منځ دښمني ایجاد کړي . انګریزانو همیشـه هڅه کوله چـي د خپلو اجیرانـو پـه وسیله د ډیـو رنـډ د کرښې پـه دواړو غا ړو کې بي امنیتي جوړه ګړي او امیر عبدالحمن خان دي ته مجبور کړي چې د یوي

جناح دفاع وکړي . د مثال په توګه : کله چي د شينوارو او اتمانزو تر منځ جنګ پيښ سو . امير عبدالحمن خان د سرحد د پوري خوا پر متجاوزينو باندي هجوم ور وړ ٠

د ډيورنډ هيأت څلويښت ورځي په کابل کي پاته سو ، خبري ډيري سړي او په کراره پر مخ تللي ٠ انکريزانو سرحد ته نژدي نظا مي قوتونه د تيار سی په حالت کي درولي وو ٠ امير عبدالرحمن خان ته د انګريزانو پيشنهاد داو چي د دوی جوړه سوي موافقتنامه او نقشه بايد لاس ليك کړي چي د نه امضا په صورت کي به د دواړو هيوادونو سيا سي مناسبات پرې سي ٠ دريم حالت موجود نه و ٠ امير عبدالحمن خان د خان د بقا له پاره دغه موا فقتنا مه لاس ليك کړه ٠ ده د افغانستان د خلګو سره مشوره نه ده کړي . امير عبدالرحمن خان حتي خپل د دربار ما مورين په دغه موضوع نه دي خبر کړي . ده و ړه يـا لويـه جرګه چي د افغا نستان د خلګو نما ينده ګي وکړي نه وه را غوښتي ( ٩ )

د ډيو رنډ د کرښي د موا فقتنامې څخه د انګريزانو اصلي هدف داو چي که روسان د افغا نستان د لاري څخه د هند د نيولو اراده وکړي او يا د امير عبدالرحمن خان تر مرګ وروسته په افغا نستان کي د انګريزانو پر ضد ملي مبارزي پيل سي نو دوی به په ډير سرعت سره د کابل ، غزني او کند هار سترا تيژيکي لاري تر خپل کنترول لاندي وروړي ( ١٠ )

ډيو رنډ د خپلو خا طراتو په کتاب کي ليکي چي د هند برتانوي هيأت و ظيفه درلوده چي امير عبدالرحمن خان دي ته تشويـق کړي چـي خپل عسکر د ( روشان ) او ( شغنان ) د سيمو څخه چي د بخا را يوه برخه ده او په ١٨٧٣ کال کي روسانو ته ورکړه سوې ده ، وبا سي ٠ او هم دي هيات وظيفه درلوده چي د امير عبدالرحمن خان د خوابدي چي د کوړك د غره د تونل او په نوي چمن کي د ريلوې پر جوړولو يي ښکا ره کړې وه له منځه يوسي ٠ د انګريزي هيأت اصلي او مهم هدف د هند د شمال غربي سرحد يعني د ډ يو رنډ د کرښي تثبيت و .

ډيو رنډ د خپل سفر په ارتباط ليکي (( موږ د ١٨٩٣ کال د سبتمبر د مياشتي په نيمايي کي د پيښور څخه حرکت وکړ او زموږ هيأت په لنډی کوتل کي د سپه سالار

غلام حیدر خان له خوا پذیرایي سو ، د جلال آباد ، جگدلك او لته بند د لاري څخه کابل ته ورسیدو او په ء اندکي ء کي چي د بابر د مقبري او د چهل ستون د قصر تر منځ واقع و ، ځا ی پر ځای سوو. په کابل کي د اوسیدو په وخت کي زموږ تشویش دا و چي که په دغه وخت کي امیر عبدالرحمن خان مړ سي او یا و وژل سي نو یقینا موږ به د کیونا ري او د ده د ملگرو په سر نوشت گرفتا ر سو )) دې لیکي (( په کابل کي مذاکرات ډیر بطي وو د امیر د اسلحه جوړولو ما هر MR. Pyne چې امیر ته ډیر نژدې و ، زموږ سره ډیره مرسته و کړه . ده به همیشه امیر ته مشوره ورکوله چي دی با ید د انگریزي هیأت خبري و مني )) دی اضافه کوي (( یوه ورځ ما د مستر پن څخه پوښتنه وکړه چي ولي امیر د سرحد پر موافقتنا مې باندي ژر تصمیم نه نیسي ؟ ده زما په جواب کي و ویل چي امیر ډیر عمده تصا میم د یکشنبو په ورځو کي نیسي . د مستر پن خبره رښتیاوه چي ډیري ورځي وروسته امیر په یوې یکشنبي کي د موافقتنا مې منلو ته تیار سو )) ( ١١ )

د ډیو رنډ د کرښي موافقتنا مه د ١٨٩٣ کال د نومبر د میا شتي پر ١٢ نیټې امضا سوه دغه موا فقتنا مه اوه مادي او یوه نقشه لري . دا موافقتنا مه د واخان څخه بیا د ایران تر سرحد پوري چي ( ١٥١٠ ) میله یا (٢٢٥٥ ) کیلو متره کیږي د افغانستان ختیز او جنوبي حدود داسي تشریح کوي ( ١٢ )

د ډیورنډ کرښه د واخان څخه پیل کیږي چي ( اسما ر ) او پورته وادي تر ( چنگ ) پوری به د امیر عبدالرحمن خان تر اداری لاندي وي ، ولي امیر به په ( دیر ) ، ( سوات ) ، ( باجوړ ) ، ( چترال ) او ( با شگل ) په سیمو کي هیڅکله مداخله نه کوي په وزیرستان کي د ( برمل ) سیمه امیر ته ورکوله کیږي ولي امیر باید د ( وزیرو ) او ( دوړو ) په نورو سیمو کي مداخله ونه کړي . په بلوچستان کي د ( چاغي ) پر اوبه لرونکي سیمي باندي چي امیر ادعا درلوده ، امیر د خپل ادعا څخه تیریږي او دغه مهمه سیمه انگریزانو ته پریږدي .د چمن په سیمي کي پر ( نوي چوڼۍ) باندي چي امیر ادعا درلوده ، دې د خپلي ادعا څخه تیریږي ، او د ( سرکي تیلري ) په اوبو کي به امیر خپله برخه به په پیسو رانیسي.

په دغي سيمي کي به د سرحد کرښه داسي وي چي کرښه به د ء خواجه عمران ء د غره پر سر تيره سي ۰ او دا کرښه به د ( پشا کوتل ) سره نژدي چي د انگريزانو خاوره ده تيريږي ۰ وروسته دغه کرښه په هغه استقا مت ځي چــي ( مرغه چمن ) او د ( شيرو اوبه ) چينه افغانستان ته پريږدي ۰ وروسته دا کرښه د نوي چمن او افغاني تاڼې ( لښکرو ) تر منځ تيريږي ۰ دا کرښه بيا د ريلوي ستيشن ته ځي او د هغو تپو څخه تيريږي چي اصلي بولدك بلل کيږي ، او د دغه ځای څخه د جنوب خوا ته داسي کږيږي ځو بيرته د خواجه عمران د غرونو سلسلي ته ورننوزي ۰ دا کرښه د انگريزانو د ( گواشه ) سيمي اود هغه افغاني سړك تر منځ اوړديږي چي ښوراوك ته ځي ۰

د ډيورنډ په موافقتنا مي کي دا هم ليکل سوي دي ۰

۱ ـ وروسته تردي به انگريزان د هغو حربي مهماتو د ورود ممانعت نه کوي چي افغانستان ته وړل کيږي ( ۱۳ )

۲ ـ انگريزان به پر پخوانيو ۱۲ لکو کلدارو امداد چي هر کال به يي امير ته ورکولي ، شپږ لکه نوري کلداري اضافه کوي ( ۱٤ )

امير عبدالرحمن خان د دغي موافقتنا مي په لاس ليك سره څو ميليونه افغانان د افغانستان څخه بيل کړه ، امير عبدالرحمن خان هغه موافقتنامه لاس ليك کړه کومه چي انگريزانو جوړه کړي وه ، چي امير حتي يوه جمله هم پر دغي جوړي سوي موافقتنا مي باندي علاوه نه کړه ( ۱ ٥ )

ځني مؤرخين ليکي چي ا مير عبدالرحمن خان دغه موافقتنا مه د دي له پاره امضا کړه چي دا کرښه دبرتانوي هند د سرحد په حيث نه بلکه د امير د جنوبي او جنوب شرقي ساحي حدود تثبيتول ( ۱٦ )

ا مير عبدالرحمن خان د ډيورنډ د کرښي موافقتنا مه امضا کړه ولي ده د موافقتنامي ضميمه نقشه ځکه نـه ده امضا کړي پـه دي چي دی د هغي نقشي د ځينو ټکو سره موافق نه و ۰

---

تبصره : د ډيورنډ د موافقتنا مي متن چي د کتاب په ضميمه پاڼو کي سته د

پوهاند محمد حسن کا کړ د نا چاپه یوه اثر څخه اخستل شوي ده ۰

## ۳ ـ افغانانو د ډیورنډ کرښه نه ده منلي

کله چي د افغا نستان خلگ د ډیورنډ د موافقتنا مي د لاس لیك څخه خبر سو ل دوی د د دغي موافقتنا مي سره خپل مخالفت خرگند کړ۰ د آزاد سرحد خلگو د انگریزانو پر ضد خپلو مبارزاتو ته تر هغه وخته ادامه ورکړه تر څوچي انگریزان د هند د نیمي وچي څخه و وتل ۰ دوی د دغي موافقتنا مي منلو ته حاضر نه سول ۰ د افغانستان خلگ د دغي موافقتنا مي څخه نفرت لري ( ۱۷ )

د وزیرستان خلگو چي د افغانستان او انگریزانو په دریم جنگ کي د دښمن ملا ماته کړي وه ، کله چي دوی د ډیورنډ د موافقتنا مي په لاس لیك خبر سول ، دوی په پکتیا کي د امیر والي سردار گل احمد خان ته د خپل نماینده د وازي خوا د ( کشور خان ) نومي سړي په لاس یو لیك ولیږ چي په هغه لیك کي داسي لیکل سوي و :

په وزیرستان کي د انگریزانو هوا خواهان وايي چي امیر عبدالرحمن خان د انگریزانو د نماینده ډیورنډ سره یوه موافقتنامه لاس لیك کړي ده چي د ډیورنډ پــــه خوښه يي د ( واڼه ) سیمه د انگریزانو دولت ته ورکړي ده ۰ که دا خبره رښتیاوي نو موږ تا په دي خبر وو چي د وزیرو قوم د انگریزانو د دولت اطاعت نه کوي ، دوی د سردار څخه هیله و کړه چي د دغي موضوع رشتیا او درواغ دوی ته و وايي ، چي وروسته هره فیصله چي د وزیرو قوم لازمه و باله هغه به عملي کړي ۰ سردار گل احمد خان د وزیرو د قوم په جواب کي و لیکل چي ، ده ته د ویش د کرښي د تثبیت اطلاع نه ده ورکړه سوي او که د دواړو هیوادونو تر منځ د ویش د لیکي تصفیه راغلي وي نو دا خلگ چي تا سي ته کوم مطلب وايي دوی باید د خپل قول د اثبات له پاره مهر سوې سند په لاس کي ولري ۰ که دوی مهر سوې سند و نه لري ، تا سي د دوی خبرې په ذهن کي مه ساتئ او ددوی خبري رښتیا مه بولې ۰

هغه وخت چي امیر عبدالرحمن خان د وزیرو د قوم او خپل والي په مکاتباتو خبر سو ، ده خپل والي او خپل د واقعاتو لیکونکي خلیفه نور محمد ته و ویل چي د

وزيرو قوم ته و وايا ست چي بيله د( مرغه ) او ( برمل ) دسيمو څخه چي د وزيرو او مسعودو سيمي دي ، نور ټول وزيرستان تر دي وروسته په انگريزانو پوري تعلق لري په دي چي په دا تيرو څوارلسو کلونو کي تا سي زه ډير په تکليف کړې يم او هر څومره نصيحت چي به مي تا سي ته کاوه ، گټه يي نه کوله او په آخر کي زه مجبور سوم چي ستا سي سيمه انگريزانو ته ورکړم ( ۱۸ )

انگريزانو چي د موافقتنا مي پر ضد د آزاد سرحد د خلگو مقاومت وليد ، نو يي د امير عبدالرحمن خان څخه غوښتنه و کړه چي د سرحد د کرښي يوه نقشه د امير له خوا ټولو سرحدي سيمو تـه واستولــه سي څو د ډيـورنـډ د کرښي ددواړو خــواوو اوسيدونکي په واقعيت خبرسي ۰ امير د انگريزانو دا غوښتنه و منله او په سرحدي ټولو سيمو کي يي اعلانونه خپاره کړه چي متن يي داسي دئ :

د انگريزانو يو هيات د هند د خارخه وزير هنري مارتيمر ډيورنډ په مشرئ کابل ته راغلې و ، زموږ تر منځ داسي يوه موافقتنا مه لاس ليك سوه :

د ( درواز ) ، ( روشان ) ، ( شغنان ) او ( واخان ) په سيمو کي به د سرحد گرښه د ۱۸۷۳ کال د موافقتنا مي مطابق وي ، د واخان څخه به دغه کرښه کافرستان او چترال ته ځي وروسته به د ( سندك ) څخه تيريږي ، د هغه ځايه څخه به کرښه د مومندو په غرونو کي چي د مومندو او باجوړو تر منځ پراته دي تيريږي ۰ وروسته د سرحد کرښه د ( لواړگي کوتل ) او ( اشکار علي ) ته رسيږي ۰ دا کرښــه وروستــه سپين غره ته خيژي چي د افريدو او شينوارو اقوام سره جلا کوي ۰ د سکپام په نامه د سپين غره پر لوړه څوکه به علامه نصبيږي ۰ بيا دا کرښه ( خاخيو ) ، ( چمکنيو ) ( خوستيو ) او ( باتورو) ته ور ځي ۰ وروسته د سرحد کرښه د ( خوست ) او ( دوړ ) پولو ته رسيږي او د هغه ځايه څخه ( برملو ) او ( وزيرو ) ته ځي چي برمله افغانستان ته پريږدي ۰ کرښه د هغه ځای څخه ( تروه) او ( کا کړستان ) او د هغه ځای غرونو ته چي سليمان خيل ، کا کړاو وزير سره بيلوي رسيږي ، وروسته د سرحد کرښــه د ( تره کو ) ، ( اندړو ) او ( توخو ) اقوامو سيموته ور ننوزي او د هغه ځای غرونو ته چي د دغو درو قومونو او کا کړستان ويش دئ رسيږي ۰ تر دغه ځای وروسته د

سرحد کرښه په بلوچستان کي نوي چمن ، نوشکي ، چاغي او تر ملك سياه کوه پوري ځي ۰

د امير عبدالرحمن خان ټولي خواري او اعلاميي د خلگو په کرارولو کي مؤثر واقع نه سوې ۰ د سرحد د خلگو مبارزو ادامه پيدا کړه ۰ د موافقتنا مي د لاس ليك کولو په دوهم کال کي د مسعودو قوم په واڼه کي د انگريزانو پر لښکرو باندي بريد وکړ او د انگريزانو يو ټولې عسکر يي و وژل او د انگريزانو چوڼي ته يي اور واچاوه ۱۵۰ ميله توپك يي په غنيمت يووړل ۰ انگريزان ډير وار خطا سوه چي خپل د حفا ظت له پاره يي د اتك ځخه ځلور غونډه مجهز عسکر راوستل۰ د مسعودو قوم د ملا پيونده په مشرى ځو واره پر انگريزانو حملي وکړي او دوى ته يي ډير تاوانونه ورسول انگريزان پر شا ولاړل ۰ د هند ويسرا په خپله پيښور ته ورغې سرحدي سيمي او لنډي کوتل يي وليدل انگريزانو د مومندو په سيمو کي اشتهارات خپلره کړه او په هغو کي يي خلگو ته د پيسو پيشنهاد و کړ ، خلگو د ملا قديم په مشرى د انگريزانو غوښتنه و نــه منله او پــه ء موسي خيلوء ، ء گدا خيلوء او ء عيسي خيلو ء کي يي د انگريزانو د هوا خواهانو کورونوته اورونه واچول ۰ انگريزانو، ء حليمزو ء ، ء ترنگزوء،ء عيسي خيلوء او نورو اقوامو ته اطلاع ورکړه چي د مومندو غرني سيمه په انگريزانو پوري تړلي سوي ده او وروسته تر دي بايد ددغو ځايونو خلگ د افغانستان سره خپلي اړيکي و شکوي۰ حليم زو د هډي ملا نجم الدين ته مراجعه وکړه ، ده د سعيد محمد خان اوسلطان محمد خان په وسيله د انگريزانو پر ضد تبليغات پيل کړه ، ملايان او قومي مشران د خلگو سره يو ځاى سوه ملا نجم الدين چي په آزادو مومندو کي مرکز نيولى و په ټول سرحد کي يي د انگريزانوپر ضد جهاد اعلان کړ۰ خلگو په پيښور او ديره جاتو کي د انگريزانو پر ځايونو حملي پيل کړي ۰ انگريزانو ملا نجم الدين ته پيشنهاد و کړ چي که دې د انگريزانو پر ضد د خپلي مبارزي ځخه لاس واخلي او د مومندو قوم انگريزانو ته تابع کړي ، دوى به د مومندو د ټولو سيمو ماليه ده ته ورکړي ۰ ملا نجم الدين د انگريزانو دا پيشنهاد رد کړ او په پښتني نورو سيمو کي لکه يوسفزې ، سوات تر کاکړستان پوري ټول خلگ يي د انگريزانو پر ضد و پارول۰

امیر عبدالرحمن خان چــي د ډيورنـډ د موافقتنا مـي پـر خلاف د خلګو مبارزي وليدي ، وروسته دی هم د دغي موافقتنا مي سره مخا لف سو او د موافقتنا مي پرضد يي مخالفت پيل کړ٠ده د سرحد د مجا هدينو سره مرستي کولي ، هغوي ته به يي پيسي او اسلحه ورکوله او د ډيرو سيمو خلګ يي د انګريزانو پر ضد و پا رول امير د انګريزانو پر ضد جهادي پاڼي خپرې کړي چي د امير عبدالرحمن خان دا وروستې دريځ د سرحد په مجا هدينو کي مؤثر واقع سو او امير د سرحد مجا هدينو ته نژدي سو ٠ ده مشهور مجا هدين لکه د هډي ملا نجم الدين او ملا پيونده وزيرې او داسي نور کابل ته ور و بلل او په کابل کي يي دوی ډير و نا زول .

داوي د امير عبدالرحمن خان په زمانه کي د ډيو رنډ د کرښـي پر ضد د سرحد د خلګو مبارزي چي په اختصار سره و ليکل سوي٠

د دي مبحث په پای کي دا مطلب د يادولو وړ دې چي په وچه کي د محصور افغانستان له پاره بحر ته يوه لاره هميشه د افغانستان د پاچاهانو آرزو وه چي په مختلفو وختونو کي د غو پاچاهانو د تجارت او ترانزيتي مشکلاتو په وخت کي دغه آرزومندي ښکاره کړي ده ٠ د مثال په توګه :

په ١٨٨٢ کال کله چي امير عبدالرحمن خان د انګريزانو د يوه هيات منلو ته حاضر نه سو نو سمدلاسه د هند انګريزي ويسرا افغانستان ته د نظامي تجهيزاتو پر راوړلو باندي بنديزونه وضع کړل ( ١٩ )

ا مير عبدالرحمن خان په تاج التواريخ کي په دغه ارتباط ليکلي دي چي (( په هند کي انګريزي حکومت زما هغه توپونه چي په خپلو پيسو مي په هند کي رانيولي دي افغانستان ته د راوړلو اجازه نه راکوي او هم انګريزانو د افغاني تاجرانو د ځينو مالونو لکه وسپنه ، فولاد او مسو د راوړلو مخه هم نيولي ده ٠ دوی وايي چي کيدلای سي چي د دغو اجنا سو څخه په حربي تجهيزاتو کي کار واخستل سي ٠ انګريزان وايي چي تر هغو پوري چي د افغانستان سره پر خپلي دوستی مطمئن نه سي ، افغانستان ته به د داسي اموالو د وړلو اجازه ورنه کړي )) ( ٢٠ )

## ٤ ــ د نړۍ د هیوادونو سره د افغانستان مناسبات

د ۱۹۱۹ کال د مارچ د میا شتي پر دریمه نیټه اعلیحضرت امان ا لله خان د افغانستان استقلال اعلان کړ. تر استقلال یوه میاشت وروسته د امان الله خان په لارښوونه د افغانستان یو هیأت د محمد ولي خان په مشرۍ شوروي اتحاد ، اروپایي هیوادونو او امریکا ته سفر وکړ. دغه هیأت دنده درلوده چي د نړۍ د لویو هیوادونو سره د مستقل افغانستان سیا سي منا سبات ټینګ کړي او د هغوو هیوادونو سره تجارتي او فرهنګي قرار دادونه لاس لیك کړي. هغه وخت چي افغاني هیأت مسکو ته ورسید د شوروي اتحاد مشر لینن او د شوروي د خا رجه امورو کمیسار ګورګي وچرین د افغاني هیأت سره ولیدل او سمدلاسه یي د افغانستان توی خپلواك هیواد په رسمیت و پیژندی وروسته د ۱۹۱۹ کال د مارچ د میاشتي پر ۲۷ نیټي د افغانستان او شوروي تر منځ د دوستۍ د تړون د خبرو له پاره د شوروي یو هیأت کابل ته سفر وکړ په دغه وخت کي د برتانوي هند یو هیأت هم د افغانستان سره د مشروطي سولي د تړون د مذاکراتو له پاره کا بل ته رسیدلی و . د افغانستان خپلواك هیواد خپل د یوه بل ګاونډۍ هیواد ایران سره هم د ښو منا سباتو غوښتونکی و ولې په دغه وخت کي د ایران سره د سیا سي اړیکو د ټینګولو امکان په دي دلیل موجود نه و چي ایران د انګریزانو تر مستقیم نظا مي اشغال لاندي و . افغانستان د ایران سره خپل د سیاسي منا سباتو ټینګیدل یوه بل وخت ته وځنډول ( ۲۱ )

افغاني هیات د فرانسی ، ایتالیا او جرمني د هیوادونو له خوا ښه استقبال سو ، دوی د دغو هیوادونو سره ځو قرار دادونه هم لاس لیك کړل . د ترکیي دولت د افغانستان خپلواك هیواد په رسمیت و پیژندی په نظا مي ، ښووني او روزني او صحي چا رو کي یي د افغانستان سره مرستي پیل کړي .

د افغانستان په برخه کي د برتانوي هند او لندن تر منځ د نظریاتو اختلاف و. برتانوي هند د افغانستان د خپل واکې سره موافقه درلوده په داسي حال کي چي د لندن نظر داو چي افغانستان باید د انګریزانو د نفوذ په ساحه کي پاته سي او د

شوروي د نفوذ څخه ليري و ساتل سي ۰ انگريزانو دخپلي دغي مفكوري مطابق په نړيواله سطحي ديپلوماتيك اقدامات پيل كړل او د نړې د هيوادونو څخه يي غوښتنه وكړه تر څو چي د افغانستان او انگريزانو تر منځ د سولي تړون لاس ليك نه سي د نړۍ هيوادونه بايد د افغانستان دولت په رسميت و نه پيژني ( ۲ ۲ )

كله چي افغاني هيأت په ايتاليا كي و ، انگريزان مطلع سول چي د ايتاليا دولت تصميم نيولې دې چي د افغانستان خپل واك دولت په رسميت و پيژني او د افغانستان سره قونسلي او تجارتي عهد نا مي لاس ليك كړي ۰ انگريزانو د ايتاليا پر حكومت سمدلاسه احتجاج وكړ ۰ په لندن كي افغاني هيأت د انگريزانو د سا ړه استقبال سره مخا مخ سو ۰ د انگريزانو خارجه وزير Lord Curzon د محمد ولي خان په غوښتنه د افغاني هيات سره وليدل ، ولي دې د افغاني هيأت سره د خبرو كولو له پاره حاضر نه سو او د محمد ولي خان دا غوښتنه يي و نه منله چي دى به د امان الله خان ليك د انگريزانو پا چا King George ته وړاندي كړي ۰ محمد ولي خان ته و ويل سوه چي د امان الله خان ليك بايد په لندن كي د برتانوي هند دفتر ته و سپاري۰چي په دغه ارتباط په كابل كي د افغانستان خارجه وزير محمود طرزي د انگريزانو پر خارجه وزير هنري دابز باندي چي په دغه وخت كي په كابل كي و احتجاج و كړ۰وروسته افغاني هيأت د لندن څخه پاريس ته ولاړ۰ او هلته يي د امريكا د سفير ء كمبل والاس ء سره وليدل . دوى د امريكا سفير ته و ويل (( موږ د افغانستان د خارجه وزير له خوا د امريكا د خارجه وزير په نامه يو ليك د خانه سره راوړې دې او غواړو چي واشنگتن ته سفر وكړو چي دا ليك د امريكا خارجه وزير ته وړاندي كړو . او افغاني هيأت غواړي چي د افغانستان د خپلواكي ږغ په واشنگتن كي د امريكا دولت ته ورسوي او د امريكا د دولت څخه د دواړو هيوادونو تر منځ ددوستانه مناسباتو د ټينگولو غوښتنه وكړي))
د امريكا سفير دمخه تر هغه چي د افغاني هيأت سره و گوري ، په پاريس كي د انگريزانو سفير Lord Hardinge ته د افغاني هيأت د غوښتني اطلاع وركړه او پر دغي موضوع باندي يي د انگريزانو د نظر غوښتنه وكړه۰ دانگريزانو سفيرد امريكا سفارت ته په يوه ليك كي داسي و ليكل ۰

په پاريس كي افغاني هيأت د فرانسي د جمهور رئيس او خارجه وزير ام. برېند سره ليدلي دي ، نو په دغه لحاظ تاسي نه سي كولای چي د افغاني هيأت سره و نه گورې ، ولي د انگريزانوحكومت نه غواړي چي د نړې هيوادونه د افغاني هيأت سره قراردادونه لاس ليك كړي. د انگريزانو سفير په خپل ليك كي زياته كړي وه چي د انگريزانو په نظر افغانستان واقعي آزادي نه لري او تر اوسه د انگريزانو تر سياسي نفوذ لاندي دی ولي ډير ژر به انگريزان او افغانان د سولي موافقي ته ورسيږي . د امريكا سفير پورتنې مطلب واشنگتن ته مخابره كړ چي د امريكا د سفير دغه لارښوونه په امريكا كي د افغاني هيأت د سړې پذيرايي موجبات برابر كړل.

كله چي افغاني هيأت د ۱۹۲۱ كال د جولای د مياشتي پر ۱۲ نيټي نيويارك ته ورسيدې ، نو يي په هغه بندري ښار كي د گمركي مقاماتو له خوا پذيرايي و سوه. افغاني هيات د جولای د مياشتي پر ۲۰ د امريكا د خارجه وزير چارل ايون هگز سره و كتل او په همدغه ورځ يي د امريكا د جمهور رئيس Harding سره هم كتنه و كړه . د امريكا خارجه وزير ، جمهور رئيس ته په پاريس كي د امريكا د سفارت راليږل سوي مطالب ټول ويلي وو . ده جمهور رئيس ته دا هم ويلي و چي افغانستان د روس د بلشويك نظام سره دوستانه اړيكي ټينگي كړي دي او شورويانو د افغانستان سره د يوه مليون طلايي روبلو مرسته كړی ده . افغاني هيات د امان الله خان ليك د امريكا جمهور رئيس ته او د محمد طرزي ليك د امريكا خارجه وزير ته وړاندي كړل. افغاني هيأت دواړو ته و ويل چي د افغانستان نوې خپل واك هيواد د امريكا د دولت سره د ښو سياسي اړيكو او تجارتي معاملاتو غوښتونكې دې . د امريكا جمهور رئيس او خارجه وزير دواړو افغاني هيأت ته ښه راغلی و وايه او زياته يي كړه چي د امريكا د دولت سره د سياسي مناسباتو ټينگيدل د امريكا د كانگرس په تصميم پوري اړه لري او د امريكا حكومت په دغه برخه كي هيڅ نه سي كولای ( ۲۳ )

افغاني هيأت د امريكا او اروپا تر سفر وروسته بيرته كابل ته ورستون سو . امريكا ته د افغاني هيأت د سفر د نتايجو په باب ، د هيأت د غړو تر منځ د نظر اختلاف موجود و. د هيات خينو غړو دا يو كاميابه سفر باله ولي د هيات ډيرو غړو

چي د هغو په جمله کي فيض محمد خان ذکريا  هم شامل و د افغاني هيأت دا سفر يي  يو نا کامه سفر و باله ۰ فيض محمد خان ذکريا د ترکيي په Vakit نومي اخبار کي داسي ليکلي و چي (( د امريکا دولت د افغانستان سياسي پيژندنه په نيويارك کي د عيسويانو د اتحاديي د مرکزي دفتر په غوښتنه رد کړې ده  ))

Poulada ليکي چي ، واقعيت داديٰ کله چي په پاريس کي د انگريزانو د سفير نظريات واشنگتن ته ورسيدل   نو د امريکا دولت د افغانستان په برخه کي خپله پالسي داسي عياره کړه چي د انگريزانو دولت د هغه غوښتنه کړې وه  . ( ٢ ٤ )

## ٥ ـ د پښتونستان موضوع

د پښتونستان موضوع چي د ډيورنډ د موافقتنا مي او د گندمك د تړون څخه را پيدا سوې ده ، دغه مسئله هم لکه د کشمير موضوع د انگريزانو د استعمار ميراث دی چي د درو گاونډي هيوادونو تر منځ يي د نقاق تخم پا شلی د ی۰

د پښتونستان مسئله چي په تيرو پنځوسو کلونو کي کله د پښتنو د خود اراديت د حق په نا مه او کله د پښتوستان د آزادۍ په نا مه او کله هم د پښتنو او بلوڅو د سياسي سرنوشت په نومونو د افغانستان په خارجي سياست کي ځای درلود ، داسي پيل سوي ده۰

په ١٩٣٠  کال کي د گردي ميز تر کنفرانس وروسته ، افغانستان پيش بيني و کړه چي په هند کي به يو مسؤل حکومت  منځ ته راسي  او افغانستان په دي پوهيدی چي انگريزان به قبايلي سيمي او صوبه سرحد  بيرته افغانستان ته په دي دليل ورنه کړي چي د دوی په دغه اقدام سره به د هند راتلونکې حکومت ډيرضعيفه سي .  ( ٥ ٢ )

په دغه ارتباط په ١٩٤٧ کال کي د پوهني وزير نجيب الله خان په خپلي راديويي وينا کي و ويل (( د افغانستان حکومت د ١٩٣١   او ١٩٣٤ کلونو تر منځ څو واره د انگريزانو حکومت ته و ويل چي د افغانستان  ماوراي سرحد سيمي بايد د هند د خاوري يوه برخه و نه شميرله سي )) ده دا هم و ويل (( کله چي انگريزانو هنديانو ته د هند د قدرت  ژر انتقال و مانه، دوی زموږ د مراجعاتو په جواب کي و ويل ، چي دا کار

هغه وخت کیدای سي چي په هند کي اساسي تغیرات را منځ ته سي )) ( ۲۶ )

په ۱۹٤٤ کال کي چي په دوهم عمومي جنګ کي د متحدینو کامیابي یقیني سوه ، نو د هند څخه د انګریزانو وتل قاطعیت و موند٠ په دغه وخت کي د افغانستان حکومت انګریزانوته و ویل چي د پخوانیو امیدواریو پر اساس باید د افغانستان د حکومت سره پر مربوطه مسایلو مشوره وسي ، په دي چي هغه تغیرات چي د هند په نیمه وچه کي پیښیږي ، هغه د ډیورنډ د کرښي د شرقي او جنوبي سیمو پر اوسیدونکو پښتنو باندي اثر کوي ، ولي د انګریزانو جواب هیڅکله د قناعت وړ نه و ( ۲۷ )

ځني تبصري په هغه وخت کي د هند د وروستي ویسرا Lord Mountbatten له خوا شوي دي ، ده یه ویل چي (( د افغانستان غوښتونو ته هغه وخت توجه کیږي چي هند آزادۍ ته ورسیږي )) ( ۲۸ )

د افغانستان حکومت پر دیپلوماتیکو اقداماتو علاوه ، د قبایلي مشرانو او د خدایي خدمتګارانو د تحریك سره هم تماس نیولي و٠ په ۱ ۹ ٤ ۲ کال کي چي په جهاني جنګ کي انګریزان ډیر زیل سوي وو ، او د هند نیمه وچه د جاپان له خوا تر تهدید لاندي وه په دغه وخت کي یوه افغاني هیات د چار سدې دفیض آباد کلي ته چي د ترونګزو د حاجي ( فضل واحد ) کلې و ، ورسیدې ٠ افغاني هیات د نژدي دیرشو پښتني مشرانو سره خبري وکړي ، د دوی د خبرو موضوع داوه چي که انګریزان په جنګ کي مغلوب سي نو څه به پیښه سي ؟ هلته دا فیصله هم وسوه چي انګریزانو ته باید و ویل سي چي وروسته تر دي پښتانه په خپله ، خپله دفاع کولای سي ٠ هلته د پښتنو د اتحاد په برخه کي هم یوه فیصله و سوه ( ۲ ۹ ) په ۱۹٤٦ کال کي خان عبدالغفار خان د انګریزانو د کابیني د دي فیصلي سره ، چي صوبه سرحد به د پنجاب یوه برخه وي ، کلك مخالفت وکړ . ( ۳ ٠ )

د خان عبدالغفار خان ورور ډاکټر خان ، صوبه سرحد ته ( د لارد بیتن ) د مسافرت په وخت کي و ویل چي د هند د تقسیم په صورت کي به صوبه سرحد ، د پاکستان یوه برخه نه وي . ( ۳ ۱ )

د صوبه سرحد یوه وزیر قاضي عطا الله خان د اول وار له پاره د پښتونستان موضوع

په علني ډول ياده کړې ده ، ده ويلي و چي پښتانه بايد يو مستقل هيواد و لري ( ٣٢ )

د ١٩٤٧ کال د جون په مياشت کي ( مهاتما گاندي ) د هند ويسرا ته په خپل يوه ليك کي د ( پټانستان ) موضوع تائيد کړې وه . ( ٣٣ )

د ١٩٤٧ کال د فبروري د مياشتي پر ٢٠ نيټي د انگريزانو صدراعظم Attlee د يوي ابلاغيي په ترڅ کي و ويل چي، هند به د ١٩٤٨ کال د جون په مياشت کي آزادې ته ورسيږي . ( ٣٤ )

د کانگرس او مسلم ليگ احزابو او د هند ويسرا موافقه وکړه چي د هند نيمه وچه به تجزيه کيږي ٠ د ١٩٤٧ کال د جون د مياشتي پر دريمي نيټي د برتانيي پارلمان د هند د تجزيي موضوع و منله ٠ د صوبه سرحد په ارتباط داسي فيصله و سوه چي صوبه سرحد به د رفرندم له لاري ، په هند يا پا کستان پوري تړل کيږي ( ٣٥ )

خرنگه چي انگريزانو د خدايي خدمتگارانو غوښتنه و نه منله ، نو دوی په رفرندم کي برخه وانه خسته ٠ د رفرندم انتخابات د ١٩٤٧ کال د جولای د مياشتي پر شپږمي نيټي پيل او د لسو ورځو له پاره يي ادامه و مونده ٠ دا رفرندم د دين پر اساس وسو چي د يوه سندوخ په خنگ کي قرآن شريف او د بل سندوخ په خنگ کي Granth ايښيودل سوې و ٠

رفرندم يوازي د صوبه سرحد په اداري ساحو پوري منحصر و چي په سلو کي يي نه څلويښت د هغو سيمو اوسيدونکو ، په دغه رفرندم کي برخه وانه خسته٠ د آزاد سرحد او بلوچستان په سيموکي رفرندم و نه سو ٠

د رفرندم نتايج داسي وو

| | |
|---|---|
| د صوبه سرحد ټولي رايي | ٥٧٢٧٩٨ |
| د پاکستان د الحاق په گټه | ٢٨٩٢٤٤ رايي |
| د هند د الحاق په گټه | ٢٨٧٤ رايي |
| د ټولو رايي ورکونکو شمير | ٢٩٢١١٨ |
| د نه گډون کونکو شمير | ٢٨٠٦٨٠ |

په سلو کي يو پنځوس خلگو په رفرندم کي برخه اخستي وه ( ٣٦ )

پاکستان او هند د ۱۹٤۷ کال د آگست په میاشت کي آزادۍ ته ورسیدل، د رفرندم د نتایجو پر اساس د صوبه سرحد د پښتنو سیمي د پاکستان یوه برخه سوه، او د پښتنو مساله د افغانستان او نو ظهوره پاکستان د اختلافاتو ، بارز ټکې سو چي دا ډیر کلونه کیږي چي ادامه لري٠

د هند او پاکستان تر آزادۍ وروسته د سردار محمد هاشم خان د صدارت په وخت کي د ډیورنډ د کرښي پوري خوا اوسیدونکو پښتنو د سر نوشت د تعیین غوښتنه د انگریزانو د دولت څخه شوې ده خو انگریزانو د افغانستان دغي غوښتني ته مثبت جواب نه دی ورکړی٠ وروسته چي دغه غوښتنه د پاکستان د دولت څخه وسوه، پا کسنانیانو د افغانستان دغه غوښتنه په خپل کورنې چارو کي مداخله و بلله ٠

په هغه حساس وخت کي چي په جهاني جنگ کي د افغانستان حکومت دبیطرفي موقف غوره کړې و ، تر جنگ وروسته افغانستان د هغو هیوادوالو د سر نوشت په ارتباط چي په ورستیو کلونو کي د افغانستان څخه بیل کړه شوي وو ، مؤثر تدابیر

ونیول ٠ د ۱۹٤٤ کال د نومبر په میاشت کي د وزیرانو د مجلس یوي غونډې د خارجه وزارت یو پیشنهاد تصویب کړ٠ په دغه پیشنهاد کي لیکل سوي و چي کوم تغییرات چي تر جهاني جنگ وروسته په هند کي پیښیږي ، د دقت وړدي ٠او په پیشنهاد کي دا هم لیکل سوي و چي ، د سبا ورځي د هند په هیواد کي ، د سرحد د پښتنو د مدغم کیدلو مخه باید و نیوله سي ، او د انگریزانو حکومت باید دا لاندي ټکو ته توجه و کړي . ( ۳۷ )

۱ ـ د انگریزانو حکومت باید تعهد وکړي چي د هند د آزادۍ په وخت کي په آزاد سرحد کي د پراختیا هڅې و نه کړي ٠

۲ ـ د انگریزانود حکومت څخه دي تعهد واخستل سي چي د سرحدي قبایلو د امنیت له پاره دي د افغانستان د دولت سره نظامي او مالي مرستي و کړي او د بلوچستان په سیمي کي دي یو بندر افغانسان ته ورکړي ٠

۳ ـ د افغانستان او انگریزانو دولتونه دي تعهد وکړي چي د سرحدي خلگو د

آرامي ، پرمختيا او مدنيت په برخه کي به يو د بل سره صميمانه همکاري کوي ٠

٤ ـ د افغانستان او انگريزانو حکومتونه دي يو پر بل باندي د نـه تعرض يـو لس کلن تړون لاس ليك کړي او دواړه هيوادونه بايد په هره برخه کي خپل روابط او همکاري ، روښانه کړي ٠

٥ ـ کله چي هند آزادي ته ورسيږي افغانستان ته دي د افغانانو پخواني سيمي د هغو سيمو د اوسيدونکو په خوښه بيرته ورکړه سي ٠

دغه پيشنهاد په کابل کي د انگريزانو مختاروزير Sir Giles Sevire ته ورکړه سو ٠ده يو کال وروسته د ١٩٤٥ کال د سبتمبر د مياشتي پر ١ ٩ نيټي ، د افغانستان پيشنهاد ته داسي جواب ليکلی و :

١ ـ په هغه تړن کي چي په ١٨٩٣ کال کي د انگريزانو د حکومت او امير عبدالرحمن تر منځ لاسليك سوي و ، د ډيورنډ د کرښي ختيزي برخي د آزاد سرحد په شمول په برتانوي هند پوري تړل سوي دي ٠ اوس د انگريزانو حکومت مجبور نه دي چي پر خپلي سيمي باندي د نه حا کميت اطمينان يوه بل هيواد ته ورکړي . او د داسي ابلاغيي نشريدل د ډيورنډ د تړون اهميت له منځه وړي ٠

٢ ـ د نړي نـوي انکشافات د سيمي پـر هيوادونو باندي تاثير کوي ، انگريزان په پرنسيپ کـي موافقـه لـري چـي د افغانستان د دولت ســره دي نظا مي او مالي مرستي و ســي ٠

٣ ـ نظا مي اتحاديي او د نه تجاوز تړونونه د نړي په عمومي سولي پوري اړه لري چي دا ما مول د هيوادونو په سيمه ايزو تعهداتو سره نه سي تا مينيدلای٠

٤ ـ د بلوچستان په سواحلو کي داسي بندر نه سته چي هغه افغانستان ته ورکړه سي کوم بندر چي اوس هلته سته هغه د بلوچستان د امنيت له پا ره جوړ سوي دي .

٥ ـ ولي انگريزانو په دي برخه کي چي د هند د آزادي په صورت کي بايد هغه سيمي چي پخوا د افغانستان څخه جلا کړل سوي دي بيرته افغانستان ته ورکړه سي څـه نـه وو ليکلـي .

په وروستيو مذاکراتو کي چي د ١٩٤٧ کال د جون په مياشت کي په لندن کي د

افغانستان د مختار وزير سردار محمد نعيم خان او د انگريزانو د صدر اعظم ارنست بيون سره و سوي ، بيون ويلي و چي ، د سرحد موضوع د هند دموضوع يوه برخه ده چي بايد پر دغي موضوع باندي د هندي مقاماتو سره خبري و سي. سردار محمد نعيم خان ده ته ويلي و چي د رايو وركولو هغه طريقه چي انگريزان په سرحدي سيمو كي عملي كوي د افغانستان نه ده خوښه ولي چي په داراز رايو وركولو كي د سرحد خلگ مجبور دي چي په پاكستان يا هند پوري و تړل سي. دوی نه سي كولای چي خپل مستقل هيواد و لري ، او دوی نه سي كولای چي په افغانستان پوري و تړل سي . ( ۳۸ )

صدر اعظم سپه سالار شاه محمود خان ، د امريكا د سفر څخه د راتلو په وخت كي په لندن كي توقف و كړ . ده د ۱۹٤۷ كال د جون د مياشتي پر ۳۰ نيټي په يوه ملاقات كي د انگريزانو صدر اعظم ارنست بيون ته و ويل چي په پاكستان پوري د صوبه سرحد پر الحاق باندي افغانان خواشيني سوي دي . افغانستان د هند په نيمه وچه كي د دوو دومينيونوسره مخالف نه دې ولي د آزادۍ په مجوزه پلان كي پښتنو ته د خپلي خوښي د حكومت جوړولو حق نه دې وركړه سوې. ده ته په جواب كي ارنست بيون ويلي و چي هغه وخت چي د پاكستان دومينيون په كار پيل وكړي افغانستان او پاكستان كولای سي چي د صوبه سرحد موضوع په دوستانه ډول سره حل كړي .

د ۱۹٤۷ كال د سبتمبر په مياشت كي د پاكستان د گورنر جنرال خاص نماينده نواب زاده سعدالله خان كابل ته سفر وكړ . افغاني مقاماتو غوښتل چي د انگريزانو د صدر اعظم د توصيي پر اساس د صوبه سرحد پر موضوع د ده سره خبري وكړي. ده افغاني مقاماتو ته و ويل چي ده ته د داسي خبرو اجازه نه ده وركړه سوي او ده صرف د لاندي اهدافو د تحقق په غرض كابل ته سفر كړې دې .

۱ ـ د انگريزانو د سفارت څخه هغه اسناد او اموال واخلي چي په پاكستان پوري اړه لري.

۲ ـ د پاكستان سفارت په كابل كي پرانيزي .

نواب زاده سعدالله خان دا هم و ويل چي د پاكستان دولت خان د انگيزانو د دولت وارث بولي ۰ هغه تړون چي په ۱۹۲۱كال كي د افغانستان او انگريزانو تر منځ لاس ليك سوى دى ، په هغه تړون كي د ډيورنډ كرښه تانيد سوي ده ، پاكستان دغه تړون د افغانستان او پاكستان تر منځ مرعي الاجرا بولي ۰ افغاني مقاماتو ده ته په جواب كي ويلي و چي پخواني تړونونه افغانستان د انگريزانوسره لاس ليك كړي و ، اوس بايد د پاكستان سره نوي تړونونه لاس ليك سي ۰ په پاى كي پر خينو ټكو موافقه وسوه او افغانستان لازمه و بلل چي دمخه تر هغه چي د دواړو هيوادونوتر منځ سياسي مناسبات ټينگ سي افغانستان بايد خپل نماينده د خبرو له پاره كراچي ته و ليږي ۰

افغانستان نجيب الله خان د خبرو له پاره كراچي ته واستاوه ۰ ده د۱۹٤۷ كال د نومبر د مياشتي پر ۱ ۷ نيټي په كراچي كي د پاكستاني مقاماتو سره خبري پيل كړي ده په كراچي كي د امريكا د شا رژ دافير مستر لوويس سره هم وليدل او هغه تــه يــي د سرحد پر موضوع باندي د افغانستان دريځ تشريح كړ۰ نجيب الله خان د پاكستان د سكرترجنرال اكرام الله سره د خبرو په وخت كي و ويل چي افغانستان آرزو نه لري چي د سرحد پښتانه د پاكستان څخه بيل كړي ، بلكه افغانستان غواړي چي پښتانه د ننه په پاكستان كي يوه مشخصه صوبه او داخلي آزادي و لري څو خپل سياسي وحدت او قومي هوويت له لاسه ورنه كړي او د پاكستان په نوروو صوبو كي ورك نه سي ۰ د پاكستان سكرتر جنرال ، نجيب الله خان ته و ويل چي پاكستان غواړي چــي د افغانستان پــه مرسته د سرحــد د موضوع لــه پــاره د حل يــوه لاره پيدا كړي ۰

په ۱۹٤۹ كال كـي د پاكستان گورنر جنرال خواجـه ناظم الدين په پيښور كي و ويل چي آزاد سرحد د پاكستان نه بيليدونكي برخه ده ۰ د خواجه ناظم الدين دغي وينا د افغانستان او پاكستان د مناسباتو په تاريخ كي يو نوى باب خلاص كړ ، چي تر دغي وينا وروسته د دواړوو هيوادونوتر منځ ، سوړ جنگ پيل سو . ( ۳ ۹ )

د ډيورنډ د كرښي د پـوري خوا پښتنو سره د افغانستان د خواخوږى څو ټكي

دلته راوړل کيږي :

ـ د امير حبيب الله خان د سلطنت په وخت کي د آزاد سرحد د پښتنو سره د خون شريکي او ورور ګلوي علايقو پر بنا دوستانه او د خپلوۍ مناسبات پالل کيدل او په مهمو سياسي تصاميمو کـي د سرحـد د خلګو سره مشوره کيده ۰ لکـه چـي پـه کال ۱۹۱٥ کي د سرحد پښتانه هم هغي لويي جرګي ته رابلل سوي وو چي په لومړی جهاني جنګ کي يي د افغانستان بي طرفي تثبيت کړه ۰

ـ د اعليحضرت امان الله خان د سلطنت په وخت کي د سرحدي قبايلو سره د افغانستان سياسي او فرهنګي علايق ورځ په ورځ ټينګيدل او د آسيا په دغه سيمه کي يي د مسلمانانو د آزادۍ او ملي خپلواکی جنډه پورته کړي وه ۰

ـ د محمد نادرشاه د سلطنت په وخت کي د سرحدي اقواموسره دوستانه علايق پالل کيدل ، محمد نادر شاه په ( ۱ ۹ ۳ ۱ )د ۰ ۱ ۳ ۱ ه ش کال د سرطان په مياشت کي د ملي شورا په افتتاحيه وينا کي و ويل (( ۰۰۰ کولای سو و وايو چي سرحدي اقوام او موږ د مذهب او قوميت په لحاظ يو شي يو ۰ ښايي چي انګريزانو به د افغانستان سره د سرحدي اقوامو همدردي او د دوی سره د افغانانو ورور ګلوي د ډير و پخوانيو کلونو څخه ليدلي او تجربه کړي وي ۰ موږ د دغي همدردۍ څخه انکار نه سو کولای ۰ د سرحدي اقوامو آرامي هروخت زموږ هيله ده )) ( ٤ ۰ )

ـ اعليحضرت محمد ظاهر شاه د ۱۳۲٦ ه ش کال ( ۱۹٤۷ ) افغانستان د خپلواکۍ د جشن په وينا کي په دي ارتبا ط و ويل (( ... موږ د آزادو قبايلو د سرنوشت څخه بيعلاقي پاته کيدلای نه سو، دوی ته بايد بي له قيد او شرطونو څخه د خپل سر نوشت د ټاکلو حق ورکړه سي ))

پاکستان په ۱۹٤۹ کال دجون په مياشت کي خان عبدالغفار خان او د پښتنو نور مشران بنديان کړه ، په قبايلي ايجنسيو کي يي خپل عسکري قوتونه تقويه کړه ، او د افغانستان او پاکستان تر منځ د سولي د خبرو امکانات د منځه ولاړه ۰

افغانستان د ماوراي سرحد د پښتنو د حقوقو په ارتباط خپلي پالسي ته تغيير ورکړ چي د افغانستان په نوي پالسي کي د پښتنو د خپلي خوښي د آزادۍ د حق

غوښتنه تائید کړه سوه ۰

په ۱۹٤۹ کال د آگست د میاشتي پر ۲ ۱ نیټي د افریدیو د قوم په مرکز یعني تیرا کي د قبایلي اقوامو له خوا یوه جرگه جوړه سوه ، په دغي جرگي کي نه یوازي د پښتونستان بېرغ پورته سو بلکه د پښتونستان نوم او بیرغ په دغي جرگي کي تثبیت سو دافغانستان دولت د قبایلي اقوامو د دغي فیصلي ملاتړ و کړ۰ تر دغي جرگي وروسته هر کال د آگست د میاشتي ۱ ۳ نیټه د پښتونستان د ورځي په نامه په ټول افغانستان کي نماځله کیده ۰

د قبایلي اقوامودغه جرگه د پاکستان د عکس العمل موجب سوه ۰ پاکستان پر مغلگي باندي چي د افغانستان خاوره ده ، بمباري وکړه ۰

په ۱۹٤۹ کال د آگست دمیاشتي پر ۲ ۱ نیټي دافغانستان حکومت لویه جرگه راوغوښته دغي جرگي د ۱۸۹۳ کال د ډیورنډ موافقتنامه د ۱۹۰٥ کال د امیر حبیب الله خان سره د انگریزانو عهد نامه ، د ۱۹۱۹ کال د راولپنډي د سولي معاهده ، د ۱۹۲۱ کال د افغانستان او انگریزانو تر منځ عهد نامه ، لغوه کړي ۰ دا ټول تړونونه په هغو سیمو پوري اړه لري چي د افغانستان او پاکستان تر منځ د نزاع موجب سوي دي ۰ دغي لویي جرگي د پښتونستان د موضوع ملاتړ و کړ ، د افغانستان حکومت ته یي توصیه وکړه چي دغې ملي موضوع ته خاصه توجه و کړي .

وروسته د ۱۹٥٥ کال لویي جرگي د افغانستان حکومت ته واك ورکړ چي د سینتو د نظامي اتحادیي د احتمالي حملي د مخنوي په خاطر دي د افغانستان له پاره وسله برابره کړي ، په دغه اساس د افغانستان حکومت د شوروي اتحاد او چکوسلواکیا څخه د نظامي مرستو غوښتنه و کړه . ( ۱ ٤ )

د پښتونستان موضوع د افغانستان د راتلونکو حکومتونو د خارجي سیاست اساس و گرځیدې د افغانستان د دغه سیاست په مقابل کي د پاکستان د حکومت له خوا په وچه کي محصور افغانستان د ترانزیتي اموالو د نقل او انتقال په لاري کي ، رنگارنگ مشکلات ایجاد سوه چي افغانستان د خپل خارجي تجارت او انکشافي پروژو د سامان آلاتو د راوړلو له پاره مجبور سو چي یو بل همسایه هیواد شوروي

اتحاد ته مراجعه و کړي . ( ٤٢ )

### ۶ ـ د نظامي اتحاديو په وجه افغانستان تر فشارلاندي راغی

تر دوهم جهاني جنګ وروسته په آسيا کي لاندي دوي نظامي اتحاديي جوړي سوي چي هدف يي په دغي سيمي کي د شوروي اتحاد دنفوذ مخنيوی و ۰ د افغانستان دوه ګاونډي هيوادونه لکه پاکستان او ايران د دغو اتحاديو غړي وو ۰ دواړوو نظامي اتحاديو په وچه کي محصور افغانستان له پاره ډيري سياسي او اقتصادي ستونزي پيدا کړي او د افغانستان د خارجي سياست په تغيير کي يي مؤثر رول ولوباوه ۰

۱ ـ د CENTO نظامي اتحاديه : په ۱۹۵۵ کال کي دعراق او ترکيي تر منځ يو نظامي تړون لاس ليك سو ، چي دبغداد د اتحاديي په نامه يي شهرت درلود۰ يو کال وروسته پاکستان ، ايران او انګريزان په دغي اتحاديي کي شامل سوه ۰ امريکا د مشاهد غړي په توګه د دغي اتحاديي سره همکاري کوله ۰ په ۱۹۵۸ کال په عراق کي نظامي کودتا و سوه په ۱۹۵۹ کال کي عراق د دغي اتحاديي څخه و وت او د اتحاديي مرکز انقري ته انتقال سو ، چي وروسته د سينتو يا مرکزي اتحاديي په نامه يادېدی . حسنين هيکل ليکي ، په هغه وخت کي چي په عراق کي کودتا وسوه جمال عبدالناصر په يوګوسلاويا کي و . دغي کودتا د سيمي حالات ډير بحراني کړه او ددي امکان موجود و چي امريکايان او انګريزان به خپلي قواوي په بيروت او عمان کي پلي کړي . د حالاتو سره د مقابلي په غرض جمال عبدالناصر سمدلاسه مسکو ته سفر وکړ. ده په مسکو کي د خرسچف د يوي پوښتني په جواب کي وويل چي (( موږ د عراق په کودتا خبروو او اوس د سينتو د اتحادي ټول اسناد د مصر لاس ته ورغلي دي )) شورويانو غوښتل چي دغه اسناد دوی ته ورکړه سي ولي جمال عبدالناصر ونه منله . ( ٤٣ )

امريکايانو غوښتل چي افغانستان هم د دغي اتحاديي غړی سي ، خو افغانستان د ايران او پاکستان سره په مناسباتو کي ستونزي در لودلي ۰ ايران د هلمند د رود د

اوبو څخه ډيري اوبه غوښتي په داسي حال کي چي افغانستان د ایران دا غوښتنه نه سوه پر ځای کولای ۰ پاکستان د پښتونستان پر موضوع باندي د افغانستان سره خبرو ته نه حاضریـدې ۰

د افغانستان سیاسي موقف داو تر څو چي د ایران او پاکستان سره اوسني مشکلات موجود وي ، افغانستان نه سي کولای چي د دغو هیوادونو سره په اتحاديو کي شامل سي او افغانستان نه سي کولای چي د یوه جهاني قوت یعني شوروي اتحاد په مقابل کي و دریږي چي د هغه سره ( ۱٤۸۱ ) میله اوږد سرحد لري ۰

د سینتو نظامي اتحادیه د معینواهدافو له پاره چي امریکایانو او انگریزانو غوښتل . جوړه سوې وه ۰ خو د اتحادیي نورو غړو د غربي نړي اهداف په نظر کي نه نیول . دوی خپل اقتصادي او تخنیکي ودي ته متوجه وو ، نو ځکه په۱۹٦۱ کال کي دغه اتحادیه منحله سوه او پر ځای یي د منطقوي انکشاف او همکارۍ اتحادیه .R.C.D جوړه سوه ، چي غړي یي ایران ، پاکستان او ترکیي هیوادونه وو ۰

په ۱۹٦۳ کال کي افغانستان د ایران څخه د اقتصادي مرستو غوښتنه و کړه ۰ ولي ایرانیانو افغانستان ته و ویل تر هغو چي افغانستان په ( آر . سي. ډي .) کي شامل نه سي تر هغو به د افغانستان سره اقتصادي مرستي و نه سي ۰

۲ ـ دSEATO سیاتو نظامي اتحادیه په ۱۹٥٤ کال کي تاسیس سوه ، دا اتحادیه د آسیا د جنوب ختیز هیوادونو د مجموعي امنیت د پاره جوړه سوې وه ۰ پاکستان ، فلپین، تایلند ، استرلیا ، نیوزیلند ، امریکا ، انگریزان او فرانسي هیوادونه په دغي اتحادیي کي غړیتوب درلود ۰ ولي د سیمي مهمو هیوادونو لکه هند ، اندونیزیا ، برما او مالیزي په دغي اتحادیي کي نه وو شامل سوي . ( ٤ ٤ )

د اتحادیي د یوه تړون پر اساس کمبودیا ، لاوس او جنوبي ویتنام ، د اتحادیي تر نظامي چتر لاندي راوړل سوي وو ۰ د ویتنام په جنگ کي د اتحادیي ټولو غړو د جنوبي ویتنام دفاع و نه کړه ، یوازي امریکا ، استرلیا ، نیوزیلند او فلپین جنوبي ویتنام ته عسکر و لیږل ۰

پاکستان د سیاتو د نظامي اتحادیي څخه ډیر مستفید سو ، پاکستان د اتحادیي په

ټولو غړو دا و منله چې د ډیورنډ کرښه د پاکستان بین المللي سرحد دی ٠

پـه ١٩٧٥ کال کــې چــې جنوبي او شمالي ویتنام سره یــوځای سو ه پــه ١٩٧٧ کال کې د سیاتو اتحادیه منحله سوه . ( ٤٥ )

## ٧ ـ د عدم انسلاك نهضت

د نړۍ تر استعمار لاندي سیمو کې د مظلوموانسانانو د وحدت او همکاري هڅې ډیر اوږد او روښانه تاریخ لري ، چې دلته يې د لیکلو ګنجایش نه سته ٠ تر جهاني دوهم عمومي جنګ وروسته د اندونیزیا په شمول په آسیا او افریقا کې ، ډیر هیوادونه آزادی ته ورسیدل٠ د آزادۍ په وخت کــې د اندونیزیـا او هـالیند د لښکرو تــر منځ خونړي جګړه پیښه سوه ٠

د ١٩٤٩ کال د جنوري په میاشت کې پنځلسو آسیایي هیوادونو په نوي ډلي کې یوه غونډه وکړه ٠ په دغي غونډې کې دغو هیوادونو فیصله وکړه چې د هالینډ په مقابل کې به واحد دریځ غوره کوي ٠ دغو هیوادونو دا فیصله هم وکړه چې په ملګرو ملتونو کې به د منځګړو په حیث خپلو همکاریو ته ادامه ورکوي٠ دغو هیوادونو د نړۍ د ستونزو د حل په لاره کې مخصوصا د کوریا د جنګ په ختمولو کې فعاله برخه واخستله ٠ د هند صدر اعظم جواهر لال نهرو ، د اول وار له پاره د هیوادونو دغي همکاري ته د مثبتي بي طرفي نوم ورکړ . ( ٤٦ )

د اندونیزیـا صدر اعظم Ali Sastromidjojo لومړنـې دولتي مشر و چـې په ١٩٥٣ کال د اګست په میاشت کې د خپل هیواد پــه پارلمان کــې د اسیایــي او افریقاني هیوادونود ښې همکاري غوښتنه و کړه ٠ د دغي وینا پر اساس د ١٩٥٤ کال د اپریل په میاشت کې د اندونیزیا ، هند ، پاکستان ، سیلون او برما صدر اعظمانو ، د کولمبو په ښار کې یوه غونډه وکړه هلته٠دوی فیصله وکړه چې یوه بله غونډه به د اندونیزیا د Bogor په ښار کې وکړي ٠

د بوګور په غونډې کې تصمیم و نیول سو چې د باندونګ کنفرانس ته ځني اسیایي او افریقاني هیوادونه را و بلل سي او لاندي ټکو ته باید توجه و سي :

د دریمي نړۍ پر پرابلمونو به خبري کیږي ـ پر نژادي توپیر او استعمار باندي به بحث کوي ـ د اسیایي او افریقایي هیوادونو تر منځ به همکاري جلبوي او د نړۍ د سولي سره به مرسته کوي ۰

د ۱۹۵۵ کال د اپریل د میاشتي د ۱۸ تر ۲٤ نیټي پوري د اندونیزیا د Bandung په ښار کي لاندي ۲۷ هیوادونو د باندونګ په تاریخي غونډي کي برخه واخسته ۰

افغانستان ، برما ، کمبودیا ، سیلون ، چین ، مصر ، حبشه ، ګولډ کوسټ ، هند ، اندونیزیا ، ایران ، عراق ، اردون ، لاوس ، لبنان ، لبیریا ، نیپال ، شمالي ویتنام ، پاکستان ، فلپین ، سعودي عربستان ، سودان ، سوریه ، تایلند ، ترکیه ، جنوبي ویتنام او یمن . ( ٤٧ )

د باندونګ په کنفرانس کي افغانستان فعاله برخه واخسته په دغه کنفرانس کي د افغاني هیات مشري ، سردار محمد نعیم خان پر غاړه درلوده ۰

د ګډ ژوند پنځه اصلونه چي د باندونګ د کنفرانس له خوا تصویب سوه په لاندي ډول وو :

۱ ـ یو د بل د خاوري بشپړتیا او ملي حاکمیت ته به احترام کوي

۲ ـ یو پر بل به تعرض نه کوي

۳ ـ یو د بل په کورنیو چارو کي به مداخله نه کوي

٤ ـ یو د بل سره به مرسته کوي

٥ ـ په سولي کي به ژوند سره کوي

دلته دا خبره د یادولو وړ ده چي پورته اصلونه یو کال پخوا د ۱۹٥٤ کال د اپریل د میاشتي پر ۲۹ نیټي ، د تبیت په مورد کي د جواهر لال نهرو او چو وین لای له خوا دغه پنځه اصلونه منل سوي وو ۰

حسنین هیکل په خپل اثر کي لیکي چي (( ټاکل سوي وه چي د ۱۹٥٦ کال د مارچ په میاشت کي د آسیایي او افریقایي هیوادونو د غورځنګ دوهمه غونډه ، دوهم باندونګ ، په الجزایر کي جوړ سي . شورویانو ادعا کوله چي دوی یو آسیایي هیواد دی او باید د الجزایر په غونډي کي برخه واخلي ، ولي چینایانو به ویل چي شوروي

اتحاد يو اروپايي هيواد دى او په دغه كنفراس كي د گډون حق نه لري ، چي په دغه وجه ددغه غورځنگ غړي پر دوو ډلو وويشل سوه . د چين صدر اعظم چاوان لاى په كنفرانس كي د برخي اخستلو له پاره قاهري ته رسيدلې و چي د جون د مياشتي پر ۹ ۱ نيټي هواري بومدين د بن بلا پر ضد په الجزاير كي كودتا وكړه او د آسيايي او افريقايي هيوادونو د غورځنگ دغه غونډه و ځنډيدله )) ( ٤ ٨ )

شپږ كاله وروسته د ۱۹٦۱ كال د سبتمبر د مياشتي په لومړي ورځ د ناپيلو هيوادونو بل كنفرانس د يوگوسلاويا په مركز بلگراد كي جوړ سو ۰ په دغه كنفرانس كي د افغاني هيات مشري محمد داود خان پر غاړه درلوده ۰

د بلگراد كنفرانس د سيمي پر اساس نه بلكه د عدم انسلاك د اصولو پر اساس جوړ سوې و۰ هغه هيوادونه چي د نظامي اتحاديو غړي وو دغه كنفرانس ته دعوت نه سوه ۰ د افريقا هغه هيوادونه چي د فرانسي سره يي نژدي اړيكي درلودل په دغه كنفرانس كي د اشتراك څخه محروم سوه ۰ پاكستان او ايران دواړه ، كنفرانس ته و نه بلل ســوه ۰

د بلگراد په كنفرانس كي د اشتراك له پاره د استريا ، سويدن ، آيرليند او لاتيني امريكا څلوروو هيوادونو ته بلن ليكونه استول سوي وو ۰ د دغو هيوادونو څخه كيوبا يو لوى هيات كنفرانس ته ليږلې و ۰ برازيل ، بولوويا او اكوادور ، د مشاهد غړو په ډول په كنفرانس كي برخه واخسته ۰

د بلگراد په كنفرانس كي لاندي ٤ ۲ هيوادونو گډون در لود :

افغانستان ، د الجزائر جلاوطن حكومت ، برما ، كمبوديا ، گيني ، كيوبا ، قبرس ، حبشه ؛ گانا ، گيني ، هند ، اندونيزيا ، عراق ، لبنان ، مالي ، مراكش ، نيپال ، سعودي عربستان ، سوماليه ، سودان ، تونس ، عربي امارات ، يمن او يوگوسلاويا . ( ٩ ٤ )

اوس دغه كنفرانس ۳ ۱ ۱ اصلي او ۳ ۱ مشاهد او ۷ ۲ ميلمانه غړي لري اوس د دغه نهضت په كنفرانس كي ٤ ۲ بين المللي مؤسسي برخه اخلي چي د هغو د جملي څخه ۶ مشاهدي او ۸ ۱ ميلمني مؤسسي دي ۰ ( ۵ ۰ )

## ۸ ـ د شورا لنډه تاریخچه

د افغانستان لومړي شورا په ۱۹۳۰ کال د سبتمبر په میاشت کي د محمد نادر خان د سلطنت په وخت کي جوړه سوی وه ، دغي شورا ( ۱۱۱ ) غړي درلودل . د شورا ریس عبدالاحد خان مایار د پاچا له خوا انتصاب کړ سو ، پر دغه انتصاب باندي مشهوره ملي مبارز د کندهار وکیل ارواښاد عبدالعزیز خان الکوزي اعتراض وکړ ، او ده د شورا د ریس ټاکل د کیلانو خپل کار بللی و ، چي ددغه اعتراض په وجه بابا عبدالعزیز خان د شورا د غړیتوب څخه و ایستل سو ، په سر کي دی خارجه وزارت ته ولیږل سو او وروسته بندي کړ سو او ( ۱۳ ) کاله په محبس کي پاته سو او هلته یي ډیري روحي او جسمي شکنجي ولیدلي ( ۵۱ )

د شورا اوومه دوره د افغانستان د پارلماني مبارزاتو په تاریخ کي ځانګړی ځای لري ددغي دوري د ملي مبارزینو شمیر ( ۵۰ ) کسانو ته رسیدی . پوهاند عبدالحی حبیبي میر غلام محمد غبار ، ګل پاچا الفت او عبدالرحمن محمودي په دغي دوري کي وکیلان وو . د اوومي دوري ریس عبدالهادي خان داوي و .

د شورا لومړی ۱۱ دوري هره یوه د ( ۳ ) کلونو له پاره وه ، تر ۱۹٦٤ کال وروسته د دیموکراسی په دوري کي ، شورا به ( ولسي جرګي او مشرانو جرګي ) دواړو ته ویل کیدل ، چي ( ۱۲ ) او ( ۱۳ ) تقنیني دوري به د ( ٤ ) کلونو له پاره وي . په دغو دوو تقنیني دورو کي به د ولسي جرګي د غړو شمیر ( ۲۱٦ ) وکیلان وو .

د شورا او ولسي جرګو ریسان لاندي کسان وو :

عبدالاحد خان مایار ، عبدالهادي خان داوي ، عبدالرشید خان الکوزی ، محمد نوروز خان ، ډاکټر عبدالظاهر او ډاکټر محمد عمر وردګ .

د شورا دغه ۱۳ تقنیني دوري د محمد داود خان په کودتا سره پای ته ورسیدلي

---

### د لومړي فصل یادداشتونه

۱ ـ مروت ، فضل الرحیم ، په افغانستان کي د کمونیزم ظهور او تکامل ، د کتاب د

مقدمې څخه ۰
۲ ـ غبار ، میر غلام محمد ، افغانستان در مسیر تاریخ ، لومړی ټوک، مخ ٤ ٤ ٤
۳ ـ همدا اثر ، مخ ٤ ٤ ٤
٤ ـ همدا اثر ، مخ ۶ ٤ ٤
۵ ـ همدا اثر ، مخ ۷
۶ ـ همدا اثر ، مخ۵ ٤ ٤
۷ ـ مروت ، پورته یاد شوی اثر، مخونه د ۷ څخه تر ۹ پوري
۸ ـ غبار ، پورته یاد شوی اثر ،مخ ۷ ۸ ۶
۹ ـ همدا اثر ، مخ ۸ ۸ ۶
۱ ۰ ـ کاکړ ، محمد حسن ، سیاسي تاریخ... مخ ۱ ۱ ۱
۱ ۱ ـ سایکس ، پرسي ، د ډیورنډ بیوګرافي ، مخونه ۲۰۵ څخه تر۲۱۷
۱ ۲ ـ مروت ، ذکر شوی اثر ، مخ ۲ ۳
۱ ۳ ـ غبار ، ذکر شوی اثر ، مخ ۲ ۹ ۶
۱ ٤ ـ مروت ، ذکر شوی اثر ، مخ ۱ ۳
۱ ۵ ـ کاکړ ، ذکر شوی اثر ، مخ ۲ ۱ ۱
۱ ۶ ـ همدا اثر ، مخ ۱ ۶ ۱
۱ ۷ ـ غبار ، ذکر شوی اثر ، مخ ۰ ۹ ۶
۱ ۸ ـ همدا اثر ، مخ ۶ ۹ ۶
۱ ۹ ـ مروت ، ذکر شوی اثر ، مخ ۱ ۳
۲ ۰ ـ مبارز، عبدالحمید ، تحلیل واقعات سیاسي افغانستان ، مخ ۱ ۸ ۲
۲ ۱ ـ پولادا ، افغانستان او امریکا ، مخ ۶ ۳
۲ ۲ ـ همدا اثر ، مخ ۸ ۳
۲ ۳ ـ همدا اثر ، مخ ۰ ٤
۲ ٤ ـ همدا اثر ، مخ ۱ ٤
۲ ۵ ـ مروت ، ذکر شوی اثر، مخ ۰ ۷ ۲

۲ ۶ ـ مروت ، همدا اثر ، مخونه د ۰ ۷ ۲ څخه تر ۱ ۷ ۲

۲ ۷ ـ همدا اثر ، مخ ۰ ۷ ۲

۲ ۸ ـ همدا اثر ، مخ ۱ ۷ ۲

۲ ۹ ـ همدا اثر ، مخ ۱ ۷ ۲

۳ ۰ ـ همدا اثر ، مخ ۲ ۷ ۲

۳ ۱ ـ همدا اثر ، مخ ۳ ۷ ۲

۳ ۲ ـ همدا اثر ، مخ ۳ ۷ ۲

۳ ۳ ـ همدا اثر ، مخ ۶ ۰ ۳

۳ ٤ ـ همدا اثر ، مخ ۳ ۷ ۲

۳ ۵ ـ همدا اثر ، مخ ۳ ۷ ۲

۳ ۶ ـ همدا اثر ، مخ ۳ ۷ ۲

۳ ۷ ـ نعیم ، محمد عزیز، د مجاهد ولس د ١٩٩٦ کال د جولای د میاشتي ګڼه

۳ ۸ ـ نعیم ، د مجا هد ولس د ١٩٩٦ کال د سبتمبر د میاشتي ګڼه

۳ ۹ ـ همدا اثر ۰

٤ ۰ ـ خلمي ، محمد ولـي ، د افغا نستان او روسیي د سیا سي روابطو لنډه تاریخچه مخ ۰ ۸ ۱

٤ ۱ ـ غوث ، عبدالصمد ، د افغانستان سقوط ، مخ ۳ ۷

٤ ۲ ـ مبارز ، ذکر شوي اثر مخ ۱ ۸ ۲

٤٣ ـ هیکل ، حسنین ، ابوالهول او کمیسار، د محمد آصف اکرام ژباړه په ١٩٦٧ کال کي خپور شوی ، مخونه ۶ ۹ تر٤ ۰ ۱

٤ ٤ ـ د امریکا دایرت المعارف ، شپږم ټوك ، مخ ۷ ۸ ۱

٤ ۵ ـ همدا اثر ، ټوك ۵ ۲ مخ ۲ ٤ ۳

٤۶ ـ د مارلین لورانس تصحیح ، بیطرفي او عدم انسلاك ، مخ ٤

٤ ۷ ـ همدا اثر ، مخ ۶ ٤ ۲

٤ ۸ ـ هیکل ، ذکر سوي اثر مخ ۱ ۵ ۱

۴۹ ـ د  لورانس ذکر شوې اثر ، مخ ۹ ٤ ۲
۵۰ ـ د نانا سفرنا ؛ د خطابي متن ، د عدم اسلاك نهضت ، مخ ۲
۵۱ ـ غبار ـ ذکر شوی اثر ـ مخ ۱۰٤ دوهم ټوك

# دوهم فصل

## ب : د محمد داود خان د صدارت دوره

### ۱ ـ د محمد داود خان حکومت

۱۹۵۳ ــ ۱۹۶۳

ارواښاد محمد داود خان د سردار محمد عزیز خان زوی دی ، په ۱۹۰۹ کال په کابل کي زیږیدلی دې ۰ ده متوسطه تحصیلات د استقلال په لیسي کي سر ته رسولي دي ۰ په فرانسي کي یي د مهندسي په څانگي کي درس ویلې دې او د کابل په نظامي تعلیمگاه کي یي نظامي زده کړه کړي ده ۰

دی په ۱۹۳٤ کال د مشرقي د ولایت ، نایب الحکومه سو ۰ په ۱۹۳۵ کال د کندهار د ولایت د نایب الحکومه په حیث مقرر سو ، د ۱۹۳۹ کال څخه تر ۱۹٤۷ کال پوري د مرکزي قواوو قوماندان و ۰ پـه ۱۹٤۸ کال کي د یوه کال له پاره داخله وزیر سو ، دڅه مودي له پاره په پاریس کي افغاني سفیرو . د ۱۹٤۹ کال څخه تر ۱۹۵۳ کال پوري دشاه محمود خان په کابیني کي ددفاع وزیر و ۰

محمد داود د ۱۹۵۳ کال د سبتمبر پر شپږمي نیټي ، د کابیني په جوړولو مؤظف

کړ سو . دی یو وطن پرست او د عیاشي او رشوت خوري ځخه یو مبرا افغان و ، صادق مسلمان او ډیر باتقوا و . دی د رهبري سوي اقتصاد طرفدار و او په عین حال کي یي زمینداري او خصوصي سرمایه داري هم تقویه کوله . دی د هغو کسانو سره چي امتیازات یي د ځان له پاره غوښتل ښه نه و ، حتي ده د خپل فامیل د امتیازاتو سره مخالفت کاوه ، ده د خپل نامه ځخه د والاحضرت لقب رسما لیري کړی و .

محمد داود خان غوښتل چي د افغانستان ځخه یو مترقي ، د سیاسي ، اقتصادي او اجتماعي پلوه پر خپلو پښو ولاړ هیواد جوړ سي . ده غوښتل چي په هیواد کي دي افراط او تفریط ورك سي او د ژوندانه په وسیلو کي د منظمو اقتصادي او سیاسي پلانونو په جوړولو سره تعدیلات منځ ته راسي .

په خارجي سیاست کي ده د افغانستان د گوشه گیرۍ او عنعنوي منزوي سیاست ځخه د نیکمرغه او هوسا ژوند کولو په هځه مخ واړاوه . ( ۱ )

په دغه وخت کي چي محمد داود خان د افغانستان صدر اعظم سو په نړۍ او سیمي کي ډیر لوی او عظیم تحولات رامنځ ته شوي وو .

د دوهم جهاني جنگ په نتیجه کي المان ، جاپان او ایتالیا ماته و خوړله ، د نړی دوه نور استعماري قوتو نه لکه انگریزان او فرانسه په جنگ کي ډیر متضرر سوه او خپل مستعمرات یي له لاسه ورکړه . دوو نورو جهاني قوتونو لکه امریکا او شوروي اتحاد په نړی کي ظهور و موند.

امریکا چي د جنگ د میدان ځخه لیري و ، په جنگ کي ډیر متضرر نه سو . امریکا د لویدیزي اروپا د هیوادونو په حمایه او آزادولو کي لویه برخه واخسته . د جاپان د یوریشیما او نگا سا کي پر ښارونو یي اتومي وسله استعمال کړه او جاپان یي د جگړي پریښوولو ته مجبور کړ . په جنوب ختیز کي یي تر فلیپین پوري د جاپان متصرفات و نیول..

شوروي اتحاد هم د یوه فاتح هیواد په بڼه پر ختیزي اروپا او نیمايي کوریا باندي مسلط سو . چین چي د شوروي اتحاد متحد و هغه هم پــه دغــه وخت کــي خپل انقلاب ثمر ته ورساوه . ( ۲ )

امریکا او شوروي اتحاد چي په دوهم جهاني جنگ کي سره متحد وو  تر جنگ وروسته پر جهاني مسایلو یو د بل رقیبان سول ، هر یوه غوښتل چي د نړي هیوادونه تر خپل سیاسي او اقتصادي نفوذ لاندي ورولي ۰

د انگریزانو د دوهم جهاني جنگ د وخت صدر اعظم Wiston Churchill د ۱۹٤٦ کال د مارچ د میاشتي پر پنځمي نیټي ، د امریکا د ء مزوري ء د ایالت په ویستمنستر کالج کي په خپل یوي مشهوري وینا کي  چي د وسپنیزه پردې په وینا شهرت لري ، د نړي ټول هیوادونه د کمونیزم راتلونکو  خطرونو ته متوجــه کړه ۰ چــې تــر دغـــي ویـنـاوروسته په نړي کي سوړ جنگ پیل سو . ( ۳ )

امریکایانو د لویدیزي اروپا د بیا ودانولو له پاره د مارشال پلان جوړ کړ ، چي د دغه پلان په وسیله یي په لږ وخت کي یعني د ۱۹٤۷ کال څخه تــر ۱۹٥۲ کال پوري جنگ زپلي لویدیزه اروپا پر خپلو پښو و دروله۰

امریکایانو د دي له پاره چي په نړي کي د شورویانو د نفوذ او پراختیا مخه و نیسي ، د شوروي اتحاد پر شا او خوا یي دNATO, SEATO,CENTO  نظامي اتحادیي جوړي کړي  دا اتحادیي د غربي اروپا ، منځني آسیا او د آسیا تر جنوب ختیز پوري د یوه ځنځیر په شکل سره تړلي سوي وې ، چي پاکستان او ترکیه د دغه ځنځیر د اتصال کړي وې۰  شورویانو د ناتو د اتحادیي سره د مقابلي له پاره ، د ختیزي اروپا د هیوادونو په گډون د وارسا نظامي اتحادیه جوړه کړه ۰

د بلي خوا څخه  تر جهاني جنگ وروسته ډیر آسیایي او افریقایي هیوادونه چي پخوا د اروپایانو تر استعمار لاندي وو ، آزادي ته و رسیدل ، په دغو خپلواکو هیوادونو کي ډیر تکړه ملي مبارزین لکه د مصر جمهور رئیس جمال عبدالناصر ، د اندونیزیا جمهور رئیس عبدالرحیم سوکارنــو او د هند صدر اعظم جـواهــر لال نهرو  قــدرت تـه و رسیدل ۰

نوو آزاد سوو هیوادونو د خپل اقتصادي پرمختیا او ملي حاکمیت د خوندي ساتلو له پاره  فیصله و کړه چي د ختیز او لویدیز قوتونو په نظامي او مفکوروي ډلو  تپلو کي نه شاملیږي ۰ او د ځان له پاره یي د عدم انسلاك لاره غوره کړه ، دوی په دي فکر کي

سوه چي آزاد شوي هيوادونه بايد يو د بل سره نژدي سي ، آزاد قضاوت ولري او په جهاني مسايلو كي فعاله برخه واخلي ۰ په دغه اساس د عدم انسلاك د نهضت لومړۍ غونډه په ۱۹۵۵ كال كي په باندونگ كي جوړه سوه ۰

په شوروي اتحاد كي چي د ستالين تر مړيني وروسته يو څه تحولات راغلي وو ، دوی نوو آزاد سوو هيوادونو ته د نژديوالي په غرض ، په خپل خارجي سياست كي د گډ ژوند پالسي غوره كړه ۰ څرنگه چي د عدم انسلاك مفكوره د خارجي استعمار او استثمار پر ضد مفكوره وه او په نظامي اتحاديو كي د شمول مخالف و ، نو دا دواړه ټكي د شورويانو د تاييد وړ وو خو غربي هيوادونو دا دواړه ټكي په خپل ضد بلل ۰ شورويانو د ناپيلو هيوادونو سره اقتصادي او فرهنگي مرستي پيل كړي او د دغه نهضت د پياوړي كولو له پاره يي ډيري هلی ځلی و كړي ۰

د دوهم جهاني جنگ په نتيجه كي د هند نيمه وچه هم آزاده سوه ، او د هند او پاكستان هيوادونه هم جوړ سوه ۰ خرنگه چي د نړي په ډيرو سيمو كي د انگريزانو ځای امريكايانو و نيوي نو په دغه اساس پاكستان د امريكا يو متحد هيواد سو ۰

په دغي مرحلي كي افغانستان د دوو لويو قطبونو تر منځ چي امريكا او شوروي اتحاد وو واقع سو ۰ افغانستان ته ډيره مشكله سوه چي يوي خوا ته ولاړ سي او د بل جهاني قوت په مقابل كي و دريږي ۰ د پورته ذكر سوو علتونو په وجه ، افغانستان خپل پخواني خنثي عنعنوي خارجي سياست پريښووی ، او د نـوو آزاد سوو هيوادونـو پـه ډله كـي و دريـد او پـه ۱۹۵۵ كال كـي يـي د بـاندونگ پـه كـنفرانس كـي فـعـالــه برخه واخستله ۰

خرنگه چي په دغه وخت كي د سيمي سياسي او نظامي حالاتو تغيير كړي و ، افغانستان د خپل استقلال ، د خاوري تماميت او ملي امنيت د ساتلو له پاره مجبور سو چي د امريكا څخه د وسلو د رانيولو غوښتنه و كړي ، ولي امريكا ، افغانستان ته د نظامي مرستو د وركولو څخه ډډه و كړه ۰ دوی افغانستان تـه و ويل ، تــرهغو چي افغانستان د پاكستان سره مخالف وي ، امريكا د افغانستان سره نظامي مـرسـتـي نه سي كولای۰

په ١٩٥٤ کال کي د امريکا د جمهور رئيس مرستيال Richard Nixon افغانستان ته سفر و کړ او د افغانستان سره يي د نظامي مرستو مخالفت اعلام کړ او د امريکا مرستي يوازي د هلمند د ناوي د انکشاف مرستو ته محدودې پاته سوي ٠

د امريکا د خارجه وزارت مرستيال George Mcghee په خپل کتاب کي ليکلي دي چي (( په ١٩٥١ کال کي سردار محمد نعيم خان ما ته و ويل چي زه نن د دي له پاره ستا دفتر ته راغلی يم چي د نظامي مرستو په ارتباط ستاسي سره خبري وکړم ، چي که امريکا د افغانستان له پاره نظامي مرستو ته حاضر نه سي ، افغانستان مجبوره دې چي د نظامي مرستو له پاره د شورويانو سره خبري و کړي ) دی اضافه کوي چي ( ما سمدلاسه خپل سکرتر ته و ويل چي د شوروي اتحاد د سفارت د تليفون نمره پيدا کړي او ما ته يي راکړي ، ده دا کار و کړ ٠ ما د شوروي د سفارت د تليفون نمره پر کاغذ و ليکله او هغه مي سردار محمد نعيم خان ته ورکړه )) ( ٤ )

افغانستان د امريکا څخه تر هغه وخته مخ وانه ړاوه ، تر څو چي امريکا د افغانستان مخالف هيواد ، پاکستان سره ډيري نظامي او نوري مرستي و کړي .

د امريکا خارجه وزير John Foster Dulles چې د عدم انسلاك د نهضت دښمن و ، په ١٩٥٦ کال د جون د مياشتي پر ٩ نيټي په يوګوسلاويا کي وويل (( هر هغه هيواد چې د امريکا ملګرې نه وي هغه هيواد د امريکا دښمن دی )) دده په قول تر هغو چي افغانستان د سينتو د اتحاديي غړی نه سي ، امريکا افغانستان د خپل ملګرو په ليست کي نه شاملوي٠

محمد داود خان په ډيره ميړانه مقاومت و کړ او د نړي د ناپيلو هيوادونــو سره و دريد او په دي لاري کي يي لوی ګامونه واخستل ٠ دی مجبور سو چي د مرستو له پاره شوروي اتحاد ته مخ واړوي ٠ ده په ١٩٥٣ کال کي د شوروي اتحاد صدر اعظم بولګانين او د کمونست ګوند منشي خرسچف افغانستان ته دعوت کړه ٠ شوروي اتحاد سل مليونه ډالره په دوه نيم فيصده تکتانه ، افغانستان ته پور ور کړ٠ افغانستان لومړنی اقتصادي پلان پيل کړ ، چي په هغه کي د کابل د ښار د سړکانو قير ، د څښلو د اوبو شبکي، د کابل د سيلو اعمار ، د جنګلك فابريکي ، د اوبو بندونه ، د برق

تولیدات ، د لویو لارو جوړول، د سالنگ تونل ، د کابل هوایي میدان او ځو نوري پروژې جوړې سوې ۰

وروسته تر هغه دوهم اقتصادي پلان ته توجه و سوه ، د دغه پلان د تطبیق له پاره د فني پرسونلو او متخصیصینو کمبود و ۵۰ د دغې نقیصې د رفع کولو له پاره د معارف ډیر فارغان د تحصیل په غرض شوروي اتحاد او د شرقي اروپا نورو هیوادونوته د تحصیل له پاره واستول سول ۰ او په عین حال کي افغاني محصلین ، هند او غربي اروپا ته هم و لیږل سول ۰ محمد داود خان غوښتل چي د ټولو هیوادونو سره ، ښه مناسبات ولري خو ځني هیوادونه د امریکا تر تاثیر لاندي وو ، نو ځکه یې د افغانستان سره لازمي مرستي نه کولي . ( ۵ )

په ۱۹۵۵ کال کي د پاکستان مرکزي حکومت ، په لویدیز پاکستان کي یو یونټ اعلان کړ ، په دغه یونټ کي صوبه سرحد او بلوچستان دواړه په پنجاب پوري وتړل سول . په کابل ، جلال آباد او کندهار کي د یو یونټ پر ضد مظاهري و سوي او مظاهره کونکي د پاکستان په سفارت ورننوتل ، د سفارت ښیښې یې ماتي کړي او د هغه هیواد بیرغ ته یې اور واچاوه۰

پاکستان په مقابل عمل لاس پوري کړ، پاکستانیان په پیښور کي په افغان بیلډینگ ورننوتل او د هغې ودانۍ په دهلیزو نو کي یې د تفنگچي فیرونه وکړه۰

دلته دامطلب د لیکلو وړ دی چي په ( افغان بیلډنگ ) کي د افغاني قونسلگرۍ او وکالت التجاري دفترونه وو ، د پاکستانیانو تر تجاوز وروسته افغان بیلډنگ بې د مرکز د اجازې څخه په پیښور کي د افغاني مامورینوله خوا رنگ او ترمیم کړ سو چي په دغه وجه د تجاوز آثار د منځه ولاړه ۰ په پیښور کي د افغاني مامورینو دغه عمل د خارجه چارو د وزارت د انزجار باعث سو ، خارجه وزارت د عبدالرحمن پژواک په مشري یو هیأت پیښور ته ولیږي ، د تحقیق په وخت کي قونسل غلام حسن ساپي د ملامتۍ با ر پر وکیل التجار عبدالرزاق فراهي واچاوه او وکیل التجار د سردار محمد نعیم خان تر ډیر قهر او غضب لاندي راغی او د کاره څخه لیري کړ سو .

د دغه کال د سبتمبر په میاشت کي د سعودي عربستان ، مصر او عراق د دوستانه

هڅو په نتيجه کي ، په کابل ، جلال آباد او پيښور کي د افغانستان او پاکستان بيرغونه د دواړو هيوادونو د ګډ هيات له خوا ، جګ کړل سوه٠

په ۱۹۵۵ کال کي په کابل کي يوه لويه جرګه جوړه سوه ، دغي لويي جرګي حکومت ته توصيه وکړه چي د نظامي اتحاديو د احتمالي تجاوز د مخنيوي په خاطر بايد د افغانستان اردو تقويه سي ٠ دغي لويي جرګي د افغانستان د خارجي سياست په تغيير کي مهم رول ولوباوه٠

په ۱۹۵٦ کال د آګست د مياشتي پر ۲ ۵ نيټي د وسلو اخستلو لومړي قرار داد د شوروي اتحاد او چکوسلواکيا سره لاس ليك سو ٠

په ۱۹۵٦ کال کي د افغانستان او چين تر منځ سياسي مناسبت ټينګ سوه ، د چين هيواد د افغانستان سره اقتصادي او تخنيکي مؤثري مرستي وکړي ٠

په ۱۹۵٦ کال کي د افغانستان او امريکا تر منځ د هلمند د ناوي د پراختيا له پاره د يو نيم مليونودالرو په اندازه د يوه پور قرار داد لا س ليك سو ٠

په ۱۹۵۸ کال کي غربي المان د افغانستان سره د قدر وړ مرستي وکړي ٠

په ۱۹۵۸ کال کي صدر اعظم محمد داود خان ، امريکا ته سفر و کړ ٠ ده هيله درلوده چي امريکا به افغانستان ته نظامي مرستي ورکړي ، ولي امريکا پر خپل موقف ټينګ پاته سو او د افغانستان سره يي نظامي مرستي و نه کړي ٠

په ۱۹۵۹ کال کي افغانستان د فرانسي او جاپان ، او په ۱۹٦٠ کال کي د ايتاليا سره اقتصادي او فرهنګي قرار دادونه لاس ليك کړه ٠

د ۱۹۵۹ کال د نومبر په مياشت کــي د امـريکا جمهور رئيس ايـزن هـاور کابل ته سفر و کړ ٠

په ۱۹٦۱ کال کي محمد داودخان د ناپيلو هيوادونو په غونډي کي چي په بلګراد کي جوړه شوي وه ، برخه واخستله ٠

د امريکا په مرستو کي د کابل ـ کندهار او سپين بولدك د لويو لارو ساختماني چاري ، د کابل ـ تورخم لويه لاره ، د کابل پوهنتون وداني او د هلمند د ناوي د پراختيا پروژي شاملي وي ٠

افغانستان ته د شوروي اتحاد د پورونو اندازه د ١٩٥٦ کال څخه تر ١٩٦٥ کال پوري ، یونیم ملیاردو دالرو ته ورسیده . ( ۶ )

په پای کي دا مطلب د ذکر وړ دي چي د افغانستان په دوهم اقتصادي پلان کي د تیلو او گازو تولید ته د اولیت حق ورکړ سو .

## د محمد داود خان د حکومت ترکیب

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | محمد داود خان | ۱۹۵۳ـ۱۹۶۳ |
| لومړي مرستیال | علي محمد خان | ۱۹۵۳ـ۱۹۶۳ |
| دوهم مرستیال | سردار محمد نعیم | ۱۹۵۳ـ۱۹۶۳ |
| خارجه وزیر | سردار محمد نعیم | ۱۹۵۳ـ۱۹۶۳ |
| د دفاع وزیر | جنرال محمد عارف | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۴ |
| | محمد داود خان | ۱۹۵۴ـ۱۹۶۳ |
| داخله وزیر | محمد داود خان | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۵ |
| | عبدالحکیم شاه عالمي | ۱۹۵۵ـ۱۹۵۸ |
| | سید عبدالله خان | ۱۹۵۸ـ۱۹۶۳ |
| عدلیه وزیر | نه و | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۵ |
| | سید عبدالله خان | ۱۹۵۵ـ۱۹۶۳ |
| د مالیي وزیر | عبدالملك عبدالرحیمزي | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۷ |
| | عبدالله ملکیار | ۱۹۵۷ـ۱۹۶۳ |
| د تجارت وزیر | عبدالرؤف حیدر | ۱۹۵۳ ـ ۱۹۵٤ |
| | عبدالملك عبدالرحیمزي | ۱۹۳۵٤ـ۱.۹۵۷ |
| | عبدالله ملکیار | ۱۹۵۷ـ۱۹۵۸ |
| | غلام محمد شیرزاد | ۱۹۵۸ـ۱۹۶۳ |

| | | |
|---|---|---|
| د پوهني وزير | ډاکټر عبدالمجيد خان | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۵ |
| | ډاکټر علي احمد پوپل | ۱۹۵۵ـ۱۹۶۳ |
| د فوايد عامي وزير | عبدالحکيم شاه عالمي | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۵ |
| | محمد کبير خان | ۱۹۵۵ـ۱۹۶۳ |
| د روغتيا وزير | ډاکټر غلام فاروق خان | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۵ |
| | ډاکټر عبدالظاهر خان | ۱۹۵۵ـ۱۹۵۸ |
| د مخابراتو وزير | عبدالحکيم شاه عالمي | ۱۹۵۳ـ۱۹۵٤ |
| | محمد مريد خان | ۱۹۵٤ـ۱۹۶۳ |
| دکانو وزير | ډاکټر محمد يوسف خان | ۱۹۵۳ـ۱۹۶۳ |
| د کرني وزير | مير محمد يوسف خان | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۸ |
| | غلام حيدر عدالت | ۱۹۵۸ـ۱۹۶۳ |
| د مطبوعاتو مستقل رئيس | صلاح الدين سلجوقي | ۱۹۵۳ـ۱۹۵۵ |
| | محمد هاشم ميوند وال | ۱۹۵۵ـ۱۹۵۶ |
| | سيد قاسم رشتيا | ۱۹۵۸ـ۱۹۶۰ |
| | محمد آصف سهيل | ۱۹۶۰ـ۱۹۶۳ |
| د پلان وزير | محمد داود خان | ۱۹۵۷ـ۱۹۶۳ |
| د قبايلو مستقل رئيس | سيد شمس الدين مجروح | ــــ ــــ |

( ۷ )

## ۲ ـ د صدارت څخه د محمد داود خان استعفا

د ۱۹۶۳ کال د مارچ د میاشتي ۷ نیټه

ډیر افغانان د محمد داود خان د استعفا دلیل دا بولي چې د افغانستان د صدارت په چوکي کي د پاچا اکاګان او د اکا زامن په نوبت مقرریدل ، چي تر محمد داود خان وروسته د مارشال شاه ولي خان د زوی ، سردار عبدالولي نوبت و او محمد داود خان نه غوښتل چي سردار عبدالولي د افغانستان صدر اعظم سي ، نو ده پاچا ته پیشنهاد وکړ چې د ۱۹۳۱ کال پر اساسي قانون تجدید نظر وسي ، په هیواد کي دي دیموکراسي راسي او خلګو ته دي د حزب جوړولو اجازه ورکړه سي ۰

دغه ډله افغانان په دي عقیده هم دي ، چي د دیموکراسۍ په صورت کي به محمد داود خان یو لوي حزب جوړ کړې وای او د دغي لاري به دې بیرته قدرت ته رسیدلې وای او د یوه ملي قاید په څیر به یي د ډیر وخت له پاره قدرت انحصار کړې وای ۰ ( په ۱۹۵۹ کال کي محمد داود خان د حقوقو د پوهنځي د شاګردانو په یوي ټولني کي چې زه هم هلته حاضر وم ، و ویل چې اوس د دي وخت رارسیدلې دې چي په هیواد کي د اقتصادي تحولاتو تر څنګ ، اجتماعي تحولات هم راوړل سي . )

محمد داود خان د ۱۳٤۱ ه .ش . کال د سرطان د میاشتي پر ۹ نیټي (۱۹۶۲ )کال اعلیحضرت محمد ظاهر شاه ته یو پیشنهاد و ړاندي کړ ، ده پر اساسي قانون داسي تجدید نظر پیشنهاد کړې و :

۱ ـ د قانون پوهانو یوه ټولنه دي جوړه سي ، چي د مشروطه شاهي پر اساس ، پر اساسي قانون باندي د سره کتنه وکړي او د اساسي قانون نوي مسوده دي ، حکومت ته وړاندي کړي ۰

۲ ـ د انتخاباتو او اساسي قانون نور متممه قوانین دي جوړ سي او حکومت ته دي

و سپارل سي ٠

٣ ـ د قوانينو د تصويب له پاره دي لويه جرگه راوغوښتله سي ٠

٤ ـ د قوانينو تر تصويب وروسته به په هيواد كي انتخابات كيږي ٠

٥ ـ نوي شورا به د يوه يا دوو احزابو پر اساس جوړيږي ٠ د نوي شورا تر پرانستلو وروسته به اوسنی حکومت استعفا کوي او نوی حکومت به د چارو واك په لاس كي اخلي ٠

پاچا د ١٣٤١ ه ش كال د سنبلي د مياشتي پر ٢ ١ مي نيټي د محمدداود خان پيشنهاد ته داسي جواب و ليکی (( زه په پرنسيپ كي د ديموكراسي د راتلو سره موافقه لرم په دي چي دا كار زما د پلار محمد نادر خان د آرزوگانو څخه و )) پاچا د دغه كار عملي كيدل په بل وخت كي او د نوروو كسانو په وسيله ممكن بللې و٠

محمد داود خان د ١٣٤١ كال د جـدي د مياشتي پر ٤ ٢ مي نتېي ، د پاچا ليك ته په دي مفهوم جواب ليكلې و :

١ ـ د افغانستان شاهي به مشروطه وي ، حکومت به پارلماني وي ، په هيواد كي به ديموكراسي راځي ٠

٢ ـ په اساسي قانون كي به د سلطنتي كورني حدود تثبيتيږي ٠

٣ ـ په اساسي قانون كي به فردي آزادي او شخصي ملكيت تضمينيږي ٠

٤ ـ په اساسي قانون كي به د دوو احزابو موجوديت پيشبيني كيږي ٠ په پارلمان كي به د اكثريت حزب مشر ، د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو ماموريت مومي ٠

٥ ـ دولت پر تقنينه ، قضائيه او اجرائيه قواوو ويشل كيږي ٠

٦ ـ يو شمير پوهان به د اساسي قانون د تسويد له پاره توظيف كيږي ٠

٧ ـ د اساسي قانون د تصويب له پاره به لويه جرگه راغوښتله كيږي ٠

٨ ـ سياسي احزابو ته به د فعاليت اجازه وركوله كيږي ٠

پاچا د محمد داود خان وروستي ليك تـه جواب و نـه وايـه او محمد داود خان د ١٩٦٣ كال د مارچ د مياشتي پر دريمي نيټي ، خپله استعفا پاچا ته وړاندي كړه او پاچا د ده استعفا و منله او د ده استعفا يي د دغه كال د مارچ د مياشتي پر ٧ نيټي

اعلام کړه ۰ او د ده پر ځای ډاکټر محمد یوسف خان د افغانستان د صدر اعظم په حیث و ټا کل سو . ( ۸ )

ډاکټر محمد یوسف په ۱۹۸۸ کال کي په یوي مصاحبي کـي داســي ویـلي دي (( د سلطنتــي کورنــي د زورورو اشخاصو لــه خوا په دغــي کورني کي بي اتفاقي راغلي وه )) دی وایي (( پاچا غوښتل چي په کراره ، خان د اکاګانو او د اکا د زامنو د تاثیر څخه وباسي او په اصطلاح ء تشخص ء و کړي )) دې ریاتـوي ( ( د کورني بل غړي ، سردار عبدالولي هم غوښتل چي څه کارونه ده ته ور و سپارل سي ۰ محمد داود خان غوښتل چي حزب جوړ کـي او د حزب له لاري څخه یبرته قدرت ته و رسیږي )) دی زیـاتـوي (( محمد داود خان د دیموکراسي په ارتباط پاچا ته یو پیشنهاد وړاندي کړ محمد داود خان ما تــه و ویل چي پاچا زما پیشنهاد د خانه سره جلال آباد ته وړي دي او ما تــه یــي جواب نه دي راکړي او ما پرون استعفا وکړه ) ) دی دا هــم وایي چي (( پاچا غوښتل چي محمد داود خان پــه خپله استعفا وکړي او پــه دغــه طریقه ځان د ده د شره څخه خلاص کړي )) ( ۹ )

## ۳ ـ تر استعفا وروسته د محمد داود او پاچا مناسبات

دالاندي ټکي د دیموکراسۍ پر راوړلو باندي د پاچا او محمد داودموافقه ښیي ۰

ـ ډاکټر محمد یوسف د خپل صدارت د وخت په لومړی وینا کي ویلي دي چي د ده حکومت هغه اهداف په نظر کي نیسي چي محمد داود خان یي پیشنهاد کړي و ( ۱ ۰ )

ـ محمد داود خان د صدارت ماڼي ته ورغی او د ډاکټر محمد یوسف حکومت ته یي مبارکي و ویله . ( ۱ ۱ )

ـ محمد داود خان په هغي وداعیه میلمستیا کي ګډون وکړ چي د ده په ویاړ جوړه سوې وه . ( ۱۲ )

ـ محمد داود خان او سردار محمد نعیم خان ، د شهزاده محمد نادر د واده په مراسموکي برخه اخســتي وه ۰ د دغــو مراسموعکس په دولتي ورځ پاڼو کي خپور سوی دی . ( ۱ ۳ )

ـ د پل چرخي د نظامي تاسيساتو ځيني نقشي محمد داود خان ترتيب کړي وي چي تر استعفا وروسته محمد داود خان په خپله د دغو نقشو د تطبيق څارنه کوله ٠

ـ په قرغه کي د سپوږمۍ د رستورانت نقشه محمد داود خان جوړه کړي ده او تر استعفا وروسته ده د دغي نقشي د تطبيق مراقبت کړی دی ٠

د ديموکراسي په وخت کي د پاچا او محمد داود خان مناسبات ډير ژر داسي خراب سوه چي وروسته دوی يو د بل سره شخصي مراوده هم نه درلوده ٠

زما د وکالت په وخت کي په ١٩٧٠ کال کي پاچا د يو صحبت په ضمن کي ما ته و ويل (( د محمد داود سره زما فاميلي روابط پري سوي دي او دا څلور کاله کيږي چي ما خپله خور چي د محمد داود ميرمن ده ، نه ده ليدلي ))

دديموکراسي د تطبيق په وخت کي د پاچا او حکومت ځينو اجراآتو محمد داود خان خوابدي کړې و ٠ د مثال په توګه :

ـ د ډاکټر محمد يوسف حکومت د بنديانو د احوال معلومولو له پاره يو هيات وټاکې ، د دغه هيات خبر په مطبوعاتو کي خپور سو ٠ دا خبر داسي تعبير سو چي ګواکي د محمد داود خان حکومت ډير خلګ غير قانوني بنديان کړي دي ٠

ـ تر استعفا وروسته محمد داود خان ، يوه ورځ د خان عبالغفار خان د ليدلو له پاره د صدارت د ګلخاني ماڼې ته ورغلی و ٠ د هغه خای مؤظفو اشخاصو محمد داود خان ته د قصر د ننوتلو اجازه نه وه ورکړي ٠ خو پښتونستاني حباب خان چي هلته حاضر و دوی ته محمد داود خان معرفي کړی و٠ دوی په جواب کي ويلي و چي (( موږ ته امر شوی دی چي هيچا ته د ننوتلو اجازه ورنه کړو )) وروسته خان عبدالغفارخان د عذر غوښتلو له پاره د محمد داود خان کور ته ورغلی و . ( ١٤ )

ـ رشتيا ليکي ، کله چي پاچا د محمد داود خان پيشنهادونه سيد شمس الدين مجروح ته ورکړه ، نو ده ته يي ويلي و چي د محمد داود خان پيشنهادونه د نورو اسنادو په جمله کي تر غور لاندي و نيسي ٠ پاچا دا هم ويلي وه چې د اساسي قانون د تسويد کميته ، بايد هيڅ خاص پيشنهاد په نظر کي و نه نيسي ، دغه کميته چې هرڅه د نن او سبا افغانستان له پاره لازم بولي په نوي اساسي قانون کي دي درج کړي ٥

ـ د ١٩٦٣ کال د مارچ په میاشت کي ، کله چي د اساسي قانون د تسوید د کمیتي غړي اعلان سوه ، د هغو په جمله کي حتي د محمد داود خان یوه ملگري ته هم ځای نه و ورکړه شوی او په دي کمیتي کي ځو داسي اشخاص تعیین سوي وو چي محمد داود خان هغوي ته په ښه سترگه نه کتل ٠

ـ دتسوید او مشورتي کمیتو له خوا د اساسي قانون د متن جوړول د ١٩٦٤ کال د مي د میاشتي په لومړی ورځ پای ته ورسیدل . ډاکټر محمد یوسف د اساسي قانون مسوده د یوه لیك په ضمیمه د ډاکټر علي احمد پوپل په و سیله محمد داود خان ته وړاندي کړه . ( ١۶ )

محمد داود خان چي د دغي مسودي ډیر مواد د خپل پخواني پیشنهاد سره موافق بلل هغه ټول یي تائید کړه ٠ یوازي پر دوو ټکو باندي یي خپل نظر په دي مفهوم صدر اعظم ته و لیکې :

١ ـ د مسودي د ٨٩ مادي په ارتباط محمد داود خان لیکلي وو (( په ولسي جرگي کي د اکثریت حزب مشر ، د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو مامور کیږي ))

٢ ـ د مسودي د ٢٤ مي مادي په ارتباط ، محمد داود خان لیکلي وه (( د پاچا د اکا زامن د سلطنتي کورني غړي نه دي ٠ د پاچا خور تر هغه وخته د سلطنتي کورنی غړی ده چي واده یي نه وي کړی )) ( ١٧ )

ـ په نوي اساسي قانون کي د محمد داود خان دواړه پیشنهادونــه و نه منل سوه ٠ د ٢٤ مي مادي په لومړی فقري کي د پاچا د اکا زامن ، د سلطنتي کورني غړي و بلل سوه ، دهمدغي مادي په دریمي فقري کي و لیکل سوه چي د سلطنتي کورني غړې په سیاسي احزابو کي برخه نه سي اخستلای ، صدر اعظم یا وزیر نه سي کیدلای ، د شورا او ستري محکمي غړیتوب نه سي تر لاسه کولای ٠

د اساسي قانون مسوده د ١٩٦٤ کال د سپتمبر د میاشتي پر نهمي نیټي ، لوي جرگي ته وړاندي سوه ٠ په لویي جرگي کي د محمد داودخان د مخالفینو په تحریك ، پر ٢٤ مي مادي یو بل داسي قید علاوه سو چي (( د سلطنتي کورني غړې د تل له پاره

د دي کورني غړی دی )) دا قید د هغو شایعاتو په نتیجه کي پر ٢٤ مي مادي علاوه سو چي ځینو اشخاصو تبلیغ کاوه چي که محمد داود و نه غواړي چي د سلطنتي کورني غړی وي ، دی کولای سي چي ځان د دغي کورنی څخه و باسي ( ١٨ )

د اساسي قانون تر تصویب وروسته محمد داود خان متیقن سو چي د ده پر ضد په دولت کي دسیسي کیږی ، نو دي د سلطنتي نظام دښمن سو ۰

په هغه وخت کي محمد داود خان نه غوښتل چي د افغانستان پاچا سي ده ارزو درلوده چي د سیاسي حزب د جوړولو له لاري څخه ، لکه هر یو بل افغان د خپل هیواد په چارو کي برخه واخلي .

دلته دا پوښتني مطرح کیدای سي :

ـ دا چا ته معلومه ده چي هغه حزب چي محمد داود خان جوړاوه ، هغه حزب به حتما د افغانستان په شورا کي اکثریت چوکي ګټلي وای ؟

ـ سلطنت ولي ټینګار کاوه چي حتما محمد داود خان د ده د آرزو پر خلاف ، د سلطنتي کورني غړی وي ؟

ـ که محمد داود ته اجازه ورکړه سوي وای چي د خپل هیواد په سیاسي چارو کي یي برخه اخستي وای آیا ده به کودتا کړي وای ؟

ـ که د افغانستان ټولو اتباعو ته د محمد داود خان په شمول د سیاسي فعالیت اجازه ورکړه سوي وای او ټولو افغانانو د سیاسي مبارزو له لاري څخه د خپل هیواد په چارو کي برخه اخستي وای ، دا یوه سمه لاره وه او امکان لري چي په هغه صورت کــي به په افغانستان کي د وروستیو بدو حادثاتو مخه هم نیوله سوی وای ۰

داو تر استعفا وروسته د محمد داود خان او محمد ظاهر شاه تر منځ د مناسباتو داستان چي په پورته تفصیل و ړاندي سو ۰

یوه ټوکه :

---

کله چي ډاکټر محمد یوسف صدر اعظم سو ، دی د خپلي کابیني د غړو سره د

يولسمي تقنيني دوري د شورا عمومي غونډي ته ورغی ۰ په دغي غونډي کي د پلخمري وکيل سردار عبدالرشيد خان چي د مارشال شاه ولي خان نژدي دوست و ، د محمد داود خان د حکومت پر وزيرانو باندي انتقادونه وکړل ، په دغه سبب د شورا غونډه متشنجه شوه  د شورا رئيس ډاکټر عبدالظاهر د شلو دقيقو له پاره تفريح اعلان کړه۰ د تفريح په وخت کي ، يوه وزير چي عسکري جنرال و ، ډاکټر عبدالظاهر خـان تـه و ويـل  (( ډاکټر صاحب ! ستاسي شورا ډيره بي نظمه ده )) ډاکټر عبدالظاهر خان چي ظريف او حاضر جوابه سړی و  ده ته يي په جواب کي و ويل  (( بلي جنرال صاحب ! په رښتيا چي هيڅ عسکري قشله داسي بي نظمه نه وي  ))  ( ۱ ۸ )

## د دوهم فصل ياد داشتونه

۱ـ څلمي ، ذکر شوي اثر، مخ ۲ ۷ ۱

۲ ـ فرهنگ ، مير محمد صديق ، افغانستان در پنج قرن اخير ، مخ ٤ ۷ ٤

۳ ـ د چرچل وينا چي په ۶ ٤ ۹ ۱ کال د مارچ پر ۵ د امريکا د ء مزوري ء د ايالت د ويستمنيستر په کالج کي کړي وه ۰

٤ ـ پولادا ، ذکر شوي اثر ، مخ ۸ ٤ ۱

۵ ـ مبارز ، ذکر شوي اثر ، مخ  ۹ ۸ ۱

۶ ـ  مبارز ، ذکر شوي اثر ، مخ  ۶ ۹ ۱

۷ ـ فرهنگ ، ذکر شوي اثر ، مخ ۷ ۷ ٤

۸ ـ  حق شناس ، شير احمد نصري ، دسايس و جنايات روس در افغانستان   ، مخونه ۳ ۳ ۱ او ۳ ٤ ۱

۹ ـ مجله خراسان ،  مخ ۲ ۲

۱۰ ـ کشککي ، صباح الدين ، دهه قانون اساسي ، مخ ۵ ۱

۱۱۰ ـ خاطرات سياسي سيد قاسم رشتيا ، مخ ۱ ۵ ۱

۱ ۲ ـ کشککي ، ذکر شوې اثر ، مخ ۱ ۲

۱ ۳ ـ همدا اثر ، مخ ۱ ٤

۱ ٤ ـ زما مشاهدات

۱۵ ـ رشتیا ، ذکر شوې اثر ، مخ ۱ ۵ ۶

۱ ۶ ـ همدا اثر ، مخ ۱ ۷ ۷

۱ ۷ ـ د اساسي قانون مسوده چي محمد داود خان ترتیب کړي وه ۰

۱ ۸ ـ د یوه وکیل په قول

دوهمه برخه

# دریم فصل

## ج : دديموكراسي دوره

### ۱ ـ د ديموكراسي دورې پيل

په افغانستان كي ديموكراسي دوره د صدارت څخه د محمد داود خان تر استعفا وروسته د ١٩٦٤ كال د اساسي قانون په انفاذ سره پيل سوه چي د لسو كلونو له پاره يي ادامه ومندله ۰

تر دي دمخه د شاه محمود خان د صدارت په وخت كي هم په هيواد كي ، ديموكراسي راغلی وه ، چي هغه ديموكراسي د صدر اعظم په شفاهي امر راغله او د ده په شفاهي امر له منځه ولاړه .

د ديمو كراسۍ دغه نوی نهضت په افغاني جامعي كي د راز راز عكس العملونو سره مخا مخ سو ۰ ډيرو افغانانو مخصوصا ځوان نسل د هغه ښه استقبال وكړ۰ د

هیواد په لویو ښارونو کې مظاهري کیدلي ، په کابل کې آزادي جریدي خپریدي ، ډیرسیاسي جمیعتونه جوړ سوه او دولت پر دروو مستقلو قوو لکه اجرانیه، تقنینیه او قضانیه و ویشل سو ٠

د دولسمي او دیارلسمي تقنیني دورو د شورا له پاره ، په هیواد کې آزاد انتخابات وسوه چې د افغانستان خلګو خپل نماینده ګان شورا ته واستول ٠ په دغي دوري کې پنځه حکومتونو د ولسي جرګې څخه د اعتماد رایه واخسته ٠

د دغي دوري لویه نقیصه دا وه چې د اساسي قانون متمیم قوانین لکه د احزابو اواجتماعاتواو داسي نور قوانین چې تفصیل یې د کتاب په بلي برخي کې لیکل سوی دی ، د دیموکراسي دوري تر پایه ، توشیح او نافذ نه سوه ٠

دغه دوره د محمد داود خان په کودتا سره پای ته ورسیدله ٠

## ٢ ـ اساسي قانون

دري هفتي وروسته تر هغه چې صدر اعظم ډاکټر محمد یوسف په کار پیل و کړ د ده په پیشنهاد د پاچا له خوا اوه کسیزه کمیته د نوي اساسي قانون د تسوید له پاره و ټاکله سوه چې نومونه یې دادي :

سید شمس الدین مجروح د مشر په توګه ، ډاکټر میر نجم الدین انصاري ، ډاکټر عبدالصمد حامد ، محمد موسي شفیق ، سید قاسم رشتیا ، میر محمد صدیق فرهنګ او حمیدالله علي ٠

د تسوید د کمیتي لومړۍ غونډه د ١٩٦٣ کال د مارچ د میاشتي پر ١٣نیټي د عدلیي په وزارت کې جوړه سوه ٠ کمیټي د اساسي قانون د تسوید کار د ١٩٦٤ کال د فبروري په میاشت کې پای ته ورساوه او د تصویب له پاره یې د وزیرانو مجلس ته وړاندي کړ ٠ د وزیرانو مجلس فیصله وکړه چې دغه مسوده دي ، مشورتي کمیتي ته وړاندي سي ٠

مشورتي کمیته د ٢ ٨ غړو څخه جوړه سوې وه چې نومونه یې دا دي :

عبدالهادي داوی ، صلاح الدین سلجوقي ، عبدالمجید خان زابلي ، خلیل الله خلیلي نور احمد اعتمادي ، پوهاند محمد اصغر خان ، ډاکټر محمد آصف سهیل

، محمد قدیر تره کی ، میر غلام محمد غبار ، ډاکټر عبدالقیوم رسول ، احمد علي کهزاد ، عبدالرشید لطیفي ، امیرالدین شنسب ، صدیق الله رشتین ، غلام سرور رحیمي ، میرمن معصومه عصمتي ، پیغله کبرا نورزایي ، محمد هاشم مجددي ، محمد کریم نزیهي ، محمد ابراهم عفیفي ، محمد شاه ارشاد ، مولوي عبدالرب ، لعل محمد کاکړ ،مولوي غلام نبي کاموي ، ډاکټر عبدالواحد سرابي ، عبدالکریم احراري ، محمد ظاهر څدران ، ډاکټر خلیل احمد ابوي ۰

مشورتي کمیتي د ۱۹٦٤ کال د مارچ د میاشتي په لومړي ورځ په کار پیل وکړ او په یوي میاشتي کي یي خپل کار پای ته ورساوه ۰

دواړو کمیتو د لوي جرگي د راغوښتلو وخت ، د ۱۹٦٤ کال د دوبي موسم ، تثبت کړ ۰ دوی د لوي جرگي د غړو پر ترکیب هم یوه فیصله وکړه ۰ دوی د افغانستان د عنعنوي لوي جرگي ، ترکیب او ماهیت ته تغییر ورکړ۰ دوی د لوي جرگي د غړو ترکیب او شمیر په لاندي ډول تثبیت کړ :

| | |
|---|---|
| ـ د پولسمي تقنیني دوري د شورا غړي | ۱۷۶ |
| ـ د هري انتخابي حوزي څخه به یو یو انتخابیږي | ۱۷۶ |
| ـ د اعیانو د مجلس غړي | ۱۹ |
| ـ د تمیز غړي | ٥ |
| ـ د حکومت غړي | ۱٤ |
| ـ د تسوید د کمیتي غړي | ۷ |
| ـ د مشورتي کمیتي غړي | ۲٥ |
| ـ د پاچا له خوا انتصاب شوي غړي | ۳٤ |
| ـ د ټولو شمیر | ٤٥۶ |

د آگست د میاشتي پر ۱٤ نیټي د اساسي قانون مسوده په ورځ پاڼو کي خپره سوه او د ۱۹٦٤ کال د سبتمبر د میاشتي پر نهمي نیټي لویه جرگه د پاچا له خوا د سلامخاني په ماڼي کي پرانسته سوه ۰ نوې اساسي قانون د دغه کال د سبتمبر د میاشتي پر ۲۰ مه د لویي جرگي له خوا تصویب سو او د اکتوبر د میلشتي پر لسمي

نیتې د پاچا له خوا توشیح او نافذ سو ۰

میر غلام محمد غبار ، استاد صلاح الدین سلجوقي او ډاکټر محمد آصف سهیل ، د مشورتي کمیټي په غونډو کي ، برخه وانه خسته ۰

سید قاسم رشتیا لیکي (( زه د میر غلام محمد غبار کور ته د دي له پاره ورغلی وم چي دده ځخه غوښتنه وکړم چي د مشورتي کمیټي په غونډو کي برخه واخلي ))

رشتیا زیاتوي چي (( غبار زما په جواب کي و ویل چي زه د دغه جریان په حقیقت او د هغو کسانو په صداقت اطمینان نه لرم چي دغه جریان یي منځ ته راوړی دی )) غبار زیاته کړه چي (( زما په فکر داهم لکه د شاه محمود خان د وخت یو عوام فریبانه لوبه ده چي زه نه غواړم چي د دغي صحني لوبغاړی وه سم ))

رشتیا زیاتوي چي (( زه نه پوهیږم چي دا کلمات د میر غلام محمد غبار فکر تمثیلوي او که د ده عدم رضانیت ، زما او د فرهنگ په مورد کي ښکاره کوي چي داسي یو مهم ابتکار مو په لاس کي اخستی دی )) ( ۱ )

## ۳ ـ د تسوید کمیټي لویي جرگي ته تغیر ورکړی دی

د۱۹٦٤ کال د اساسي قانون دتسوید کمیټي د افغانستان عنعنوي لویي جرگي ته په ښه سترگه نه دي کتلي ، دوی د لویي جرگي اصالت ته لویه صدمه رسولي ده .

د نړي ټول هیوادونه په خپلو تاریخي اثارو ویاړي او هغو ته په درنه سترگه گوري او ځکه چي ژوندي قومونه خپل تاریخ نه خرابوي ۰د مصر ، یونان او ایتالیا او د نړۍ نور هیوادونه ، خپل تاریخي آثار په پخواني شکل ساتي ۰ انگریزان خپل د اساسي قوانینو عنعنه ساتي ، په چین کي زاړه دیوالونه ، خپل د عظمت نښه بولي ۰د نړي هیڅ هیواد داسي نه دي کړي چي خپل تاریخي افتخارات وران کړي او دلیل دا راوړي چي د عصر دایجاباتو سره برابر نه وو .

محمد علم فیض زاد په خپل اثر کي لیکلي دي چي (( د اساسي قانون د ۸ ۷ مادي په وسیله د افغانستان عنعنوي لویه جرگه د منځه وړل سوی ده دی زیاتوي چي ( دوی د دي له پاره چي د هیواد په چارو کي اوږد لاس ولري، په لویي جرگي کي یي د ملت د نماینده گانو برخه لږه کړي ده )) ( ۲ )

صباح الدین کشککي لیکي چي (( لویه جرگه یوه افغاني پدیده ده چي د نړۍ په نورو ټولنوکي د هغي مثال نه دی لیدل سوی )) دې زیاتوي چي (( د ۱۹٦٤ کال په اساسي قانون کي د لویي جرگي ماهیت او د غړو ترکیب ته تغییر ورکړه سوی دې )) دې دا هم لیکي چي ( دوی په حقیقت کي ، د نوي سیستم په اساسي قانون کي ، خان د هغي مؤسیسي د شره څخه خلاص کړی دی ، چي د هغي غړي د افغاني جامعي مخور او بانفوذه خلگ وو )) ( ۳ )

د افغانستان پـه معاصر تاریخ کـي دا لاندي لویـي جرگــي او مهمي قومي جرگي د یام وړ دي :

ـ په ۱۷۰۹ کال کي د کندهار د کوکران مهمه قومي جرگه وه چي د هغي جرگي غړو میرویس نیکه د خپل مشر په حیث و ټا کی ۰ چي د هغه وخت د امنیتي شرایطو په وجه دا جرگه په پټه جوړه سوه ۰

ـ په ۱۷٤۷ کال کي د کندهار د شیر سرخ په مزار کي یوه لویه جرگه جوړه سوه چي په دغي جرگي کي احمد شاه ابدالي د افغانستان د پاچا پـه حیث و ټا کل سو او صابر شاه ملنگ د تاج پر ځای د غنمو وږی د ده پر بگړی نصب کړ ۰

ـ د ۱۸٤۱ کال د نومبر د میاشتي په لومړی ورځ د کابل په ښار کي یوه مهمه قومي جرگه جوړه سوه، دا جرگه د افغان او انگلیس د لومړي جنگ په وخت کي جوړه سوه چي دغي جرگي سردار نواب خان د مجاهدینو د رئیس او نائب امین الله خان لوگري د ده د مرستیال په توگه و ټا کل ۰

ـ په ۱۹۱٥ کال کي د امیر حبیب الله خان په وخت کي یوه لویه جرگه جوړه سوه دغي جرگي په لومړي جهاني جنگ کي د افغانستان بي طرفي تصویب کړه ۰ په دغي جرگي کي ٥٤۰ نمایندگانوبرخه درلوده ۰

ـ په ۱۳۰۱ ه ش کال کي (۱۹۲۲) د امان الله خان په وخت کي په جلال آباد کي یوه لویه جرگه جوړه سوه ۰ په دغي لوي جرگي کي د هغه وخت ځیني قوانین په تصویب ورسیدل ۰ د جوي شرایطو له کبله د هیواد د ځینو سیمو نمایندگانو په دغي لویي جرگي کي برخه نه وه اخستي ۰

ـ په ۱۹۲٤ کال کي د امان الله خان په وخت کي په کابل کي يوه لويه جرگه جوړه سوه ۰ په دغي جرگي کي د امان الله خان د وخت اساسي نظام نامه تصويب سوه ۰

ـ په ۱۹۲۸ کال کي د امان الله خان په وخت کي په پغمان کي بله لويه جرگه جوړه سوه ۰ په دغي جرگي کي د هغه وخت داصلاحاتو پروگرام تصويب سو ۰ په دغي جرگي کي د هيواد ۱۱۰۰ نمايندگانو برخه اخستي وه ۰

ـ په ۱۹۳۱ کال کي د محمد نادر خان په وخت کي يوه لويه جرگه جوړه سوه ۰په دغي جرگي کي ، د محمد نادر خان سلطنت او د هغه وخت اساسي اصول تصويب سو ل۰

ـ په ۱۹٤۱ کال کي د محمد ظاهر شاه د سلطنت په وخت کي يوه لويه جرگه جوړه سوه ۰ دغي لويي جرگي ، په جهاني جنگ کي د افغانستان بي طرفي تصويب کړه ۰

ـ په ۱۹٤۹ کال د آگست د مياشتي پر ۱۲ د پښتنو د خود اراديت د حق د تائيد په غرض ، په کابل کي يوه لويه جرگه جوړه سوه ۰ په دغي تاريخي لويي جرگي کي د ۱۸۹۳ کال د ډيورنډ موافقتنامه ، د ۱۹۰۵ کال د مارچ د مياشتي د ۲۱ نيټي د امير حبيب الله خان سره د انگريزانو عهد نامه ، د ۱۹۱۹ کال د راولپنډي د سولي تړون او د افغانستان سره د انگريزانو د ۱۹۲۱ کال معاهده، لغوه سوي ۰ دغه ټولو اسنادو په هغو سيمو پوري اړه درلودلي چي د افغانستان او پاکستان تر منځ د اختلافونو موجب سوي دي . ( ٤ )

ـ د ۱۹۵۵ کال لويي جرگي حکومت ته واك ورکړ چي د افغانستان اردو تقويه کړي او د نړي د هر هيواد څخه چي يي لازم و بولي وسله تر لاسه کړي ، چي په دغه اساس د افغانستان حکومت د شوروي اتحاد او چکوسلواکيا څخه د نظامي مرستو غوښتنه وکړه۰

## ٤ ـ مطبوعات

په ۱۹۵۱ کال کي د شاه محمود خان د صدارت په وخت کي د اوومي دوري دشورا له خوا د مطبوعاتو قانون په تصويب ورسيد ۰ د دغه قانون پر اساس څو ملي

جريدي لکه انګار ، ولس ، وطن ، نداي خلق ، نيلاب او آئيني په نشراتو پيل وکړ ۰

پنځلس کاله وروسته د افغانستان د دوهمي ديموکراسي په دوري کي په ١٩٦٤کال کي د ډاکټر محمد يوسف د انتقالي حکومت په وخت کي د مطبوعاتو قانون په تقنيني فرمان نافذ سو . ددغه قانون پر اساس په کابل کي ، نژدي ديرشوو جريدو په نشراتو پيل و کړ چي دځينو مشهورو جريدو نومونه په لاندي ډول دي :

١ ـ د افغان جريده : دا يوه مستقله جريده وه چي په خپلو نشراتو کي يي ملي مسايلو ته ډيره توجه کوله او په هيواد کي يي ډير لوستونکي درلودل ۰ د دغي جريدي مسؤول مدير او د امتياز خاوند محمد حسن ولسمل و۰د افغان جريدي د ١٩٧١ کال د سبتمبر د مياشتي پر ۶ نيټي په نشراتو پيل و کړ په ١٩٧٣ کال کي دري ورځي دمخه ترهغه چي د ايران صدر اعظم امير عباس هويدا د هلمند د اوبو د معاهدي د لاس ليك له پاره کابل ته سفر کړي و ، و تړله سوه ۰

٢ ـ د مساوات جريده : دا جريده د محمد هاشم ميوندوال د مترقي ديموکرات د جمعيت نشراتي اورګان و ۰ دي جريدي ډيري علمي او تحقيقي مقالي خپرولي ۰دا جريده د نور احمد اعتمادي د حکومت په مخالف قطب کي واقع سوه . د دغي جريدي د امتياز خاوند ، په سر کي عبدالشکور رشاد او وروسته محمد شريف ايوبي و . د جريدی مسؤول مدير ، په اول کي محمد رحيم الهام او تر ده وروسته عبدالغني ميوندي و ۰ دغي جريدي د ١٩٦٦ کال د جون د مياشتي پر ٢٤ مه په نشراتو پيل وکړ او د ١٩٧١ کال د سبتمبر پر ٢٦ مي نيټي و تړله سوه ۰

٣ ـ د روزګار جريده : دا يوه مستقله جريده وه چي ښي اقتصادي مقالي يي خپرولي دغي جريدي په خپلي څلور کلني نشراتي مودي کي هميشه ، ملي مسايلو ته توجه درلوده ۰ د دي جريدي د امتياز خاوند او مسؤول مدير محمد يوسف فرند و۰ دغي جريدي د ١٩٦٩ کال د اکتوبر د مياشتي پر ٢٨ مي په نشراتو پيل وکړ او په ١٩٧٣ کال کي وتړله سوه ۰

٤ ـ د افغان ملت جريده : دا جريده د افغان ټولنپال ولس واك د جمعيت ، نشراتي اورګان و ۰ دي جريدي د افغانستان په پښتني سيمو کي ډير لوستونکي درلودل . د

دغي جريدي د امتياز خاوند ، انجينيرغلام محمد فرهاد ، او مسؤول مدير قدرت الله حداد و ۰ دي جريدي د ۱۹٦٦ كال د اپريل د مياشتي پر پنځمي نيټې په نشراتو پيل وكړ او د ۱۹٦۷ كال د مي د مياشتي پر ۲ ۱ نيټې يي په كابل كي نشرات بند سو ل اوس دا جريده په اروپا كي خپرېږي ۰

٥ ـ د ملت جريده : د دغي جريدي د امتياز خاوند فدا محمد فدايي و ، ( فدا محمد فدايي او دده ملگري د افغان ملت د گوند ځخه جلا شوي وو ) دملت جريدي د ۱۹۷۱ كال د سبتمبر د مياشتي پر ۲٦ مي په نشراتو پيل و كړ او د ۱۹۷۲ كال د جون د مياشتي پر ۱۰ مه و تړله سوه ۰

٦ ـ د كاروان ورځپاڼه : د دغي ورځپاڼي د امتياز خاوند صباح الدين كشككي او مسؤول مدير عبدالحق واله و ۰ دا يوه مشهوره ورځپاڼه وه چي هره ورځ به يي خبرونه او تازه اطلاعات خپرول ۰ دي ورځپاڼي په كابل كي ډير لوستونكي درلودل ۰ د كاروان ورځپاڼي د ۱۹٦۸ كال د سبتمبر د مياشتي پر ۲٤ مه په نشراتو پيل و كړ ۰

۷ ـ د خلق جريده : د دغي جريدي د امتياز خاوند نور محمد تره كی او مسؤول مدير بارق شفيعي و ۰ دا جريده د ديموكرتيك خلق د جميعت نشراتي اورگان و دغي جريدي د ۱۹٦٦ كال د اپريل د مياشتي پر ۱۱ مه په نشراتو پيل وكړ، د ۱۹٦٦ كال د مې د مياشتي پر ۱٦ مه وتړله سوه ۰

۸ ـ د پرچم جريده : د دغي جريدي د امتياز خاوند سليمان لايق او مسؤول مدير په سر كي سليمان لايق او وروسته مير اكبر خيبر و ۰ دا جريده د پرچم د اړخ نشراتي اورگان و د ۱۹٦۸ كال د مارچ د مياشتي پر ۱٤ مه يي په نشراتو پيل وكړ اود ۱۹٦۹ كال د جولای د مياشتي پر ٥ ۱ مه و تړله سوه ۰

۹ ـ د شعله جاويد جريده : د دي جريدي دامتياز خاوند او مسؤول مدير ډاكټر عبدالرحيم محمودي و ۰ دا جريده د ديموكرا سي نوين د جمعيت نشراتي اورگان و چي د ۱۹٦٦ كا ل د جولای د مياشتي پر ۱۰ مه يي په نشراتو پيل وكړ او د ۱۹٦۸ كال د اپريل دمياشتي پر ٤ مه وتړله سوه ۰

۱۰ ـ د پيام وجدان جريده : د دغي جريدي د امتياز خاوند او مسؤول مدير

عبدالرؤف ترکمني و ۰ دا جریده ایران ته متمایله مذهبي جریده وه ، د ۱۹٦٦ کال د جولای د میاشتي پر ۲٤ مي نیټیي یي په نشراتو پیل و کړ ۰

۱۱ ـ د ګهیځ جریده : د دغي جریدي د امتیاز خاوند او مسؤول مدیر منهاج الدین ګهیځ و ۰ دا د کمونیزم ضد یوه مذهبي جریده وه چي د ۱۹٦۸ کال د جـولای د میاشتي پر ۱۳ مه یي په نشراتو پیل وکړ ۰

۱۲ ـ د ترجمان جریده : د دغي جریدي د امتیاز خاوند ډاکټر عبدالرحیم نوین او مسؤول مدیر علي اصغر بشیر و ۰ دا یوه انتقادي بي طرفه جریده وه چي ډیر لوستونکي یي درلودل ، دي جــریــدي د ۱۹٦۸ کال د اپریل د میاشتي پر ۱۸ مي نیټي په نشراتو پیل وکړ ۰

۱۳ ـ د مردم جریده : د دغي جریدي د امتیاز خاوند سید مقدس نګاه او مسؤول مدیر غلام محي الدین تفویض و ۰ د ۱۹٦٦ کال د مې د میاشتي پر ۱۱ نیټي یي په نشراتو پیل وکړ او د دغه کال د جون د میاشتي پر ۱۵ مه و تړله سوه ۰

۱٤ ـ د ملي اتحاد جریده : د دغي جریدي د امتیاز خاوند او مسؤول مدیر عبدالحکیم مژده و ۰ دي جریدي د ۱۹٦۹ کال د جولای د میاشتي پر ۱۵ مي نیټي په نشراتو پیل وکړ .

۱۵ ـ د ملي جبهي جریده : د دغي جریدي د امتیاز خاوند او مسؤول مدیر عبدالرب اخلاص و ۰ دي جریدي د ۱۹٦۸ کال د سبتمبر د میاشتي پر ۳۰ مه په نشراتو پیل وکړ او د ۱۹٦۹ کال د جون د میاشتي پر ۱۵ مه وتړله سوه ۰

۱۶ ـ د صداي عوام جریده : د دغي جریدي د امتیاز خاوند ډاکټر عبدالکریم فرزان او مسؤول مدیر، محمد عارف حنیفي و چي د ۱۹٦۸ کال د مارچ د میاشتي پر ۲۷ نیټیي یــي پـه نشراتــو پـیـل وکـړ او د ۱۹٦۹ کال د جـون د میاشـتـي پــر ۲۰ مـــه وتـړلـه سوه (۵)

## ۵ ـ سیاسي ډلي

بي ځایه به نه وي که د دي مبحث په سر کي د شاه محمود خان د صدارت په

دوران کي سیاسي احزابو ته یوه لنډه کتنه و سي ۰

په دغي دوري کي په کابل ، کندهار او ننګرهار کي ، ځینو منورینو ځو سیاسي احزاب جوړ کړل ، ډیر ژر فهمه افغانان دغو احزابو ته ورغله ۰ ځرنګه چي په دغه زمانه کي خارجي یو د بل ضد مفکورو افغاني جامعي ته لاره نه وه پیدا کړي او په هیواد کي یوازي پر افغاني معیارونو سیاسي احزاب جوړیدل ، نو دغه ټول احزاب که ځه چي یو د بل څخه جلا وو ، ولي دغو ټولو احزابو مشترك اهداف تعقیبول ۰ دوی په عمومي ډول د سیاسي آزادیو ، اجتماعي عدالت ، ملي حکومتونو او پارلماني حقوقو غوښتنه کوله ۰

د افغانستان د هغه وخت حکومت په افغاني سیاسي احزابو کي د خارجي اجیرانو د نفوذ کلکه څارنه کوله ، او د هر سیاسي حزب د صالحو او ملي اشخاصو ستاینه به یــي هــم کــولــه ۰ د مثال په توګه :

د ویښــو ځلمیانــو د حزب یــو غړي ښاغلـی غلام محـي الدین زرملوال وایي چي په ۱۹٤۸ کال کي محمد داود خان چي په هغه وخت کي داخله وزیر و ، د ویښو ځلمیانو د حزب ځو غړي ځپل دفتر ته ور و بلل ۰ ده د دغــه حزب غـړو تــه و ویــل چي (( دوی باید په ځپل حزب کي خارجي اجیرانو ته ځای ور نه کړي )) ده زیاته کړي وه چــي (( زه باور لرم چي د ویښو ځلمیانو نور غړي لکه ګل پاچا الفت ، که یو ډك توپك د ده په لاس کي وي او ده دا ډك تـوپك زما پــر خوا نیولی هم وي زه اطمینان لرم چي دی پــر ما بــانــدي ډك نه کوي ))

د دغي دوري سیاسي احزاب په لاندي ډول دي :

۱ ـ د ویښو ځلمیانو حزب : دغه حزب په ۱۹٤۷ کال کي جوړ سوی دی ۰ لاندي اشخاص په کندهار ، ننګرهار او کابل کي د دغه حزب مهم غړي دي :

پوهاند عبدالحي حبیبي ، ګل پاچا الفت ، عبدالرؤف بینوا ، فیض محمد انګار ، غلام محي الدین زرملوال ، محمد رسول پښتون ، عبدالهادي توخي ، محمد انور اڅګزی ، عبدالشکور رشاد ، قیام الدین خادم ، قاضي بهرام ، غلام جیلاني ، محمد ابراهم خواخوږي ، نور احمد شاکر ؛ عبدالرزاق فراهي ، محمد علم بځرکی ، عبیدالله سایی ،

آغا محمد کرزی ، عبدالصمد ویسا ، غلام حسن ساپی ، نور محمد تره کی ، فتح محمد خېگر او داسي نور ۰

د ویښو ځلمیانو د حزب منشي په سر کي عبدالرؤف بینوا و ، تر ده وروسته عبدالرزاق فراهي د دغه حزب منشي سو ۰ د دي حزب نشراتي اورګان د انګار جریده وه چي فیض محمد انګار یي د امتیاز خاوند و ۰ د انګار جریدي د ۱۹۵۱ کال د مارچ په میاشت کي په نشراتو پیل و کړ او د دغه کال په اپریل کي و تړله سوه ټول یوه میاشت او ۲۲ ورځي خپریدله . وروسته د ولس جریده د دغه حزب نشراتي اورګان شو چي ګل پاچا الفت یي د امتیاز خاوند و ۰ د ولس جریده د ۱۹۵۱ کال څخه بیا تر ۱۹۵۳کال پوري خپریدله . ( ۶ )

۲ ـ د وطن حزب : دغه حزب په ۱۹۵۰ کال کي په کابل کي تاسیس سوی دی او مؤسس غړي یي دادي :

میر غلام محمد غبار ، سرور جویا ، میر محمد صدیق فرهنګ ، فتح محمد میرزاد نورالحق هیرمند ، برات علي تاج او عبدالحي عزیز ۰ میر غلام محمد غبار د دغه حزب رئیس او عمومي منشي و ۰ د دغه حزب مشهور غړي په لاندي ډول دي :
محمد اکبر پامیر ، علي احمد نعیمي ، عبدالحلیم عاطفي ، میر علي احمد شامل ، محمد آصف آهنګ ، ډاکټر ابوبکر ، ډاکټر عبدالقیوم رسول ، ډاکټر غلام فاروق ، غلام حیدر پنجشیري ، علي محمد خروش او داسي نور ۰

د دغه حزب نشراتي اورګان د وطن جریده وه چي په ۱۹۵۱کال کي یي په نشراتو پیل وکړ۰ د دغي جریدي د امتیاز خاوند میر غلام محمد غبار او مسؤول مدیر په لومړي سر کي علي محمد خروش او وروسته میر محمد صدیق فرهنګ و ، دا جریده د ۱۹۵۲ کال د فبروري په میاشت کي و تړله سوه . ( ۷ )

۳ ـ د خلق حزب : دغه حزب په ۱۹۵۰ کال کي د ډاکټر عبدالرحمن محمودي په مشرۍ په کابل کي جوړ سو ، د حزب منشي محمد نعیم شایان و ۰ د دي حزب مشهور غړي په لاندي ډول دي :

مولوي خال محمد خسته ، مولوي فضل الرب ، عبدالحمید مبارز ، محمد یوسف

آئینه ، نور علم مظلومیار ، غلام احمد رحماني ، ماګه رحماني ، محمد طاهر محسني ، ولي محمد عطايي او داسي نور ۰

د دغه جزب نشراتي اورګان د نداي خلق جریده وه چي د امتیاز خاوند یي ډاکټر عبدالرحمن محمودي ، او مسؤول مدیریي ولي محمد عطاني و۰ دي جریدي د ۱۹۵۱ کال د اپریل په میاشت کي په نشراتو پیل وکړ او د دغه کال د جولای په میاشت کي وتړله سوه . ( ۸ )

٤ ـ ملي دیموکرات حزب : دغه حزب په ۱۹۵۰ کال کي په کابل کي جوړ سوي دی ۰ د دي حزب رهبري د محمد داود خان په لاس کي وه ۰ د حزب منشي ډاکټر عبدالقیوم او په بل روایت محمد هاشم میوندوال و ۰ دغه حزب په افغاني جا معي کي د ملي کلوپ په نا مه شهرت درلود دملي دیموکرات د حزب مشهور غړي ، عبدالمجید خان زابلي ، فیض محمد زکریا ، علي محمد خان او داسي نور لوړ رتبه مامورین وو ۰ دغه حزب نشراتي اورګان نه درلود ، کله چي په ۱۹۵۳ کال محمد داود خان د افغانستان صدر اعظم سو ، نو دغه حزب له منځه ولاړ . ( ۹ )

یوه ټوکه :

ما اوریدلي وه چي د ملي دیموکرات د حزب غونډو ته د هیواد مشهوره ریاضیدان ډاکټر عبدالغفار کا کړ ، چي د سیا ست سره یي علاقه نه درلوده هم بلل سوی و ۰ ده په ټوکي د غونډي د غړو ځخه پوښتنه کړي وه چي ، د دغو غونډو شاملینو ته ، حق الزحمه ورکوله کیږي او که یه ؟ ده ته په جواب کي ویل سوي و چي ، دا یو ملي خدمت دی او دلته هیچا ته حق الزحمه نه ورکوله کیږي ۰ پوهاند کاکړ دوی ته ویلي و چي (( زه یو معلم یم او په هغه ځای کي چي چا ته اجرت نه ورکول کیږي زه هغه ځای ته نه ورځم )) وروسته ده د دغه حزب په نورو غونډو کي برخه نه وه اخستي .

د دیموکراسي دوري مشهوره سیاسي جمعیتونه په لاندي ډول وو :

۱ ـ د مترقي دیموکرات سیاسي جمعیت : دغه ساسي جریان په ۱۹٦٦ کال د آګست په میاشت کي د محمد هاشم میوندوال په ابتکار جوړ سو ۰ د مترقي دیموکرات ړلي ، په خپلي مرامنا مي کي اسلام ، مشروطه شاهي ، دیموکراسي او د

افغانستان د شرايطو سره سم د يوه سوسيالستي نظام تاييد كاوه ٠ افغاني مشهور سياسي مبارزين لكه د كندهار د ويښو ځلميانو ډله د دغه جريان سره ملگري سوه ، د دولت ډير لوړ رتبه مامورين هم دغه جريان ته ورغله ، د ديموكرات مترقي مرامنامه د خارجه چارو په وزارت كي تايپ سوي او د وزيرانو په غونډي كي په تصويب رسيدلي وه ٠ ولي څه موده وروسته د صدارت مرستيال نور احمد اعتمادي او څو نورو وزيرانو د دغه جريان سره مخالفت پيل كړ ٠

په ١٩٧٥ كال كي ما د نور احمد اعتمادي څخه چي په دغه وخت كي په مسكو كي افغاني سفير و پوښتنه وكړه چي ، تاسي ولي په آخر كي د مترقي ديموكرات د جريان سره مخالفت پيل كړ ؟ ده زما د پوښتني په جواب كي و ويل (( هغه وخت چي د وزيرانو غونډي د مترقي ديموكرات مرامنامه په تصويب ورسوله د وزيرانو غونډي دا فيصله هم كړي وه چي دغه مرامنامه دي د حكومت د كړنلاري په توگه ولسي جرگي ته وړاندي سي ٠ ولي محمد هاشم ميوندوال د شورا د تعطيل په وخت كي دغه تصويب سوې متن د يوې حزبي مرامنامي په شكل په كابل راديو كي ولوست ، چي په دغه دليل موږ د نوموړي سياسي جريان څخه بيل سوو ))

كله چـــي محمد هاشم ميوند وال د صدارت د وظيفـــي څخه استعفا وكـــړه د مترقي ديموكرات د گوند ډير غړي د دغه جريان څخه و وتل ٠

٢ ـ د افغان ټولنپال ولسواك سياسي جريان يا ( جمعيت ) : دغه سياسي ډله په افغاني جامعي كي د افغان ملت په نامه شهرت لري ٠ دا سياسي ډله په ١٩٦٦ كال د مارچ د مياشتي پر اتمي نيټي د ديپلوم انجينر غلام محمد خان فرهاد تر مشري لاندي جوړه شوى ده٠ د افغان ملت سياسي جريان د افغانستان پخواني عظمت ته په درنه سترگه گوري او د هيواد د ملي دودونو د ساتلو كلك ملاتړ كوي ٠ د دغه جريان نشراتي اورگان د افغان ملت په نامه ياديږي ٠

د افغان ملت گوند اوس هم فعال دې چي تر انجينر فرهاد وروسته ډاكټر محمد امين واكمن د دغه گوند رئيس سو ، په ١٩٩٦ كال كي ډاكټر انورالحق احدي د افغان ملت د كنگري له خوا د دغه گوند د رئيس په حيث و ټاكل سو، چي اوس هم د

نوموړي گوند رهبري پر غاړه لري ٠

د افغان ملت گوند د هيواد په ډيرو سيمو ، مخصوصا په ننگرهار ، کندهار ، پکتيا او د وردگو په ولايتونو کي ډير پلويان لري ٠

٣ ـ د اسلامي ځوانانو سياسي جريان : دا جريان په ١٩٦٥ کال کي د استاد غلام محمد نيازي په مشري په کابل پوهنتون کي جوړ سو ، چي ډير ژر په هيواد کي خپور سو ٠ انجينر گلبدين حکمتيار او استاد برهان الدين رباني او داسي نور د دغه جريان غړي وو ٠

دغه اسلامي جمعيت د کابل پوهنتون او د هيواد په ښارونو کي د اسلام پلوي کوله ، د کمونيزم او الحاد سره يي مبارزه پيل کړي وه ٠ دغه جمعيت د افغانستان د جهاد په وخت کي ، د شوروي اتحاد د اشغال په مقابل کي ، د افغاني مجاهدينو رهبري پر غاړه درلوده . (١٠)

٤ ـ د خلق ديموکراتيك جريان : د دغه سياسي جريان لومړی کانگرس چي ٢٧ غړي يي درلودل ، د ١٩٦٥ کال د جنوري د مياشتي په لومړي ورځ په کابل کي غونډه وکړه او د دغه جريان د مرکزي کميتي اوه اصلي او څلور علي البدل غړي يي و ټاکل ٠ مرکزي کميتي نور محمد تره کې د دغه جريان د عمومي منشي او ببرك كارمل يي د منشي په حيث و ټاکل ٠ دغه سياسي جريان د مسکو د خط د کمونيزم ملاتړ کاوه٠ دغه جريان په ١٩٦٧ کال کي د خلق او پرچم پر ډلو و ويشل شو ٠ يو کال وروسته د سازا په نامه بله ډله د طاهر بدخشي په مشري د خلق د جناح څخه بيله سوه . ظاهر افق د خپلو ټاکلو افکارو او عقايدو پر اساس ډير ژر د خلق د جريان څخه جلا سو٠ په ١٩٧٧ کال کي خلق او پرچم بيرته سره يو ځای سول . په ١٩٧٨ کال کي د کودتا د لاري څخه قدرت ته ورسيدل ٠

٥ ـ د ديموکرات نوين سياسي ډله : دغه جريان په هيواد کي د خپل نشراتي اورگان ، شعله جاويد په نامه شهرت درلود ٠ دي جريان د چين د خط د کمونيزم پيروي کوله د ديموکرات نوين ډلي ، مشخصه رهبري نه درلودله ولي ډاکټر عبدالرحيم محمودي ، انجينر محمد عثمان او صادق ياري د دغه سياسي جريان

مشران بلل کيدل ٠

۶ ـ د صداي عوام سيا سي جريان يا ( جمعيت) : دغـه ړلـه په ١٩٦٥ کال کي د هرات د ولايت د زنده جان د ولسوالي د وکيل ډاکټر عبدالکريم فرزان له خوا جوړه سوي ده . د دي جريـان مشهور غړي ميرمن معصومه عصمتـي ، ذبيح الله عصمتي او داسي نــور کسان وو٠

٧ ـ د ملي جبهي ړله : دغه سياسي ړلــه د خليل الله خليلي له خوا جوړ سوې ده دا يوه معتدله سياسي ړله وه ، چي د دولت ډير لوړ رتبه مامورين دغي ړلي ته ورغلي وو ٠ د خليل الله خليلي په شمول د دغه جريان څو غړي ، د دولسمي تقنيني دوري د ولسي جرگي وکيلان وو٠ په ولسي جرگي کي حکومت ته د اعتماد د رايي په وخت کي د دغه جريان او د منتخب صدر اعظم ډاکټر محمد يوسف تر منځ لفظي مشاجره پيښه شوې ده ٠

کله چي خليل الله خليلي په جدي کي سفير سو ، تر ده وروسته د دغه جريان رهبري پوهاند محمد اصغر او عبدالحميد مبارز کوله ٠

٨ ـ د ملي اتحاد ړله : دايوه معتدله سياسي ړله وه چي په هيواد کي يي د ديموکراسۍ او مشروطه شاهي حمايه کوله ٠ دغي ړلي په سرکي د مردم او وروسته د ملي اتحاد په نامه نشراتي اورگان درلود٠ د دغه سياسي جريان مشران محمد اسحق عثمان او ډاکټر امان الله رسول وو ٠

٩ ـ د اساسي قانون ړله : دا ړله رسما نه وه اعلان سوي ولي دي ړلي سياسي فعاليت درلود ٠ د دغه جريان په مقدماتي غونډي کي ډاکټر عبدالظاهر ، سيد شمس الدين مجروح ، ډاکټر عبدالقيوم او سيد قاسم رشتيا او نورو برخه درلوده رشتيا ليکي چــي ده تــه ډاکټــر مـحـمـد يـوسف د دغــي غونــډي پــه ارتباط داسي ويــلي وه چــي ( اوس د حزب جوړولــو موضوع خصوصــي جنبه لري او بايد د هغه محرميت و ساتل سي ) ( ١ ١ ) کـله چــي ډاکټر محمد يـوسف مستعفــي شــو ، دغــــي ړلــي ، خپـل سيا سي فعاليت متوقف کړ ٠

په ١٩٦٨ کال کي دغي ړلي د ( مفاهمي ) په نامه د مير محمد صديق فرهنگ په

مشري د ده په کور کي څو غونډي و کړي ، يو تعداد تعليم يافته ګانو په دغو غونډو کي برخه اخستي وه ۰ په کابل کي داسي ويل کيدل چي د اساسي قانون د تسويد د کميټي ټول غړي د دغه جريان ملګري دي ۰ غلام محي الدين زرملوال ، محمد ولي خلمي او ما ته ، دغه جريان ته د شموليت بلنه راکړه سوی وه چي موږ دري واړه د مفاهمي غونډو نه نـه يـو ورغـلـي . په هغو ورځو کي زه د ولسي جرګي د وکالت له پاره کانديد وم او د مفاهمي د جريان د غونډو په ټولي دوري کي په فراه کي وم ۰ کله چي شپږ مياشتي وروسته زه بيرته کابل ته راغلم دغه جريان منحل سوی و ۰

د محمد موسي شفيق په حکومت کي د مفاهمي د غونډو څو غړي د معينانو په حيث مقرر سول چي د شفيق دا مقرري ښيي چي دی هم د دغه جريان ملګری و .

دي اساسي پوښتونو ته تر اوسه هيچا سم جواب نه دی ورکړی چي آيا د ۱۹٦٤ کال د اساسي قانون د تسويـد کميټي ولي د اجتماعاتو قانون تسويد نه کړ ؟ يا د سياسي احزابو قانون چي په ۱۹۷۰ کال کي د شورا د مختلط کمسيو له خوا و منل سو ولي پاچا توشيح نه کړ ؟ يا په هيواد کي جوړو سوو جريانونو ولي په دولتي اداراتو او پوهنتون کي په خلاس لاس جلب او جذب کاوه ، او ددوی ممانعت نه کيدی ؟

د ۱۹٦٤ کال د اساسي قانون ۳۲ مه ماده په دي برخه کي داسي حکم کوي :

لومړي فقره : د افغانستان اتباع د جايزو او سوليزو مقاصدو د تامين له پاره چي د خانه سره وسله ونه لري ، د قانون د احکامو مطابق ددولت د قبلي اجازي څخه پرته د اجتماع حق لري .

دوهمه فقره : د افغانستان اتباع حق لري چي د مادي او معنوي مقاصدو د تامين له پاره د قانون د احکامو مطابق جمعيتونه جوړ کړي .

دريمه فقره : د افغانستان اتباع حق لري چي د قانون د احکامو مطابق سياسي احزاب جوړ کړي په دي شرط چي :

۱ ـ د حزب د بنيادي فعاليتونو اهداف او مفکوري بايد د اساسي قانون د مندرجاتو سره تناقض و نه لري .

۲ ـ د حزب تشکيلات او مالي منابع بايد علني وي .

د ديمو کراسي دوري باخبره اشخاص د ډاکټر عبدالصمد حامد په شمول په دي عقيده دي چي که پاچا د احزابو قانون توشيح کړی وای ، د افراطي ښی‌او کيڼ اړخ د مفکورو خاوندانو د قانون مطابق نه سو کولای چي په هيواد کي د سياسي فعاليت اجازه تر لاسه کړي . داسي ښکاري چي د هيواد کيڼ او ښي احزابو د حزب د جوړولو په برخه کي د اساسي قانون د ۳۲ مي مادي د دريمي فقري پر ځای ، د دوهمي فقري د حکم څخه استفاده کړي وه او د افغانستان دولت په آگاهانه ډول نژدي لس کاله ددغي قانوني حيلي مخه نه وه نيولي ، ولي دولت غوښتل چي د محمد موسي شفيق په وسيله ددغه عمل ممانعت وکړي ولي دا ډير نا وخت سوی و په دي چي د افغانستان اکثر خوانان په ښي او کيڼ احزابو کي متعهد سوي وو چي د حکومت د هر اقدام په مقابل کي يي شديد عکس العمل ښکاره کاوه . ځني افغانان په دي عقيده دي چي که محمد داود خان کودتا نه وای کړي ، ددي احتمال موجود وو چي د شفيق د حکومت په مقابل کي به ديموکراتيك خلق يا بلي سياسي ډلي په کودتا لاس پوري کړی وای .

د سياسي جمعيتونو په ارتباط د افغانستان عامو خلگو داسي فکر کاوه چي ، دغي سياسي ډلي د سلطنتي کورنۍ سره تړلي دي او د ضرورت په وخت کي دا ډلي تر کنترول لاندي راتلای سي ۰ دوی استدلال کاوه چي ، کيڼ اړخ ډلي د محمد داود خان او سردار محمد نعيم سره ارتباط لري او د ښي اړخ ډلي د مارشال شاه ولي خان او سردار عبدالولي سره نژدي اړيکي لري او د افغانستان پاچا د دغو ښيو او کيڼو ډلو تر منځ ، بي غرضه ناست دې او د خاموش اکثريت اراده تمثيلوي ۰

ځرنگه چي په عمل کي ثابته شوه د عامو خلگو دغو خبرو او شايعاتو حقيقت نه درلود ، او ځرنگه چي وروستيو پيښو و ښوووله ، پر دغو ټولو ډلو باندي سلطنتي کورنۍ کنترول نه درلود او يا وروسته يي خپل کنترول د لاسه ورکړې وي ، او په عمل کي هري سياسي ډلي د خپل بين المللي تمايلاتو او عقيدي پيروي کوله چي د ثور کودتا او وروستيو حادثاتو دغه مطلب په اثبا ت ورساوه . ( ۱۲ )

## ۶ ـ د ډاکټر محمد یوسف حکومت

۱۹۶۵ ــ ۱۹۶۳

ډاکټر محمد یوسف خان د محمد حسن زوی ، په ۱۹۱٤ کال کې په کابل کې زیږیدلی دی . دی د اماني لیسې څخه فارغ التحصیل شوی او د فزیك په څانګه کې یې د المان څخه دکتورا اخستې ده . تر څه مودې معلمي وروسته دی د ساینس د پوهنځي رئیس سو ، د پوهنې په وزارت کې یې د مسلکي تدریساتو د رئیس او معین دنده هم تر سره کړې ده . د محمد داود خان په کابینې کــې د کانــو د وزارت وزیــر و . ډاکټر محمد یوسف د ۱۹٦۳ کال د مارچ د میاشتې پر ۱۳ مې نېټې د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه لــه خوا د حکومت پــه جوړولــو مؤظف کــړه شــو ، پــه دغــه وخت کـــې دی ٤۹ کلــن و .

د ډاکټر محمد یوسف خان د حکومت اساسي دنده د افغانستان د ۱۹۳۱ کال پر اساســي قانون باندې نــوی کتنه او د افغانستان او پاکستان د سیاسي روابطو بیا ټینګیدل وو .

د پاکستان سره د مناسباتو په برخه کې د ایران پاچا محمد رضا شاه پهلوي د محمد داود خان تر استعفا د مخه د افغانستان او پاکستان تر منځ ، د منځګړیتوب پیشنهاد کړی و . د ډاکټر محمد یوسف د حکومت په پیل کې یو افغاني هیات د سید قاسم رشتیا په مشرۍ چې نور احمد اعتمادي هم د دغه هیات مهم غړی و ، تهران ته سفر و کړ . د پاکستان له خــوا هــم یو هیات د ذوالفقار علــي بوتو پــه مشرۍ تهران ته رسیدلې و .

په تهران کې د دواړو هیأتونو تر منځ مذاکرات پیل سول . په دغو مذاکراتو کې فیصله و سوه چې د افغانستان او پاکستان تر منځ دې سیاسي مناسبات بیرته ټینګ سي ، تجارتي او ترانزیتي فعالیتونه دې د سره ونیول سي . ولې د اختلاف پر اصلي ټکي چې د پښتونستان موضوع وه هیڅ خبرې و نه سوې ، د پښتونستان پر موضوع باندې د دواړو هیوادونو اختلافات پر خپل ځای پاته سوه . په عمل کې وروسته د افغانستان په حکومتي نشراتو کې د سیا سي پالسۍ تغیر راغی . د پښتونستان پر

موضوع باندي پخواني تاريخي موقف چي د هغه خاى د پښتنو له پاره د خود اراديت د حق غوښتنه وه ، بيرته راژوندي کړه سوه ۰

## د ډاکټر محمد يوسف انتقالي حکومت

د نوي اساسي قانون مطابق د انتقالي حکومت دوره يو کال او ۱۳ ورځي تثبيت سوى وه چي د ۱۳٤٤ ه ش کال د ميزان د مياشتي پر ۲۲ نيټي ( ۱۹٦٥) چي د اعليحضرت محمد ظاهر شاه د تولد ورځ وه ، دغه دوره پاى ته رسيده ۰

د اساسي قانون د ۱۲٦ مـي مادي د حکم مطابق ، انتقالي حکومت دغه وظايف سر ته ورسول ۰

ـ د انتخاباتو ، اساسي تشکيلاتو. ، مطبوعاتو او قضايي تشکيلاتو او صلاحيتونو قوانين يي ترتيب کړه ، او د پاچا تر توشيح وروسته نافذ سول ۰

ـ د احزابو او ولايتي جرگو قوانين يي ترتيب کړه او د تصويب له پاره يي د دولسمي دوري د شورا ، ولسي جرگي ته وړاندي کړه ۰

## د ډاکټر محمد يوسف دريم حکومت

په ۱۹٦٥ کال کي ډاکټر محمد يوسف بيا د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو مامور کړ سو۰ ده ولسي جرگي ته د اعتماد د رايو اخستلو له پاره مراجعه و کړه ، په ولسي جرگي کي د ډاکټر محمد يوسف حکومت ته د راي ورکولو په لاري کي خنډونه پيښ سول ، ولي د ده حکومت د عقرب د مياشتي پر دريمه ورځ د ولسي جرگي څخه د اعتماد رايه واخسته ۰ په دغه ورځ په کابل کي د عقرب د دريمي حادثه پيښه سوه ، د دغي حادثي په نتيجه کي دري ورځي وروسته د ډاکټر محمد يوسف حکومت مستعفي شو او د ده پـر خـاى محمد هاشم مـيونـد وال د حکومت پـه جوړولو مؤظف کړه سو ۰

ډاکټر محمد يوسف په خپلي يوى مصاحبي کي ويلي دي (( وروسته تر هغه چي د صدارت څخه د محمد داود خان استعفي پاچا ومنله ، نو ده غوښتل چي ما د افغانستان د صدر اعظم په حيث وټاکي ، کله چي ده دغه غوښتنه زما څخه وکړه ، ما په جواب کي پاچا ته وويل چي تر محمد داود خان وروسته په افغانستان کي حکومت

کول آسانه کار نه دی ، خکه نو ما ته د صدارت د مقام مکمل صلاحیتونه باید راکړه سي ، څرنګه چي په هغه وخت کي پاچا پر ما باندي ډیر اعتماد درلود ، نو ده زما دغه غوښتنه و منله او د صدارت د وظیفي ټول صلاحیتونه یي ما ته راکړه ، ولي وروسته تر هغه چي ما احساس کړه چي د صدارت صلاحیتونه زما څخه سلب سوي دي ، پر هغه سربیره چي ما د عقرب د میاشتي په دریمه ورځ د ولسي جرګي څخه د اعتماد رایه اخستي هم وه ، بیا هم ما استعفي وکړه )) ( د خراسان مجله د ۱۹۸۸ کال د کتوبر د میاشتي ٦ )

## د ډاکټر محمد یوسف د حکومت ترکیب

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | ډاکټر محمد یوسف | ۱۹۶۵_۱۹۶۳ |
| لومړې مرستیال | عبدالله ملکیار | ۱۹۶٤_۱۹ ۶۳ |
| دوهم مرستیال | ډاکټر علي احمد پوپل | ۱۹۶٤_۱۹۶۳ |
| د صدر اعظم مرستیال | ډاکټر عبدالظاهر | ۱۹۶۵_۱۹۶٤ |
| د دفاع وزیر | جنرال خان محمد خان | ۱۹۶۵_۱۹۶۳ |
| خارجه وزیر | ډاکټر محمد یوسف | ۱۹۶۵_۱۹۶۳ |
| داخله وزیر | سید عبدالله | ۱۹۶۳_۱۹۶۳ |
| | ډاکټر عبدالقیوم | ۱۹۶۵_۱۹۶ ۳ |
| د مالیي وزیر | عبدالله ملکیار | ۱۹۶٤_۱۹۶۳ |
| | سید قاسم رشتیا | ۱۹۶۵_۱۹۶٤ |
| د عدلیي وزیر | سید شمس الدین مجروح | ۱۹۶۵_۱۹۶۳ |
| د کانو وزیر | ډاکټر محمد یوسف | ۱۹۶۳_۱۹۶۳ |
| | انجینر محمد حسین مسا | ۱۹۶۵_۱۹۶۳ |
| د کرني وزیر | ډاکټر محمد ناصر کشاورز | ۱۹۶۵_۱۹۶۳ |
| د فواید عامي وزیر | جنرال محمد عظیم | ۱۹۶۵_۱۹۶۳ |
| د پوهني وزیر | ډاکټر علي احمد پوپل | ۱۹۶٤_۱۹۶۳ |

| | | |
|---|---|---|
| | ډاکټر محمد انس | ۱۹۶۵ـ۱۹۶٤ |
| د مطبوعاتو وزير | سيد قاسم رشتيا | ۱۹۶٤ـ۱۹۶۳ |
| | محمد هاشم ميوندوال | ۱۹۶۵ـ۱۹۶٤ |
| د تجارت وزير | محمد سرور عمر | ۱۹۶۵ـ۱۹۶۳ |
| د پلان وزير | عبدالحې عزيز | ۱۹۶۳ـ۱۹۶۳ |
| | عبدالله يفتلي | ۱۹۶۵ـ۱۹۶۳ |
| د روغتيا وزير | ډاکټر عبدالرحيم | ۱۹۶٤ـ۹۶۳ |
| | ډاکټر عبدالظاهر | ۱۹۶۵ـ۱۹۶٤ |
| د مخابراتو وزير | ډاکټر عبدالقيوم | ۱۹۶۳ـ۱۹۶۳ |
| | ډاکټر محمد حيدر | ۱۹۶۵ـ۱۹۶۳ |
| د قبايلو مستقل رئيس | سيد شمس الدين مجروح | ۱۹۶۳ـ۱۹۶۳ |
| | گل پاچا الفت | ۱۹۶۵ـ۱۹۶۳ |

( ۱۳ )

## ۷ ـ د عقرب ددريمي حادثه

په ۱۹٦٥ کال کي ډاکټر محمد يوسف د دوهم وار له پاره د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو مامور کړ سو ٠ ده ولسي جرگي ته د اعتماد د رايي له پاره مراجعه وکړه د ولسي جرگي ډيرو وکيلانو د خليل الله خليلي د ملگرو په شمول د ده د حکومت سره موافقه نه درلوده . د عقرب په دوهمه ورځ د حقوقو د پوهنځي شاگردان ولسي جرگي ته ورغله او د هغي جرگي د تالار ټولي چوکې يي و نيولي ، ځينو شاگردانو د ولسي جرگي په تالار کي ډاکټر محمد يوسف ته چکچکي هم وکړي ، په حقيقت کي ډاکټر محمد يوسف غوښتل چي د شاگردانو د فشار له لاري ځخه د ولسي جرگي ځخه د اعتماد رايه واخلي . ( ١٤ )

په دغه ورځ حکومت ته د اعتماد د رايي تصميم و نه نيول سو ، ولسي جرگي د

اعتماد رایه بلي ورځي ته وځنډوله ۰ په دغه ورځ ولسي جرګي فيصله وکړه چي د سبا
ورځي د اعتماد درايو غونډه به سري وي ، او سا معينو ته د ولسي جرګي تالار ته د
ننوتلو اجازا نه و رکوله کيږي ۰

د ۱۹٦٥ کال د اکتوبر د مياشتي ۲٥ مه د عقرب د مياشتي دريمه ورځ وه ، د
شورا د ماڼي په مخ کي ډير محصلين ور ټول سوي وو ۰ دوی ته په لوړ سپيکر کي
وويل سول چي د ولسي جرګي د نن ورځي غونډه سري ده او تاسي د ولسي جرګي
تالار ته نه سی داخليدلای . ( ۱ ٥ )

تر دوو زرو ډيرو شاګردانو د ولسي جرګي د سري غونډي پر ضد احتجاج وکړ ۰
د سهار پر نهو بجو چي ډاکټر محمد يوسف د خپل کور څخه صدارت ته تي ، د ده
موټر د يوي ډلي شاګردانو له خوا و درول سو ، ده ته يي د ولسي جرګي د سري
غونډي شکايت وکړ ۰ وروسته شاګردانو د حبيبيي د ليسي هنداري ماتي کړي ، د
ډاکټر يوسف کور ته نژدي عسکرو پر شاګردانو فيرونه وکړه چي څه نا څه دري
کسان هلته و وژل سوه ۰د دغي سيمي د امنيت واك د سردار عبدالولي په لاس کي و ،
ډيرو افغانانو دې د نوموړي حادثي مسؤول وباله ۰

## ۸ ـ د محمد هاشم ميوندوال حکومت

۱۹٦٥ــ۱۹٦۷

محمد هاشم ميوندوال د ملا عبدالحليم زوی دې چي په ۱۲۹۸ ه ش کال (۱۹۱۹) کي
د مقر په ولسوالي کي زيږيدلی دی ۰ په ۱۳۲۱ ه ش کال (۱۹٤۲) کي د حبيبيي د
ليسي څخه فارغ التحصيل سو ، وروسته د هرات د اتفاق اسلام د جريدي مدير سو ،
په دغه وخت کي محمد هاشم ميوندوال پرديس تخلص کاوه ۰

محمد هاشم ميوندوال د خارق العاده استعداد خاوند و ، ده د افغانستان په دولت
کي په مهمو چوکيو کي کار کړی دی ۰ دی دري واره د مطبوعاتو مستقل رئيس يا
وزير مقرر سوی دی ، او دوه واره په کراچي کي افغاني سفير و ، په واشنګټن کي يي د
مستشار او لوی سفير په حيث کار کړی دی ، په خارجه وزارت کي معين و ، د څه

وخت له پاره د پاچا مطبوعاتي مشاور هم و ۰ محمد هاشم ميوندوال د ۱۹٦٥ کال د اکتوبرد مياشتي پر۳۰ نيټي د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو مؤظف کړ سو ۱۶

محمد هاشم ميوندوال خپله کابينه او د حکومت کړنلاره د نومبر د مياشتي پر دوهمه ورځ ولسي جرگي ته وړاندي کړه ، او د ولسي جرگي څخه يي د اعتماد رايه واخسته ۰ څرنگه چې په دغه وخت کي د عقرب د دريمي حادثه پيښه سوی وه ، محمد هاشم ميوندوال په خپله د شورا د يو شمير وکيلانو سره د کابل پوهنتون ته ولاړ او د پوهنتون په اديتوريم کي يي د وژل سوو وطنوالو روح ته دعا وکړه او د پوهنتون محصلينو ته يي وعده ورکړه چي د عقرب د دريمي د پيښي عاملينو ته به سزا ورکړي د دغـي واقعـي بـنـديـان بــه خـوشــي کړي ، محصلينو ته به د اتحاديي د جوړولو اجازه ورکړي ۰

په دغه تعهد سره د محمد هاشم ميوندوال څخه د پوهنتون ټول شاگردان خوشحاله سول او دی يي په چکچکو استقبال کړ ۰ څرنگه چي د عقرب د حادثي تر شا لويو لاسونو کار کاوه ، نو محمد هاشم ميوندوال خپله وعده تر سره نه کړه . ( ۱۷ )

د ۱۹٦٥ کال د نومبر د مياشتي پر ١٤ نيټي د شوروي اتحاد يو هيات د هغه هيواد د صدر اعظم د مرستيال په مشري د کشک ، تورغونډي ، هرات او کندهار د لويي لاري د پرانستلو له پاره کابل ته سفر وکړ ۰ د ١٣٤٤ ه ش کال د جدي د مياشتي پر ٢٤ نيټي ( ١٩٦٥ ) د شوروي اتحاد صدر اعظم کاسيگين د هند څخه د بيرته راتلو په وخت کي په کابل کي تم سو ، ده د پاچا او محمد هاشم ميوندوال سره وليدل او ميوندوال يي هغه هيواد ته دعوت کړ ۰ محمد هاشم ميوندوال د ١٩٦٦ کال د فبروري د مياشتي پر اوله نيټه شوروي اتحاد ته سفر وکړ ۰ د ١٣٤٥ ه ش کال د عقرب د مياشتي پـر ٢٢ نيټي ( ١٩٦٦ ) د شير خان بندر او دوشـي د سړك د قير اچولو کار چي ٢١٤ کيلو متره وو ، پای ته ورسيدی او رسما پرانستل سو ۰

د ميوندوال د حکومت په وخت کي د امريکايانو سره يو شمير اقتصادي او تعليمي تړونونه لاس ليك سوه ۰ د کابل او کندهار د سړك د جوړولو چاري يي چټکي کړي ۰ د ١٣٤٥ ه ش کال د سرطان په مياشت (١٩٦٦) کي د کابل او کندهار سړك چي د

امریکایي انجینرانو له خوا ، تسطیح او اسفلت سوی و په رسمي توگه پرانستل سو

محمد هاشم میوندوال د ۱۹٦۷ کال د مارچ د میاشتي پر ۲۳ نیټي ، امریکا ته رسمي سفر وکړ او د دریم اقتصادي پلان له پاره یي د امریکا څخه د مرستو غوښتنه و کړه د ۱۹٦۷ کال د آگست د میاشتي پر څلورمي نیټي ، امریکا د ارغنداب او هلمند د ناوي د کرني د پروژو له پاره  د څلور نیمو ملیونو ډالرو مرستي وعده وکړه ۰

محمد هاشم میوندوال د خپل صدارت په وخت کي د مترقي دیموکرات په نامه یو گوند جوړ کړ چي د مساوات جریده د دغه گوند نشراتي اورگان و  ( ۱ ۸ )

د میوندوال د صدارت په وخت کي د هیواد د پووندو ( کوچیانو ) په گټه د څارویو محصول معاف کړ سو . څرنگه چي پووندو د کال په سر او پای کي خپلي میني بدلولي نو په ځینو سیمو کي دوی مجبوره کیدل چي څو واره د خپلو څارویو محصول ورکړي ، چي د میوندوال دغه ابتکار دوی د لوی مشکل څخه خلاص کړه .

د میر غلام محد غبار مشهور اثر ( افغانستان در مسیر تاریخ ) د محمد هاشم میوندوال د صدارت په وخت کي چي عبدالرؤف بینوا د مطبوعاتو وزیر و ، په دولتي مطبعي کي چاپ کړ سو . کتاب د مطبعي څخه لا نه و وتلی چي محمد هاشم میوندوال مستعفي سو او دده پر ځای نور احمد اعتمادي صدر اعظم سو ، د نوي حکومت په امر دغه کتاب په مطبعي کي قید کړه سو ، ولي حشمت خلیل غبار د کتاب څلویښت ټوکه د مطبعي څخه وه ایستل چي یو ټوك یي ما ته هم راکړ . ددغه کتاب دري زرو ټوکو ته د نور محمد تره کي په وخت کي د مطبعي څخه د وتلو اجازه ورکړه سوه .

د محمد هاشم میوندوال له پاره د Ramparts په نامه د یوي امریکایي مجلي یوه مضمون سیاسي مشکلات پیدا کړه ۰ دغي مجلي د زراعت په څانگي کي د یوه افغاني محصل عبداللطیف هوتکي د قوله لیکلي و چي (( زه په ۱۹٦۱ کال کي د افغاني محصلینو د اتحادیي د مشر ضیا همایون نورزوی او د سي۰آی ۰ اې د یوه ایجنټ له خوا داسي تشویق کړه سوم ، چي کله افغانستان تـه ولاړ سم هلته د دغـي اداري لـه پاره کار و کړم )) هوتکي دا ادعا هم کړي وه چي (( د مالیي د وزارت د خزاینو اوسنی رئیس ضیا همایون نورزوی او د افغانستان د دولت یو گڼ شمیر کلیدي مامورین  چي

په امریکا کي یي تحصیل کړی دې د سي۰ آی ۰ ای له خوا تربیه یا تلقین سوي دي ، چي ځني دغه مامورین د کابیني په سطحه کي دي ) ) ( ۱۹ )

د محمد هاشم میوندوال مخالفینو لکه د اساسي قانون ړلي او ځینو چپو جریانونو د رامپارتس د مجلي دغه مضمون د محمد هاشم میوندوال پر ضد ډیر تبلیغ کړ، تر څو چي محمد هاشم میوندوال او د ده ملګري مجبور سول چي د رامپارتس د مجلي دغه مضمون ترجمه او د مساوات په جریدي کي یي نشر کړي ۰ دوی یوه لویه اشتباه وکړه ، هغه اشتباه دا وه چي دوی د رامپارتس د مجلي د مضمون هغه برخه نشر نه کړه چي د افغانستان د دولت په مامورینو پوري یي اړه درلوده ۰ دغي اشتبا د محمد هاشم میوندوال له پاره جدي ستونزي راپیدا کړي ۰ د میوندوال مخالفینو د رامپارتس د مجلي دغه ګڼه پیدا کړی وه او دوی په دي ښه پوهیدل چي د مساوات جریدي د دغه مضمون یوه برخه نه ده نشر کړي ۰ دوی ادعا کوله چي د مساوات جریدي د محمد هاشم میوندوال نوم ، د مضمون د ترجمي څخه حذف کړی دی ، په داسي حال کي چي دمیوندوال د مخالفینو دغي ادعا حقیقت نه درلود ، په دي چي د محمد هاشم میوندوال نوم په دغه مضمون کي نه و لیکل سوی ۰

په ۱۳٤٦ ه ش کال (۱۹٦۷) کي د محمد هاشم میوندوال حکومت د سیاسي او اقتصادي مشکلاتو سره مخامخ سو ۰ د پوهنتون او ښوونځیو شاګردانو او یو شمیر د فابریکو کارګرانو په خپلو مظاهرو سره ، د ورځي عادي چاري مختلي کړي ۰ په ولسي جرګي کي د محمد هاشم میوندوال مخالفو وکیلانو ، د ده د حکومت پر اجراآتو انتقادونه وکړه ۰ د محمد هاشم میوندوال صحي حالت هم ډیر خراب و ، ده د کولمو د انسداد د ناروغۍ ، دري واره عملیات کړي وو چي څلورم عملیات ته هم ضرورت و۰چي د ۱۹٦۷ کال د اکتوبر د میاشتي پر ۱۱ نیټي مستعفي سو (۲۰)

---

تبصره : د رامپارتس سیاسي مجله د ۱۹٦۲ کال څخه بیا تر ۱۹۷٥ پوري د امریکا د شمالي کلفورنیا د برکلی په ښار کي خپریدله ۰ دغي مجلي د ۱۹٦۷ کال د اپریل د میاشتي د ګڼي په ۲۳ او ٢٤ مخونو کي د دغي مجلي د محرر له خوا تر دي عنوان

لاندي چي ( څرنګه سي.آی ای د خارجي شاګردانو څخه خاینان جوړوي ) په یوه مخصوص راپور کي چي دري برخي يي درلودلي ، د یوه افغاني محصل عبداللطیف هوتکي له قوله پورته مطالب لیکلي دی . ما د امریکا د ورجینیا دایالت د جورج میسن د پوهنتون په کتابخاني کي دغه مضمون د مکرو فلم څخه لوستی دی . دلته دا مطلب د لیکلو وړ بولم چي د رامپارتس د مجلي په دغه مضمون کي یوازي د ضیا همایون نورزوی نوم لیکل سوی دی ، د بل افغاني مامور نوم په دغه مضمون کي نه دی ذکر سوی . که څوك د رامپارتس د مجلي دغه مضمون و لولي ، په دي به متیقین سي چي عبداللطیف هوتکي دغه مضمون د محمد هاشم میوندوال په ارتباط نه دی لیکی ، او نه هم محمد هاشم میوندوال په امریکا کي درس لوستی دی . د مضمون د متن څخه داسي ښکاري چي په خپله هوتکي د امریکا د ویزي د دفتر سره مشکلات درلودل او دی د امریکا د حکومت څخه شاکي دی چي پورته ټول مطالب په دغه مضمون کي تشریح سوي دي . د رامپارتس د مجلي د دغه مضمون هغه برخه چي د افغانانو په ارتباط لیکل سوی ده د کتاب په ضمیمه پاڼو کي لوستلای سی .

## د محمد هاشم میوندوال د حکومت ترکیب

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | محمد هاشم میوندوال | ۱۹۶۵_۱۹۶۷ |
| لومړی مرستیال | نور احمد اعتمادي | ۱۹۶۵_۱۹۶۷ |
| دوهم مرستیال | عبدالستار شالیزي | ۱۹۶۵_۱۹۶۶ |
| د دفاع وزیر | جنرال خان محمد | ۱۹۶۵_۱۹۶۷ |
| خارجه وزیر | نور احمد اعتمادي | ۱۹۶۵_۱۹۶۷ |
| داخله وزیر | عبدالستار شالیزي | ۱۹۶۵_۱۹۶۶ |
| | انجینر احمدالله | ۱۹۶۶_۱۹۶۷ |
| د مالیي وزیر | عبدالله یفتلي | ۱۹۶۵_۱۹۶۷ |
| | عبدالکریم حکیمي | ۱۹۶۷_۱۹۶۷ |

| | | |
|---|---|---|
| د عدليي وزير | عبدالحکيم طبيبي | ۱۹۶۶_۱۹۶۵ |
| | ډاکټرمحمد حيدر | ۱۹۶۷_۱۹۶۶ |
| | ډاکټر محمد احسان تره کي | ۱۹۶۷_۱۹۶۷ |
| د پوهني وزير | محمد هاشم ميوندوال | ۱۹۶۵_۱۹۶۵ |
| | ډاکټر محمد عثمان انوري | ۱۹۶۷_۱۹۶۵ |
| د فوايد عامي وزير | انجينر احمدالله | ۱۹۶۶_۱۹۶۵ |
| | انجينر محمد حسين مسا | ۱۹۶۷_۱۹۶۶ |
| د کانو وزير | انجينر عبدالصمد سليم | ۱۹۶۵_۱۹۶۵ |
| د کرني وزير | انجينر محمد اکبر رضا | ۱۹۶۵_۱۹۶۵ |
| د مطبوعاتو وزير | محمد هاشم ميوندوال | ۱۹۶۵_۱۹۶۵ |
| | محمد عثمان صدقي | ۱۹۶۷_۱۹۶۵ |
| | عبدالرؤف بينوا | ۱۹۶۷_۱۹۶۷ |
| د تجارت وزير | ډاکټر نور علي | ۱۹۶۷_۱۹۶۵ |
| د پلان وزير | ډاکټر عبدالحکيم ضيايي | ۱۹۶۷_۱۹۶۶ |
| | عبدالله يفتلي | ۱۹۶۷_۱۹۶۷ |
| د روغتيا وزير | محمد عثمان انوري | ۱۹۶۵_۱۹۶۵ |
| د روغتيا وزيره | پيغله کبرا نورزايي | ۱۹۶۷_۱۹۶۵ |
| د مخابراتو وزير | ډاکټر محمد حيدر | ۱۹۶۶_۱۹۶۵ |
| | عبدالکريم حکيمي | ۱۹۶۷_۱۹۶۶ |
| مشاور وزير | ډاکټر محمد انس | ۱۹۶۷_۱۹۶۷ |
| مشاور وزير | عبدالله يفتلي | ۱۹۶۷_۱۹۶۷ |
| د قبايلو مستقل رئيس | محمد خالد روښان | ۱۹۶۷_۱۹۶۵ |

(۲۱)

۹ ـ د نور احمد اعتمادي حکومت

نور احمد اعتمادي د سردار غلام محمد خان زوی او د سردار عبدالقدوس خان اعتمادالدوله لمسی دی . هغه وخت چي د ده نيکه په کندهار کي د هيواد د خپلواکۍ د بيرته اخستلو د جبهي د لوی قوماندان په حيث ، کارکاوه په ۱۲۹۹ ه ش کال (۱۹۲۰) کي پــه کندهار کــي زيږيدلی دی . دی يو شريف افغان و چي د ظلم او بي عدالتي څخه يي بښه نه راتله .

نور احمد اعتمادي د استقلال په ليسي کي زده کړه کړي وه ، د پوهني په وزارت کي يي په کار پيل کړی دی ، وروسته د خارجه وزارت مامور سو ، په خارجه وزارت کي يي په مهمو چوکيو کي کار کړي دي . ده په کراچي ، اسلام آباد ، روم او مسکو کي د افغانستان د سفير په حيث وظيفه اجرا کړي وه . دی يو ورزيده ديپلومات و او د محمد هاشم ميوندوال په حکومت کي ، د صدر اعظم مرستيال او خارجه وزير و.

نور احمد اعتمادي د ۱۹٦۷ کال د نومبر د مياشتي پر لومړی نيټي د پاچا له خوا د کابيني په جوړولو مامور کړ سو ، د ده لومړي حکومت د ۱۹٦۷ کال د نومبر په مياشت کي د دولسمي تقنيني دوري د ولسي جرگي څخه د اعتماد رايه واخسته . د ده دوهم حکومت په ۱۹٦۹ کال کي د ديارلسمي تقنيني دوري د ولسي جرگي څخه د اعتماد رايه واخسته .

نور احمد اعتمادي د ديموکراسۍ په وخت کي تر هر بل صدر اعظم ډير اوږد حکومت کړی دی . دديموکراسي دوره لس کاله او څلور مياشتي وه ، د دغي دوري څخه ، يوازي نور احمد اعتمادي ، دري کاله او اتـه مياشتي د افغانستـان صدر اعظم و . د نور احمد اعتمادي حکومت په هيواد کي د دغو مشکلاتو سره مخامخ سو :

- د پوهنتون او معارف د شاگردانو ، مظاهري او اعتصابونه
- د پل خشتي په مسجد کي ، د مذهبي علماو اعتراضيه احتجاج
- دولسي جرگي سره ، نه تفاهم او عدم همکاري
- د محمد هاشم ميوندوال او مترقي ديموکرات د گوند سره مجادله

د مترقي ديموکرات د گوند يوه غړي د موسۍ کلا وکيل عبدالرؤف بينوا ، د نوراحمد اعتمادي د دوهم حکومت د اعتماد درايي په غونډي کي ، د ده د حکومت پر

اجراآتو نیوکي وکړي کله چې بینوا د خپل پارلماني وینا یوه برخه د پښتو څخه دري ته را اړوله ، نو ده په کنایي سره نور احمد اعتمادي ته داسي و ویل :

با یار قدیم غم کهن باید گفت

لابد به زبان او سخن باید گفت

پورته څلور عمده معضلي وي چې د نور احمد اعتمادي حکومت یي مشغوله وساتی او د ده د مثبتو کارونو مانع سو . د نور احمد اعتمادي د حکومت ټوله دوره په مجادلي او ناارامیو سره تیره سوه ، تر څو چې د ده حکومت په ولسي جرگې کې د نه اعتماد درایي سره مخامخ سو . او د ۱۹۷۱ کال د مې په میاشت کې مستعفي سو او د ده پر ځای ډاکټر عبدالظاهر د افغانستان صدر اعظم سو . ( ۲ ۲ )

یوه ټوکه

د نور احمد اعتمادي د لومړي حکومت په دواړو کلونو کې د دولتي پروژو یوازي مطالعه کیدله . حکومتي اخبارونو به په دغه ارتباط لیکل چې حکومت د پروژو په برخه کې اول فکر کوي او بیا وروسته عمل کوي .

د نور احمد اعتمادي د دوهم حکومت په پیل کې د پکتیا د صبریو او احمدزو تر منځ خونړي جگړه پیښه سوه ، چې په کابل کې ویل کیدل چې حکومت په دغو جگړو کې لاس لري . یوه ورځ د گل پاچا الفت څخه چا پوښتنه و کړه چې حکومت ولي دغه کار کوي ؟ الفت په ټوکه ده ته و ویل چې (( حکومت دوه کاله فکر کاوه او کار یي نه کاوه ، اوس کار کوي خو فکر نه کوي ))

د نور احمد اعتمادي د لومړي حکومت ترکیب

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | نور احمد اعتمادي | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| لومړی مرستیال | ډاکټر علي احمد پوپل | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| دوهم مرستیال | عبدالله یفتلي | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د دفاع وزیر | جنرال خان محمد | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| خارجه وزیر | نور احمد اعتمادي | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |

| | | |
|---|---|---|
| داخله وزير | ډاکټر محمد عمر وردك | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د مالیي وزير | محمد انور ضيايي | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د عدليي وزير | ډاکټر محمد اصغر | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د کانو وزير | انجينر عبدالصمد سليم | ۱۹۶۸_۱۹۶۷ |
| | انجينر محمد حسين مسا | ۱۹۶۹_۱۹۶۸ |
| د کرني وزير | انجينر محمد اکبر رضا | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د فوايدعامي وزير | انجينر محمد حسين مسا | ۱۹۶۸_۱۹۶۷ |
| د پوهني وزير | ډاکټر علي احمد پوپل | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| | ډاکټر محمد اکرم | ۱۹۶۹_۱۹۶۹ |
| د اطلاعاتو او کلتور وزير | ډاکټر محمد انس | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د تجارت وزير | ډاکټر نور علي | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د پلان وزير | ډاکټر عبدالصمد حامد | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د روغتيا وزيره | پيغله کبرا نورزايي | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د مخابراتو وزير | انجينر محمد عظيم گران | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| مشاور وزير | ډاکټر عبدالواحد سرابي | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |
| د قبايلو مستقل رئيس | سيد مسعود پوهنيار | ۱۹۶۹_۱۹۶۷ |

## د نور احمد اعتمادي د دوهم حکومت ترکيب

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | نور احمد اعتمادي | ۱۹۷۱_۱۹۶۹ |
| لومړي مرستيال | عبدالله يفتلي | ۱۹۷۱_۱۹۶۹ |
| دوهم مرستيال | ډاکټر عبدالقيوم | ۱۹۷۱_۱۹۶۹ |
| د دفاع وزير | جنرال خان محمد | ۱۹۷۱_۱۹۶۹ |
| خارجه وزير | نور احمد اعتمادي | ۱۹۷۱_۱۹۶۹ |

| | | |
|---|---|---|
| داخله وزير | انجينر محمد بشير لودين | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د ماليي وزير | ډاکټر محمد امان | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د عدليي وزير | عبدالستار سيرت | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د کانو او صنايعو وزير | امان الله منصوري | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د پوهني وزير | ډاکټر عبدالقيوم | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د کرني وزير | عبدالحکيم | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د فوايد عامي وزير | انجينر محمد يعقوب لعلي | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د اطلاعاتو او کلتور وزير | ډاکټر محمود حبيبي | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د تجارت وزير | ډاکټر محمد اکبر عمر | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د پلان وزير | ډاکټر عبدالواحد سرابي | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د روغتيا وزير | ډاکټر محمد ابراهم مجيد سراج | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د مخابراتو وزير | انجينر محمد عظيم گران | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| مشاور وزير | غلام علي آئين | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| مشاوره وزيره | ميرمن شفيقه ضيايي | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |
| د قبايلو مستقل رئيس | سيد مسعود پوهنيار | ۱۹۶۹ـ۱۹۷۱ |

(۲۳)

### ۱۰ ـ د پل خشتي په مسجد کي ددیني علماوو غونډي د

تاريخ په اوږدوکي د افغانستان پاچاهانو خلگو ته دا حق نه وو ورکړی چي د حکومت پر اجرااتو انتقادونه وکړي چي په نتيجه کي عامو خلگو به هميشه ويل چــي (( دا د سرکار کار دی او په موږ پوري اړه نه لري ))

کله چي په ۱۹٦٤ کال کي د پاچا په اراده د پاسه ځخه د افغانستان خلگو ته د

ديموكراسي حق ورکړ سو، خو د افغانستان خلگ په دي نه پوهيدل چي د ديموكراسي څخه څنگه استفاده وکړي ؟ د افغانستان دولت او حکومت د ديموكراسي د سالم رشد له پاره لازم تدابير و نه نيول او حتي دوی د اساسي قانون متمم قوانين هم نافذ نه کړه ۰ چي په پای کي ځينو اشخاصو او ډلو د دغي سياسي خلا څخه ناوړه استفاده وکړه او خبره دي ځای ته ورسيده چي د افغانستان ملي او اسلامي مقدساتو ته د ديموكراسي تر نامه لاندي ، سپکاوی پيل سو ۰ د مثال په توگه :

ـ په ۱۹٦۸ کال کي د صدر اعظم نور احمد اعتمادي څخه د استيضاح په غونډي کي چي زه هم د سامع په حيث حاضر وم ، د بادغيس د مرغاب د ولسوالي وکيل غلام رباني شملزي صدر اعظم ته و ويل چي په مسکو کي د غلام سخي غيرت په نامه يوه افغاني محصل قرآن شريف ته اهانت کړی دی او حکومت بايد د دغي موضوع تحقيق وکړي خو حکومت د دغي موضوع پوښتنه و نه کړه ۰

ـ په ۱۹٦۸ کال کي د اصلاح په حکومتي ورځپاڼي کي د ( مرد نه زنه ) تر عنوان لاندي يو کاريکاتور خپور سو ، چي ځينو خلگو به ويل چي د دغه کاريکاتور هدف حضرت پيغمبر ء ص ء دی ۰ د اصلاح د ورځپاڼي دغه کاريکاتو د غربي المان د مطبوعاتو څخه اخستل شوی و چي دغه کاريکاتو ، په اول کي د اسرايلو په مطبوعاتو کي خپور شوی و ۰

ـ د کابل په سينماگانو کي د حضرت يوسف په نامه يو فلم په نمايش ايښودل شوی و چي د دغه فلم ځيني برخي د اسلام پر ضد وې ۰

ـ د پرچم په جريدي کي پر لينن درود ويل سوی و ۰

د پورتني اسلام ضد نشراتو او پيښو خبرونه ، د افغانستان شورا او د هيواد عامو خلگو ته و رسيدل ۰ د ۱۹۷۰ کال د اپريل او مې په مياشتو کي د هيواد د ډيرو سيمو ملايان او طالبان د پل خشتي په مسجد کي د ۳ ٤ ورخو له پاره سره يو ځای سوه ، دوی په دغه مسجد کي د دولت او حکومت پر ضد خطابي ورکولي او د دغو علماوو يو مشر مولوي فيضاني و چي هلته يي اسلامي احکام بيانول ۰ په مسجد کي د علماوو

او عامو خلگو شمیر مخ پر زیاتیدو و ، د کابل ښاریانو د دیني علماو سره ډیره همدردي و ښووله ، سوداگرو او عاموخلگو به هره ورځ پخه ډوډي مسجد ته وروړه ۰

حکومت په غیر مستقیم طور د دیني علماوو د ځینو مشرانو سره خبري وکړي ، ولي دغه خبري ناکامي سوي ۰ په دي دلیل چي د دیني علماو غوښتني ، هره ورځ ډیریدلي ځو په پای کي دوی ډیري پراخي غوښتني وړاندي کړي ۰دوی په هیواد کي د اسلامي شریعت او حنفي مذهب ، د کا مل تطبیق غوښتنه کوله ۰ دوی د پوهنی د وزارت د تعلیمي نصاب او د نجونو د تحصیل موضوع او د اسلامي حجاب مساله هم مطرح کړه ۰

د افغانستان دولت او حکومت د دیني علماوو دغه اعتصاب او غوښتني د امان الله خان د وخت د حالاتو سره مشابه و بللي نو د دوی غوښتني یي و نه منلي ۰ حکومت فیصله وکړه چي د علماوو دغه حرکت ، د برچي په زور خاموشه کړه سي ۰ د شپي له خوا کله چي علما بیده وو ، عسکري منظم ټولگي د پل خشتي په مسجد ورننوتل او دوی یي په زوره په عسکري لاریو کي واچول او مربوطه ولایاتو ته یي ورسول په ولایاتو کي د دوی څخه په دي مفهوم تعهد نامي واخستل سوي چي ( تردي وروسته به د خپل ولایت څخه بل ولایت ته سفر نه کوي او په اعتصابونو کي به برخه نه اخلي )

د افغانستان پاچا محمد ظاهر شاه ، د دي له پاره چي د دیني علماوو پر ضد د حکومت دغه شدید عمل په شوراکي بد انعکاس و نه کړي ، ده په خپله د شورا د ټولو غړو سره ولیدل ۰ زه هم د فراه او نیمروز د وکیلانو په ډلي کي د پاچا حضور ته ورغلی وم ، پاچا د دیني علماوو د دغه اعتصاب او پراخو غوښتنو غندنه وکړه . پاچا وکیلانو او سناتورانوته توصیه وکړه ، چي که په شورا کي د دغي موضوع په ارتباط څوك ناوړه اقدامات کوي د شورا غړي باید د هغه مخه و نیسي ۰ د پاچا تر فرمایشاتو وروسته د نیمروز د ولایت سناتور متقاعد ډگروال شیر محمدخان د نورو په نمایندگي پاچا ته ډاډ گیرنه ورکړه ۰

د پل خشتي په مسجد کي د دیني علماو د تحصن په برخه کي د کابل په محافلو کي راز راز تبصري کیدي ۰

ـ ځینوبه استدلال کاوه چي  په وروستیو کلونو کي په هیواد کي ډیره بي بندوباري راغلي ده ،  اوس د دي وخت رارسیدلې دې چي د دعه آفت مخه باید و نیوله سي .

ـ ځیني کسان په دي عقیده وو چي د دیموکراسۍ په دوري کي په پوهنتون او دولتي اداراتو کي د چپو ډلو د نفوذ له پاره ډیره زمینه برابره سوی ده ، د شوروي اتحاد او نورو سوسیالستي هیوادونو سره د افغانستان اقتصادي او کلتوري اړیکي ډیري پراخي شوي دي  او افغانستان د نړي د نورو هیوادونو څخه لیري کیږي ، چي د هیواد دغه پالسي د افغانستان د عدم انسلاك د موقف سره برابره نه ده ۰

ـ ځینو اشخاصوبه ویل چي د علماوو په صفوفو کي خارجي عناصرو نفوذ کړی دی ، چي د هغو په لمسون دوی غواړي چي په افغانستان کي د ټولو نهضتونو مخه و نیسي ، او بیرته توره ارتجاع په هیواد کي مسلطه کړي ، چي د امریکا په شمول د څو هیوادونو نومونه به یادیدل چي دوی د دغو اعتصاباتو و شا ته ولاړدي .

یوه ټوکه : د دیني علماوو د اعتصاب په وخت کي  یوه شپه د امریکا په سفارت کي  د دغه هیواد د سفیر ء نیومن ء له خوا یوه میلمستیا شوی وه ، دغي میلمستیا ته ښاغلی عبدالستار شالیزي هم بلل سوی و ۰ د خبرو په ترڅ کي د امریکا سفیرعبدالستار شالیزي تـه ویلـي و (( ږیره دي پـري ایښي ده ، لکه چي د ملایانو څخه بیریدلی یي ! ))  عبدالستار شالیزي چي ظریف او حاضر جوابه سړی دی ،  ده ته په جواب کي  ویلي و  (( زه د ملایانو څخه نه یم بیریدلې ، بلکه په کابل کي خلگ وایي چي  هر هغه څوك چي ږیره ولري  تاسي هغه ته پیسي ورکوی )) د امریکا سفیر په جواب کي ویلي و (( موږ پیسي نه لرو )) عبدالستار شالیزي ده ته ویلي و (( که ستاسي وروستۍ خبره چي تا سي پیسي نه لری ، رښتیا وي  نو ما خپله خبره بیرته واخسته )) وروسته دوی دواړو خندلي وو . (  ٢٤  )

## ۱۱ ـ دډاکټر عبدالظاهر حکومت

۱۹۷۱ــ ۱۹۷۲

ډاکټر عبدالظاهر د عبدالقادر ابراهم خیل زوی دی ، په ۱۲۸۹ ه ش کال (۱۹۱۰) کي د لغمان په ولایت کي زیږیدلی دی ، په ۱۳۱۰ ه ش کال (۱۹۳۱) کي د حبیبي د لیسي څخه فارغ التحصیل سو او په ۱۳۱۸ ه ش کال (۱۹۳۹) کي د امریکا د کولمبیا د پوهنتون څخه دوکتورا واخسته ، ده د دولت په لویو چوکیو کي کار کړی دی ۰ په ۱۳۳٤ ه ش کال (۱۹۵۵) کي دی د روغتیا د وزارت د کفیل په حیث مقر سو۰ ډاکټر عبدالظاهر په کراچي او روم کي د افغاني سفیر په حیث هم کار کړی دی ۰ دی د شورا د یوولسمي او دوولسمي دوروو د ولسي جرگو رئیس و ۰ دی د ۱۹٦٤ کال د لوی جرگي رئیس هم و ، چــي پــه دغــي جرگي کي د دیموکراسي دورې اساسي قانون تصویب شوی دی . ډاکټر عبدالظاهر یــو مؤدب ، خوش طبعه او د بدو څخه بیزاره افـغـان و ( ۲ ٥ )

ډاکټر عبدالظاهر د ۱۹۷۱ کال د جون د میاشتي پر ۸ مي نیټي د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو مامور کړ سو ۰ د ده حکومت د دغه کال د جولای د میاشتي پر شپږمي نیټي د ولسي جرگي څخه د اعتماد رایه واخسته ، چــې د ۱۹۷۲ کال د سبتمبر د میاشتي تر ۲٤ مي نیټي پــوري صدر اعظم و ۰ د ده د څوارلسو میاشتو صدارت په حقیقت کــي یــو داســي عبوري حکومت و ، چــي د حکومت ډیر صلاحیتونه د صدارت د مرستیـال ډاکټر عبدالصمد حــامــد او خـارجـه وزیر محمد موســي شفیق په واك کــي وو ۰

دی په دغي لنډي مودي کي د لاندي ستونزو سره مخامخ و :

ـ د پوهنتون شاگردانو او استادانو ، د ده د حکومت څخه د نویو قوانینو د انفاذ غوښتنه کوله چي دغه معضله ده ته د نور احمد اعتمادي د حکومت څخه ور پاته سوی وه ۰د دي موضوع تفصیل د کتاب په بلي برخي کي لیکل سوی دی۰

ـ دژبو موضوع چي د کتاب په بل ځای کي تشریح سوی ده ۰

ـ د وچ کالي په وخت کي د لوږي او قحطي موضوع .

د غلي د قحطي ورانونکي حادثه چي د طبیعت د ناسازگاریو او حکومت د عدم رسیدگیو له کبله زموږ د هیواد د غور ، بادغیس ، او نورو سیمو ډیر خلگ د لوږي له

لاسه مړه سول ، دوی خپل اولادونه خرڅ کړه ، ډیرو خلگو د خپلو مینو څخه کډې وکړې او د هیواد نورو سیمو ته مهاجر سوه ۰

حکومت د صدارت په چوکاټ کې د کار په مقابل کې د غنمو د ویش یوه اداره د مشاور وزیر عبدالستار سیرت تر مشرۍ لاندې جوړه کړه ، چې له دغې لارې څخه حکومت غوښتل چې د لوږې د ملي فاجعې سره مبارزه وکړې ۰

پاچا او حکومت ته راپورونه ورسیدل چې د هیواد په ځینو سیمو کې مخصوصا د بادغیس او غور په ولایتونو کې ډیر خلگ د لوږې څخه مړه سوی دي او د دغو سیمو ډیرو خلگو د هیواد نورو سیمو ته هجرت پیل کړی دی ۰

د حقایقو د معلومولو له پاره ډاکټر عبدالصمد حامد د یوه لوی هیات په مشرې د هرات ، بادغیس او غور ولایتونو ته سفر وکړ ۰ هغه وخت چې دولتي هیات د هرات ښار ته ورسید په زرگونو وږي خلگ د بادغیس د ولایت او د هرات د ولسوالیو څخه د هرات ښار ته مهاجر سوي وو ۰ د دغه هیات یوه غړي د دغې موضوع جریان ما ته داسې ویلې دې . ( ۲۶ ) :

په زرگونو خلگ د بادغیس او نورو سیمو څخه د هرات ښار ته ورغلي وو ، د هرات ښاریانو پر دغو وږو مهاجرو باندې پخه ډوډۍ و ویشله ، خو هراتیانود حکومت څخه دا غوښتنه هم کوله چې دغه مهاجر ډیر ژر د هرات د ښار څخه و باسي که نه نو د ښار امنیت به خراب کړي۰ په هغه شپه د کابل څخه راغلي هیات د ډاکټر عبدالصمد حامد په مشرې غونډه وکړه ، او دا فیصله یې وکړه ، چې دغه وږي خلگ دي د عسکري لاریو په وسیله فراه او هلمند ته ورسول سي ، چې هلته په (توتانو )خانونه تغذیه کړي ۰

ډاکټر حامد د هرات د والي د اجراآت و غندل ، بله ورځ دغه هیات د بادغیس ولایت ته ولاړ په دغه ولایت کې ډیر خلگ د لوږې څخه مړه سوي وو ، د ډیرو خلگو مړې د قلعه نو د ښار په کوڅو کې پراته وو چې ډاکټر حامد او ورسره هیات په خپلو سترگو لیدلي دي ۰ ډاکټر حامد د بادغیس والي ، سرمامور او د زراعت مدیر د دغه ملي فاجعې مسئوول و بلل ، او د دوی برطرفي یې د مرکز څخه و غوښتله ۰ په هغه شپه

کابل راډيو د سرمامور عبدالبصير او د زراعت د مدير برطرفي اعلان کړه ۰

بله ورځ دغه هيات د غور ولايت ته ولاړ ، دوی د ولايت په مرکز ، چغچران کي د خلگو د لوي مظاهري سره مخامخ سول ۰ هلته دوی په ډېرو و ويشتل سول ، چي ځيني خلگ ټپيان سول او د ولايت د ماڼي ښيښي يي ماتي کړي ۰ ډاکټر حامد دغور والي د غور د ولايت د فاجعي مسؤول و باله او د مرکز څخه يي د هغه د برطرفي غوښتنه هم وکړه۰ څرنگه چي د کابل راديو د واليانوبرطرفي اعلان نه کړه نو ډاکټر عبدالصمد حامد خپل د هيات وظيفه ختمه و بلله او کابل ته را ستون شو ۰ هيات تصميم نيولې و چي بله ورځ سهار به د صدارت په ماڼي کي يوه غونډه کوي خو دغه غونډه و نه سوه ، ډاکټر عبدالصمد حامد خپله وظيفه پريښووله او څو ورځي وروسته د تـداوې په پلمه اروپـا تـه ولاړ ۰

حکومت دبادغيس ، غور او د افغانستان د نورو سيمو د وږو خلگو سره لازمي اقتصادي مرستي و نه کړي چـي د حکومت د غفلت په وجه د دغو سيمو خلگ ډير تاواني سول۰

صدر اعظم ډاکټر عبدالظاهر چي د يوه لنډ عبوري حکومت مشر و دی په دغي لنډي مودي کي د ډيرو مشکلاتو سره مخامخ سو ۰ ده د ۱۹۷۲ کال د دسمبـر د مياشتي پر ۲٤ مي نيټي استعفا وکړه او د ده پر ځای محمد موسي شفيق د افغانستان صدر اعظم سو ۰

## د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت ترکيب

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | ډاکټر عبدالظاهر | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| مرستيال | ډاکټر عبدالصمد حامد | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د دفاع وزير | جنرال خان محمد | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| خارجه وزير | محمد موسي شفيق | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| داخله وزير | امان الله منصوري | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |

| | | |
|---|---|---|
| د ماليي وزير | غلام حيدر داور | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د تجارت وزير | محمد عارف غوثي | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د پلان وزير | ډاکټر عبدالواحد سرابي | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د عدليي وزير | محمد انور ارغنديوال | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د اطلاعاتو او کلتور وزير | محمد ابراهم عباسي | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د پوهني وزير | حميدالله عنايت سراج | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د روغتيا وزير | ډاکټر محمد ابراهم مجيد سراج | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د فوايدعامي وزير | جنرال خوازك زلمې | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د کانو او صنايعو وزير | محمد يعقوب لعلي | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د کرني وزير | عبدالحکيم | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د مخابراتو وزير | نصرت الله ملکيار | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| مشاوره وزيره | ميرمن شفيقه ضيايي | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| مشاور وزير | داکتر عبدالوکيل | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| مشاور وزير | عبدالستار سيرت | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |
| د قبايلو مستقل رئيس | محمد ايوب عزيز | ۱۹۷۱-۱۹۷۲ |

( ۲۷ )

## ۱۲ ـ محمد موسي شفيق څنگه صدر اعظم سو ؟

په ۱۹۷۱ کال کي د نور احمد اعتمادي د حکومت په آخرو مياشتي کي پاچا اراده وکړه چي تر اته کلونو عملي تجربي وروسته بايد پر افغاني ديموکراسي باندي د سره کتنه وسي . پاچا غوښتل چي د اساسي قانون خيني مادي تعديل کړه سي ، پر سياسي ډلو او د شاگردانو پر اجتماعاتو باندي يو څه قيود وضع سي ، د شورا

انتخابات د څه مودي له پاره وځنډول سي او په افغانستان کي د يوه قوي او باثباته حکومت د راتلو له پاره لاره هواره کړه ســي ۰ د موضوع د روښانولو له پاره د دغه مبحث په سر کي د يوي مقدمي په شکل پر ديموکراسۍ ، د دولت پر ثلاثه قواوو او د پاچا پر لومړی درجه مشاورينو باندي د لاندي مطالبو ليکل ضروري بلل کيږي .

ـ د ديموکراسۍ په کلونو کي د حکومت د کمزوره کولو ، د ثلاثه قواوو د تفکيك او د سياسي ديموکراسۍ د تعميم له پاره کافي هلي ځلي و شوي ۰ ولي په خارجي سياست کي د محمد داود خان د وخت خارجي سياست ، چي د هغه عصر د ايجاباتو پر اساس جوړ سوی و ، يعني د شوروي اتحاد سره د نژديوالي سياست و ، کوم تغيير رانه غی بلکه د ديموکراسۍ په دوري کي تر پخوا لا په پراخه اندازه تعقيب کړه سو ۰

ـ په دولسمي تقنيني دوري کي د ډاکټر عبدالظاهر تر رهبری لاندي د ولسي جرگي د نظم او دسپلين په برخه کي څه اقدامات وسوه ، ځرنگه چي دغه اقدامات ډير جدي نه وو نو مؤثر واقع نه سول ، وکيلانو د مصونيت تر نا مه لاندي ، هر هغه څه چي يي غوښتل هغه به يي کوله ۰ د مثال په توگه :

ـ په ١٩٦٦ کال کي ځينو اروپايي هيوادونو د افغانستان د ولسي جرگي يوه هيأت ته بلنه ورکړه چي د هغه هيوادونو د پارلمانونو څخه ليدنه ورکړي ، د شورا درخصتيو په ورځو کي ، د ولسي جرگي رئيس ډاکټر عبدالظاهر ، د کندهار د ښار د وکيل عبدالرحيم هاتف په شمول څو وکيلان د دغه سفر له پاره و ټا کل ، ولي نورو وکيلانو د ولسي جرگي د رئيس ددغه تصميم سره مخالفت وکړ ، او په ورستيو لحظو کي يي ددغه هيأتت د سفر ممانعت وکړ ۰ په همدغي دوري کي يوي ډلي وکيلانو داخپل حق باله چي غازي ستديم ته په زوره ورننوزي او بيله تکت څخه د لوبو ننداره وکړي ، چي هلته څو وکيلان ووهل سوه . د پوهني وزير ډاکټر پوپل دغه موضوع حل کړه .

ـ په ديارلسمي تقنيني دوري کي ، دولت غوښتل چي يوه وکيل ته په جزاورکولو سره د وکيلانو د مصونيت حدود تثبيت کړي ۰ ځرنگه چي د حکومت د دغه کار سره ډير وکيلان مخالف وو نو دغه اقدام هم مثبته نتيجه ور نه کړه ( د دي موضوع تفصيل د کتاب په بلي برخي کي راغلی دی )

ـ د ستري محكمي رنيس قاضي القضات ډاكټر عبدالحكيم ضيايي او د دارالانشا آمر ډاكټر وليد حقوقي و ، په عمل كي د دغي محكمي واك د ډاكټر حقوقي په لاس كي و په دغي محكمي كي ورزيده كدرونه ځاى پر ځاى سوي وو ، ستري محكمي د يوي مستقلي قوي په څير په افغاني ټولني كي تبارز وكړ ۰ ډاكټر وليد حقوقي چي د پاچا نژدي مشاور و ، پاچا غوښتل چي دى ډير ژر د افغانستان صدر اعظم سي ۰

د اساسي قانون ۱۰۵ ماده د دي مانع وه چي ډاكټر وليد حقوقي ته په حكومت كي كومه دنده وسپارله سي ، پاچا ته مشوره وركړه سوه تر څو چي په اساسي قانون كي تعديلات راځي ، كيداى سي چي په فرعي قوانينو كي د شورا په وسيله ډاكټر وليد حقوقي ته په حكومت كي د كار كولو زمينه برابره سي ۰

پاچا د افغانستان د آينده يوه قوي حكومت د جوړولو له پاره ډاكټر عبدالظاهر د كابيني په جوړولو مامور كړ ، په دغه عبوري حكومت كي د پاچا دري عمده مشاورين د صدارت د مرستيالانو په حيث په نظر كي نيول سوي وو ۰ چي تر ډاكټر عبدالظاهر وروسته به يو د دغو مشاورينو څخه ، صدر اعظم كيږي او دوه نور به د مرستيالانو په توگه په دغه حكومت كي شا مليږي ۰ د پاچا پلان داسي و :

ـ ډاكټر عبدالصمد حامد د صدر اعظم لومړى مرستيال او د پلان وزير

ـ محمد موسي شفيق د صدر اعظم دوهم مرستيال او دخارجه چارو وزير

ـ ډاكټر وليد حقوقي د صدر اعظم دريم مرستيال او داخله وزير ( ۲۸ )

د پاچا دغه خيالي پلان د لاندي مشكلاتو له كبله عملي نه سو :

ـ د پاچا دري واړه مشاورين يو د بل رقيبان وو ، د دوى څخه يوه هم نه غوښتل چي د دوو نورو سره په يوه حكومت كي كار وكړي ۰ ولي پاچا په دغه حقيقت نه و خبر ۰

ـ د پاچا نوموړي مشاورين د مختلفو سليقو خاوندان وو چي په راتلونكي حكومت كي ددوى مثمره همكاري يو نا ممكن كار و ۰

ـ د پاچا دغه مشاورين قانون پوهان وو ، خو پاچا په خارجي سياست ، پوهني ، اقتصاد او اجتماعي ريفورمونو كي مجرب مشاورين نه درلودل ۰

ـ د پاچا دغه مشاورينو ، هريو د صدارت تر چوكۍ په كښته مقام كي كار كولو ته

حاضر نه و او هريوه خان د افغانستان راتلونكې صدر اعظم باله ۰ د مثال په توګه :

ـ ما او ريدلي دي چي د ډاكټر عبدالظاهر د حكومت يوه مهم غړي د وزارتونو ټول پيشنهادونه د دی له پاره په خپل دفتر كي قيد كړي وو چي دې متيقين و چي تر ډاكټر عبدالظاهر وروسته دی د افغانستان صدر اعظم دی او دغه پيشنهادونه به د خپل صدارت په وخت كي تر اجرا لاندي و نيسي ۰

ـ ما د ډاكټر عبدالظاهر د حكومت د يوه بل مهم غړي په ارتباط اوريدلي دي چي د ده په لارښوونه په ولسي جرګي كي د ژبو موضوع د دي له پاره راپورته سوه چي په دولت كي تشنج راسي او د ډاكټر عبدالظاهر بي واكه حكومت استعفا كولو ته مجبورسي او دی ژر د افغانستان صدر اعظم سي ۰

ـ ما د ډاكټر وليد حقوقي په برخه كي داسي اوريدلي دي چي ده قاضي القضات ډاكټر عبدالحكيم ضيايي ته ويلي وو (( زما زړه نه غواړي چي په راديو او ورځپاڼو كي زما نوم ستاسي تر نامه دمخه ياد سي )) ده په نورو الفاظو ډاكټر ضيايي ته تفهيم كړي وه چي دی د افغانستان راتلونكې صدر اعظم دی ۰ په دي چي په دولتي نشراتو كي د صدر اعظم نوم تر قاضي القضات دمخه اخستل كيږي ۰

د پاچا د دغه پلان د عملي كولو له پاره داسي اقدامات و سول :

د اساسي قانون ۱۰۵ مه ماده داسي حكم كوي (( كله چي د قاضي القضات او د ستري محكمي د غړو وظيفه پای ته ورسيږي دوی نه سي كولای چي صدر اعظم ، وزير يا د شورا غړې سي )) ولي په اساسي قانون كي د قاضي القضات يا دستري محكمي د غړي د استعفا په ارتباط څه نه دي ليكل سوي ۰ د دي له پاره چي ډاكټر وليد حقوقي حكومت ته راولي دولت د اساسي قانون د دغي قانوني خلا څخه استفاده وكړه او تصميم يي ونيو چي په يوه فرعي قانون كي يوه داسي ماده په ولسي جرګي كي تصويب كړي چي د هغي پر اساس د ستري محكمي غړې د خپلي وظيفي څخه استعفا وكولای سي او تر استعفا وروسته ، بيرته د صدر اعظم يا وزير په حيث تعينيدلای ســـي ۰

ستري محكمي د ولسي جرګي د تقنين د كمسيون څخه چي زه هم د دغه كمسيون

غړي وم ، غوښتنه وکړه چي د قضايي تشکيلاتو او صلاحيتونو پر قانون باندي د سره کتنه وکړي د تقنين کمسيون د ستري محکمي دغه غوښتنه و منله او دغه قانون يي تر بحث لاندي و نيوى ، د دغه قانون څو مادي يي تصويب کري ۰ کله چي دستر محکمي د غړي د استعفا او په حکومت کي د ده د برخي اخستلو په ارتباط يوه وکيل کمسيون ته يو پيشنهاد وړاندي کړ، ما هغه وخت د کمسيون غړو ته و ويل چي پر اساسي قانون باندي د مباحثاتو مجموعه ما لوستي ده ، په دغي مجموعي کي د يوه مقنن له قوله ليکل سوي دي چي (( د ستري محکمي غړي تر استعفا وروسته په حکومت کي کار نه سي کولاى )) نو ښه به داوي چي د عدليي د وزارت څخه دغه مجموعه راوغوښتله سي څو د دغي مجموعي تر مطالعي وروسته به په دغه مورد کي تصميم و نيول سي ۰ د تقنين کمسيون دغه پيشنهاد و مانه او د يوه استعلام په وسيله يي د عدليي د وزارت څخه نوموړي مجموعه و روغوښتله ۰

کله چي د ولسي جرگي استعلام د عدليي وزارت ته ورسيد ، حکومت د اساسي قانون د مباحثاتو مجموعه ولوستله، دوى په دي پوه سوه چي پر دغي مشخصي موضوع باندي ډاکټر عبدالصمد حامد اوږدي خبري کړي دي ۰ ده ويلي و (( که د ستري محکمي يو غړې داسي ناروغه سي چي د کارکولو توان و نه لري ، دى حق لري چي استعفا و کړي خو تر استعفا وروسته بايد ده ته په حکومت کي د کار کولو اجازه ور نه کړه سي )) ده داهم ويلي و (( په راتلونکو کلونو کي د دي امکان موجود دى چي يو حزب د ستري محکمي د يوه غړي سره په پټه سازش و کړي او د ده په مرسته خپل رقيب حزب منحل کړي ، او دغه حزب د دغه خدمت په بدل کي ده ته د وزارت چوکي ورکړي ، چي د دغسي يوي احتمالي دسيسي د مخنيوي له پاره د ستري محکمي د غړو د استعفا مخه بايد و نيوله سي ) )

دغه موضوع په دولت کي ډيره غټه سوه ۰ د پاچا سرياور جنرال محمد عمر خان ما ته و ويل چي د کندهار يوه وکيل پاچا ته اطلاع ورکړه چي فراهي د اساسي قانون د مباحثاتو مجموعه لوستي او ده په کمسيون کي ويلي دي چي ډاکټر عبدالصمد حامد د اساسي قانون د جوړولو په وخت کي د ستري محکمي د غړي د استعفا سره مخالفت

کړی دی ۰ پاچا سمدلاسه ډاکټر عبدالصمد حامد خپل حضور ته وباله  او په کلکو الفاظو یي د ده څخه د ده د وینا پوښتنه کړي وه ۰ ډاکټر حامد پاچا ته په جواب کي ویلي و چي  (( زما د هغه وخت  خبري د قانون متن نه دی بلکه د یوه شخص خبري دي  اوس شورا کولای سي چي د ستري محکمي د غړي د استعفا په برخه کي په قانون کي کومي مادي ته ځای ورکړي )) ( ۲۹ ) ما په هغو ورځو کي ډاکټر عبدالصمد حامد په جلال آباد کي ولید ، ده د ګیلي په شکل ما ته و ویل  (( تا د ستري محکمي د غړي د استعفا پر موضوع باندي زه د پاچا سره مواجه کړم )) چي البته دغه کار ما نه و کړی . د ډاکټر عبدالصمد حامد تشویش داو چي د ولسي جرګي د دغه جریان څخه پاچا داسي انتباه نه وي اخستي  چي ګواکي ډاکټر حا مد ، حکومت ته د ډاکټر ولید حقوقي د راتلو مخالف دی او اوس ده وکیلان دغي موضوع ته متوجه کړي دي۰

د تأ سف ځای دادئ چي حکومت د اساسي قانون د مباحثاتو مجموعه ولسي جرګي ته د لوستلو له پاره ور نه کړه ، د هغه پر ځای حکومت د کمسیون د غړو تر منځ نفاق واچاوه ۰ حکومت د کمسیون دایمي غیر حاضر غړي  حاضر کړه او د دوی په وسیله یي کمسیون ته داسي پیشنهاد وړاند کړ چي (( حکومت باید د اساسي قانون د مباحثاتو مجموعه ولسي جرګي ته راوانه ستوي )) د دغه حرکت رهبري د پکتیا د یوه وکیل پر غاړه وه . ( ۳۰ )

د حکومت د دغه ناوړه اقدام په مقابل کي زما په شمول د کمسیون اکثرو غړو د تقنین د کمسیون څخه استعفا وکړه ۰ د وکیلانو د استعفا په نتیجه کي د تقنین کمسیون د منځه ولاړ او د ډاکټر ولید حقوقي له پاره حکومت ته د ورتلو لاره خلاصه نه سوه ۰ څرنګه چي وروسته  معلومه سوه ، د تقنین په کمسیون کي د تشنج په راوړلو کي د  یوه مهم وزیر لاس و ۰

دلته دا خبره هم د یادولو وړ بولم چي د اساسي قانون د مباحثاتو مجموعه  ما ته د لوستلو له پاره د هغه وخت د عدلیي وزیر عبدالستار سیرت راکړي وه ۰

اوس به راسو دي موضوع ته چي محمد موسي شفیق څرنګه صدر اعظم سو ؟

په روم کي د افغاني سفارت یوه ما مور ماته و ویل چي په ۱۹۷۲ کال کي پاچا ،

ډاکټر عبالصمد حامد او محمد موسي شفيق په افغاني سفارت کي د دي له پاره سره يو ځای کړل چي د راتلونکي حکومت په ارتباط ددوی نظريات واوري ۰ په دغي غونډي کي حتي افغاني سفير نور احمد اعتمادي برخه نه درلوده ۰

پاچا لومړي د ډاکټر حامد څخه پوښتنه وکړه چي (( تردي وروسته په افغانستان کي څه کارونه بايد و سي ؟ )) ډاکټر حامد وويل (( افغانستان په خطر کي دی او بايد ژر په هيواد کي اضطراري حالت اعلام سي ، چي په دغه حالت کي به د شورا صلاحيتونه د منځه ولاړه سي ، د ملي جرايدو نشرات به متوقف سي ، پر سياسي ډلو به قيود وضع سي ، تر هغه وروسته به په اساسي قانون کي تعديلات راسي ، د ديموکراسي اساسات به په تدريجي ډول په هيواد کي تر اجرا لاندي و نيول سي ))

محمد موسي شفيق د ډاکټر عبدالصمد حامد پورته نظريات په دي ډول رد کړي وو۰ده ويلي وو (( هغه حالات چي د اساسي قانون په ۱۱۳ مادي کي د اضطراري حالت د اعلامولو له پاره ذکر سوي دي په افغانستان کي نه دي راغلي ، د اضطراري حالت په اعلامولو سره هنگامي ايجاديږي ، خو د افغانستان اوسني ستونزي د نورو مؤثرو لاروڅخه په ښه توگه حل کيدلای سي )) ده د شورا په ارتباط ويلي و (( دشورا د اوسني دوري وروستي کال دی چي دغه تقنيني دوره څو مياشتي وروسته پای ته رسيږي ، حکومت کولای سي چي د شورا نوي انتخابات د څه مودي له پاره و ځنډوي په دي ترتيب چي ستره محکمه به د انتخاباتو د نظارت څخه استنکاف وکړي او پاچا به د ستري محکمي دغه غوښتنه و مني ۰ د پاچا په فرمان به د انتخاباتو کمشنر و ټاکل سي ۰ دغه مراحل چي هرڅومره حکومت و غواړي اوږدولای سي ))

ده د ملي جرايدو په ارتباط ويلي و (( حکومت به د موجوده جرايدو د امتياز خاوندان په حکومتي چارو کي مقرر کړي او نوو جرايدو ته به د امتياز حق ورنه کړي ((

ده د سياسي ډلو په ارتباط ويلي و (( د ټولو سياسي ډلو غړي د پوهنتون يا ښوونځيو شاگردان يا هم د دولت ما مورين دي ۰ حکومت به د دوی د مشرانو سره خبري وکړي او دوی ته به اخطار ورکړي چي تر دي وروسته دوی بايد په دولتي چارو

کي ګوتي و نه وهي. دوی ته به و ویل سي چي د تخلف په صورت کي به د دوی غړي د مربوطه ځایونو څخه و ایستل سي )) ده ویلې وه (( زه تعهد کوم چي د دغي لاري څخه سیاسي ډلي تر کنترول لاندي راتلای سي )) .پاچا په دغي غونډي کي محمد موسي شفیق ته ویلي و چي ته د افغانستان راتلونکې صدر اعظم یي او ډاکټر حامد په دغي غونډي کي پاچا ته څرګنده کړه چي دی په راتلونکي حکومت کي د محمد موسي شفیق سره کار نه کوي . پاچا ډاکتر حامد او شفیق ددي له پاره یوه پارك ته لیږلي وو چي ډاکټر حامد په دي قانع کړه سي چي په راتلونکي حکومت کي د شفیق سره کاري وکړي ، تر خبرو وروسته شفیق پاچا ته ویلي و چي ډاکټر حامد وعده راکړي ده چي شپږ میاشتي وروسته به همکاري راسره وکړي ، او ډاکتر حامد پاچا ته ویلي و چي شفیق باید واده وکړي په دي چي یو صدر اعظم باید میرمنه ولري .

۱۳ ـ ډاکټر عبدالصمد حامد ولي صدر اعظم نه سو ؟

ډاکټر عبدالصمد حا مد چي یو حقوقدان دې د ۱۹٦٤ کال د اساسي قانون د تسوید د کمیټي مهم غړی و ، دی د دیموکراسۍ په حکومتونو کي د پوهنتون رئیس ، د پروان والي ، د پلان وزیر او د صدارت مرستیال و ، ده د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت په وخت کي د بادغیس او غور د والیانو د سبکدوشي پـر موضوع ، خپله وظیفه پیښوووله ، ده د افغانستان د جهاد په وخت کي د مولوي محمد یونس خالص د اسلامي حزب سره نژدي همکاري درلوده ، ښایي دده دغه همکاري به د جهاد د پیاوړي کیدلو په خاطر وه ، په دي چي مولوي خالص په افغانستان کي دديموکراسۍ او آزادو انتخاباتو سره موافقه نه درلوده. ( ۳۱ )

دلته دامطلب د لیکلو وړ بولم چي په دغه وخت کي د کابل په سیاسي حلقو کي ویل کیدل ، کوم حکومت چي د ډاکټر عبدالظاهر تر حکومت وروسته په هیواد کي راځي باید لاندي عمده وظایف سر ته ورسوي :

ـ ددغه حکومت په وسیله افغانستان د شوروي اتحاد څخه باید فاصله و نیسي او غربي نړي ته ور نژدي ســي .

ـ د پښتونستان موضوع ، د ډیورنډ کرښه او د هلمند د اوبو معضله د پاکستان او

ایران د حکومتونو سره د دوستانه لارو څخه حل کړه سي .
ـ د خلیج د مړو هیوادونو په مرسته په هیواد کي اقتصادي پروژ په کار واچولي سي .
ـ په هیواد کي د سیاسي او ایدیولوژیکي بي نظمیو د مخنوې په خاطر باید د احزابو قانون ډیر ژر تر اجرا لاندي ونیول سي . د اجتماعاتو ، معارف او لوړو تحصیلاتو حساس قوانین په تقنیني فرامینو ژر نافذ کړه سي .

د پورته عمده اهدافو د سرته رسولو د پاره په هیواد کي د اضطراري حالت اعلامول یو لازمي کار و . د روم په غونډي کي هغه نظریات چي ډاکټر عبدالصمد حامد ، پاچا ته وړاندي کړي وو ، هغه نظریات ډیر پر ځای وو ، چي د ده د پیشنهاد په فوري تطبیق سره ممکنه وه چي د محمد داود خان د کودتا مخه هم نیوله شوي وای خو پاچا په لاندي دلایلو نه غوښتل چي په دغي مرحلي کي ډاکټر عبداالصمدحامد د افغانستان صدر اعظم سي :

ـ ډاکټر عبدالصمد حامد په خټه محمدزې دې ، پاچا لازمه نه بلله چي د نور احمد اعتمادي تر اوږده حکومت او د ډاکټر عبدالظاهر تر لنډ حکومت وروسته ، بیا یو محمدزې د اوږدي مودي له پاره د افغنستان صدر اعظم سي ۰

ـ ډاکټر عبدالصمد حامد د مسایلو د حل په لاره کي انعطاف پذیره نه دې ، ښایي د پاچا کورني مشاورینو لکه سردار عبدالولي او سلطان محمود غازي د ډاکټر حامد د صدر اعظم کیدلو سره موافقه نه وي کړي ۰ د پاچا راتلونکې پلان سوی حکومت چي په هغه کي به د پاچا لومړي درجه مشاورینو برخه اخستي وای ، لکه چي دمخه یي یادونه وسوه ، د پاچا د مشاورینو له خوا تخریب کړل سو . زه په دي نه یم خبر چي په خپله پاچا په دغه مطلب پوهیدلې و او که یه ؟ ولي ډیر نور افغانان په دغه موضوع پوهیدل چي په ځینو ملي اخبارونو کي په دغه ارتباط لیکني هم ســوي دي .

## ١٤ ـ د محمد موسي شفیق حکومت

١٩٧٣ ــ ١٩٧٢

محمد موسي شفیق د مولوي محمد ابراهم کاموي زوی دی او په ١٩٣١ کال کي په

کابل کي زيږيدلی دی ۰ ده د کابل د عربي دارالعلومو مدرسه لوستي ده او وروسته يي په اسلامي حقوقو کي په قاهره کي د الازهر د پوهنتون څخه ليسانس اخستی دی۰ ده د امريکا د کولمبيا د پوهنتون څخه هم په بين المللي حقوقو کي ليسانس تر لاسه کړی دی ۰ ده د عدليي په وزارت کي په کار پيل وکړ او د حقوقو په پوهنځي کي يي استادي کړي ده په عدليه وزارت کي معين او بيا دخارجه چارو په وزارت کي مشاور و ۰ په قاهره کي افغاني سفير او د ډاکټر عبدالظاهر په حکومت کي خارجه وزيرهم و ۰

محمد موسي شفيق چي ډير زيرك او د دربار په رمز آگاه سړی و ، په اسلامي علومو پوهيدی ، شاعر او ليکوال هم و ۰ پښتو ، دري ، عربي ، انگريزي او فرانسوي ژبي يي زده وي ، نو په دغه وجه دی ډير ژر پاچا ته نژدي سو اود پاچا لومړی درجه مشاور سو ۰ دی د ۱۹۷۲ کال د دسمبر د مياشتي په ۲٤ نيټي د پاچا له خوا د کابيني په جوړولو مامور کړه سو . ( ۳۲ )

محمد موسي شفيق په تجمل پرستي کي ډير افراط کاوه ، ده د ځان له پاره يو موټر د فرانسي څخه په الوتکي کي راوغوښت ۰ د جمهوريت په وخت کي دغه موټر د افغاني سفير زلمي محمود غازي د استفادي له پاره تهران ته وليږل سو . د ده دريشي په خارج کي جوړيدلي ، ده په جلال آباد کي د هډي فارم ته نژدي د ځان له پاره يو افسانوي کور جوړاوه ، د قرغي بند ته نژدي يي پر يوي تپي باندي د کوچيانو کيږي ودروله ، چي هلته يي هم د يوه داسي مجلل کور جوړول په نظر کي نيولي و چي د خپل کور څخه به د اوبو ډنډ ته په برقي ليفت کي کښته کيدی او په يوي کښتئ کي به يي سير او ننداره کولای .

### د محمد موسي شفيق په هکله څو نوري خبري

ـ په ۱۹۷۰ کال کي کله چي محمد موسي شفيق په قاهري کي افغاني سفير و په هغه وخت کي د ايران يو عالي رتبه هيأت د هلمند د اوبو د مذاکراتو له پاره کابل ته سفر کاوه ۰ محمد موسي شفيق ، صدر اعظم نور احمد اعتمادي ته اطلاع ورکړه چي دی غواړي چي د ايراني هيأت د ليدلو له پاره کابل ته سفر وکړي ۰ نور احمد اعتمادي

ده ته په جواب کي ويلي و (( کابل ته ستاسي د راتگ ضرورت نه سته )) خو محمد موسي شفيق د صدر اعظم د مخالفت سره سره کابل ته سفر وکړ او د ايراني هيأت سره يي په مذاکراتو کي برخه واخسته . ( ۳ ۳ ) شايد چي د ايراني هيأت مشر به اردشير زاهدي و چي افغانستان ته يي سفر کړی و او نور احمد اعتمادي د محمد موسي شفيق او اردشير زاهدي په ښو مناسباتو خبر نه و .

اردشير زاهدي چي د جنرال زاهدي زوی او د ايران د پاچا زوم دی ، ده د پيك پارسيان د اخبار د ۲۰۰۲ کال د می د مياشتي د ۱۷ نيټي په گڼي کي په خپلي يوي مصاحبي کي ويلي دي چي (( د هلمند د اوبو موضوع ما د خپل خارجه وزارت په وخت کـــي د افغانستان د پاچا محمد ظاهر شاه سره حـــل کړي ده )) دی داهم وايي چي (( زه د محمد موسي شفيق سره دده دسفارت په وخت کي په قاهري کي دوست سوی وم او د افغانستان پاچا زموږ په ښو مناسباتو خبر و . کله چي د افغانستان پاچا ايتاليا ته په رسمي سفر بلل سوی و ، ده ما ته بلنه راکړه چي روم ته ورسم او محمد موسي شفيق په دي قانع کړم چي د افغانستان د صدارت وظيفه و مني ))

ـ پاچا ته نژدي د خارجه وزارت يوه ما مور ويلي و چي (( پاچا د دولت د ډيرو مامورينو قدر کوي ، ولي محمد موسي شفيق ، د عشق تـــر سرحده پر پاچا باندي گران دی )) ( ۳ ٤ )

ـ د دربار پخواني وزير علي محمد خان ويلي و (( زه په دربار کي لوی سوی يم خو د محمد موسي شفيق په اندازه د دربار په رمز نه پوهيږم )) ( ۳ ۵ )

ـ د خارجه وزارت يوه مامور و ويل چي په ۱ ۹ ۷ ۱ کال کي کله چي پاچا مسکو ته رسمي سفر درلود، خارجه وزير محمد موسي شفيق هم دپاچا د دغه سفر ملگرې و٠ شفيق د مسکو څخه يوه بل اروپايي هيواد ته تې ، دی د پاچا سره تر خدای اماني وروسته نژدي شل گا مه ددي له پاره پر شا تی چي مخ يي د پاچا و خوا ته وي ۶ ۳

ـ په ۱۹۷۱ کال کي د ولسي جرگي د بين المللي روابطو کمسيون ، خارجه وزير محمد موسي شفيق د پښتونستان د قضيي په ارتباط نومو ړي کمسيون ته غوښتې و ، زه او څو نور وکيلان هم د مباحثاتو د اوريدلو له پاره هغه کمسيون ته ورغلي وو ٠ نور

وزیران معمولاً د یوي ډلي مامورینو سره یو ځای ولسي جرګې ته راتلل ، ولي خارجه وزیر محمد موسي شفیق یوازي کمسیون ته حاضر سو ، حفیظ الله امین او ببرک کارمل هم ددغه کمسیون غړي وو . د آجندا مطابق د کمسیون منشي محمد شاه رحمتیان د ده څخه د پښتونستان پر موضوع باندي توضیحات و غوښتل .

محمد موسي شفیق په سړه سینه ، په څو لنډو او سنجیده جملو کي دوی ته داسي و ویل (( هغه توضیحات چي نن یي تاسي زما څخه غواړي زه هم د داسي توضیحاتو اوریدلو ته ضرورت لرم )) ده زیاته کړه (( کله چي زه خارجه وزارت ته ورغلم نو ما د مربوطه ځانګي څخه د پښتونستان د موضوع سوابق و غوښتل ، دغي ځانګي ما ته وویل چي پر دغي موضوع باندي همیشه د خارجه وزارت څخه دباندي تصمیم نیول کیږي او د دغي موضوع ټول سوابق په ارګ یا د خلګو په کورونو کــي دي )) ده دا هم وویل (( اوس ما فیصله کړي ده چي د خارجه وزارت ټول وظایف په دغه وزارت کي متمرکز کړم ، او د پښتونستان د موضوع ټول سوابق پیدا کړم او په یوه ځای کي یي راغونډ کړم . اوس د وکیلانو خوښه ده چي هغه مختصر معلومات چي زه یي د پښتونستان پر موضوع باندي لرم هغه تاسي ته و وایم او که ما ته فرصت راکوئ چي زه د دغي موضوع سوابق پیدا کړم او وروسته بیا یو جامع معلومات تاسي ته وړاندي کــړم )) د بین المللي روابطو کمسیون د رایو په اتفاق دا ومنله چي خارجه وزیر محمد موسي شفیق ته دي فرصت ورکړه سي چي پر دغي موضوع باندي دي اساسي او عمده مطالب راټول کړي او د کمسیون په بلي غونډي کي دي کمسیون ته وړاندي کړي. څو شیبي وروسته محمد موسي شفیق د کمسیون څخه و وت او بیــا هیڅ وخت ده د دغه کمسیون په غونډي کي برخه وانه خسته . ( ۳۶ )

ـ محمد موسي شفیق چي د ډاکټر عبدالظاهر په حکومت کي دخارجه چارو وزیر و ده امر وکړ چي د خارجه وزارت ټول مامورین باید سهار پر معیین وخت خپلو وظایفو ته حاضر سي او د مامورینو د حاضري په کتاب کي لاس لیکونه وکړي . خو د ده د امر باوجود ، د سلطنتي کورنی ځني غړي پر ټاکلي وخت خپلو وظایفو ته نه راتلل او ده دغه مامورین نه غیر حاضر کول ، بلکه دی به سهار په خپله د دغو مامورینو

کورونو ته ورتی او دوی به یي د خانه سره دخارجه چارو وزارت ته راوستل . ( ۳ ۷ )

## د محمد موسي شفیق د حکومت ترکیب

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | محمد موسي شفیق | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د دفاع وزیر | جنرال خان محمد | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| خارجه وزیر | محمد موسي شفیق | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| داخله وزیر | نعمت الله پژواك | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د مالیي وزیر | محمد خان جلالر | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د پوهني وزیر | ډاکټر محمد یاسین عظیم | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د مخابراتو وزیر | نصرت الله ملکیار | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د فواید عامي وزیر | جنرال خوازك زلمې | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د کانو او صنایعو وزیر | غلام دستگیر عزیزي | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د کرني وزیر | ډاکټر عبدالوکیل | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د پلان وزیر | ډاکټر عبدالواحد سرابی | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |
| د اطلاعاتو او کلتور وزیر | صباح الدین کشککي | ۱۹۷۲ـ۱۹۷۳ |

( ۳ ۸ )

## ۱ ۵ ـ د محمد موسي شفیق د حکومت اجراآت

وروسته تر هغه چي په شورا کي د هلمند د اوبو معاهده تصویب سوه محمد موسي شفیق خپله توجه د حکومت اساسي کارونو ته واړوله ۰

ـ په سر کي ده د راتلونکي شورا د انتخاباتو موضوع ته توجه وکړه ۰ د پخوانې فیصلي پر اساس ، ستـري محکمـي پـه انتخاباتو کي د نظارت څخه د استنکاف پیشنهاد ، پاچا ته وړاندي کړ ۰ د پاچا په امر د حکومت او ستري محکمي څخه یو گډ هیأت جوړ سو چي د راتلونکو انتخاباتو له پاره د انتخاباتو د کمشنري موضوع تر غور لاندي و نیسي . ( ۳ ۹ )

ـ محمد موسي شفیق د حکومت پارلماني ریاست د تجارت د وزارت ودانې ته چي

د شورا تر خنگ و انتقال کړ او ده په خپله د پارلماني رياست دنده پر غاړه واخسته ده د شورا د ډيرو غړو سره خبري و کړي او دوی يي په دي قانع کړل چي د شورا انتخابات به د څه مودي له پاره ځنډيږي ٠ ده به دشورا ځينو غړو ته په راتلونکو انتخاباتو کي د مرستي وعده هم ورکوله . محمد موسی شفيق د راتلونکي شورا د غړو د اهليت پر موضوع او زما پر آينده همکاری باندي زما سره هم اوږدي خبري کړي دي . په دي دليل چي زما خود ستايي تعبيير نه سي ، نوليکل يي دلته لازم نه بولم .

ـ محمد موسي شفيق د ملي جرايدو ځيني چلونکي په حکومتي کارونو کي مقرر کړل چي په دغه اقدام سره دځو مهمو جرايدو نشرات متوقف سوه ٠

ـ د محمد موسي شفيق په حکومت کي د( مفاهمي) د ډلي ځو غړي د معينانو په حيث مقرر سول چي دغه معينان به ډير ژر د وزيرانو په حيث ټاکل کيدل ٠

ـ د عالي تحصيلاتو د وزارت اساس نامه د پوهني په وزارت کي جوړه سوه، د ادبياتو د پوهنځي د يوه استاد د تقرر فرمان د همدغه وزارت د معين په حيث اخستل شوې و٠

ـ د مذهبي ډلو د خوشحالولو له پاره په کابل راديو کي آذانونه پيل سوه ، محمد موسي شفيق د شير پور مسجد ته مخامخ د شهر غلغله په نامه رستورانت د چپه کولو امر ورکړ٠ د ده په امر په دارالامان کي د کليسا تعمير و نړول سو ٠

ـ محمد موسي شفيق د هيواد ټولو سياسي ډلو ته خبر ورکړ چي تر دي وروسته بايد دوی د حکومت پر ضد د مي د لومړي ورځي د مظاهراتو څخه ډډه وکړي (٠ ٤ )

ـ د پرچم د ډلي د يوي باخبري منبع په قول (( شفيق د خلق او پرچم د مشرانو سره اوږي خبري کړي وي او ظاهرا يي په مهارت سره فضا جوړه کړي وه او غالبا همدايي د مرگ عامل وگرځيدی ، ببرك کارمل حتی ده ته د اعتماد د رايي ورکول هم مطرح کړی و چي د مير اکبر خيبر د جدي مخالفت په اثر ممکن نه شو )) د اعتماد درايي په غونډي کي ببرك کارمل د محمد موسی شفيق حکومت ته مخالفه رايه ورکړه ، ولي د غونډي په پای کي ده زموږ سره يو ځای شفيق ته مبارکي وويله . حفيظ الله

امین د اعتماد د رایي په وخت کي په غونډي کي حاضر نه و ، دی تر غونډي وروسته ولسي جرګي ته راغی ( ٥٢ )

ـ د محمد موسي شفیق حکومت د اجتماعاتو د قانون مسوده جوړه کړه ، او د کابیني پر غړو يي و ويشله ، خو یوه میاشت وروسته حکومت د خپل تصمیم څخه منصرف سو او د هغه پر ځای يي د اجتماعاتو مقرره جوړه کړه او د وزیرانو په مجلس کي يي تر بحث لاندي و نیوله . ( ٤١ )

داسي ښکاري چي په سر کي محمد موسي شفیق غوښتل چي د اجتماعاتو د قانون مسوده شورا ته وړاندي کړي ، خو وروسته دې د دغه کار څخه په دي دلیل پښیمانه سوې دې چي که د اجتماعاتو د قانون مسوده شورا ته وړاندي سي د دي احتمال سته چي په دغه وخت کي به د پوهنتون شاګردان د شورا په مخ کي مظاهره و کړي او د عقرب د دریمي حادثه به بیا تکرار سي ٠

ـ محمد موسي شفیق د شورا د آخري اجلاس د وروستۍ نیټي رارسیدلو ته چي د اسد د میاشتي ۲ ۲ نیټه ده ، منتظر و ٠ ده په دغه ورځ د خپل حکومت د خط مشي تفصیل او د خپل حکومت اصلاحي پروګرام د عا مو خلګو په اطلاع رساوه خو ده د همدغه کار فرصت پیدا نه کړ ٠

ـ صباح الدین کشککي په خپل اثر کي لیکي چي محمد موسي شفیق غوښتل چي په حکومت کي د سلطنتي کورنی د غړو د مداخلاتو مخه و نیسي . ( ٤ ٢ )

د دي امکان سته چي محمد موسي شفیق ته به وظیفه ورکړه سوي وي چي په هیواد کي د محمد داود خان پر حرکاتو باندي قیود وضع کړي ، ځکه چي د کابل په سیاسي حلقو کي ویل کیدل چي محمد داود خان د ځینو سیاسي ډلو تر شا ولاړ دی ٠ که دغه حدس حقیقت ولري نو په قوي احتمال د محمد موسي شفیق اقداماتو بـه د سرطان د ٢٦ کودتا تسریع کړي وي ٠

د اوضاع د مطالعي څخه داسي معلومیږي چي محمد موسي شفیق د دیموکراسي په لسو کلونو کي پاچا ته خپل د استادي چمونه نه و ورښوولي ، دی په دي پوهیدی چي یو وخت به دی د افغانستان صدر اعظم سي او په دغو استادي چمونو به افغاني

ديموكراسي په نوي مجرا كي واچوي. د ده دغه اقدام ( تراختر وروسته نكريزي ) سوي په دي چي محمد داود خان كودتا وكړه ، سلطنتي نظام او حكومت دواړو ته يې سقوط وركړ ۰ ما داسي اوريدلي دي چي د ۱۹۷۳ كال د جولاى د مياشتي پر ۱٦ نيټي د مازديگر پر پنځو بجو محمد موسي شفيق د هيواد د كراري او امنيت راپور په تيلفون كي پاچا ته وركړي و ۰ خو ( نه ) ساعته وروسته د هغي شپي پر دوو بجو د محمد داود خان كودتا پيل سوه ، او په پنځو ساعتونو كي يې د سلطنت كمبله ټوله كړه او د سهار پر اوو بجو د محمد داود خان په وينا سره په هيواد كي سلطنتي نظام ړنگ سو او د هغه پر ځاى جمهوري نظام ودرول سو ۰

**يوه ټوكه :** د هلمند د اوبو د معاهدي تر تصويب يوه نيمه مياشت وروسته ، محمد داود خان كودتا وكړه ۰ په هغه وخت كي ډيرو افغانانو داسي فكر كاوه چي دغه كودتا د هلمند د اوبو د معاهدي د مخنيوي له پاره شوى ده ۰ د كودتا په ورځ محمد موسي شفيق بندي سو دده په ارتباط په كابل كي داسي يوه ټوكه شايع سوه :

محمد موسي شفيق چي خيالور ويښتيان ( څوڼي ) درلودلي ، وايي چي جمهوري دولت د ده دويښتيانو د خريلو امر كړي و ۰ ولي ده د خپلو ويښتيانو تر خريلو دمخه د هغو لنديدل ددوى څخه غوښتي و ، خو ده ته په جواب كي وويل سوه چي اوبــه نسته ، په دي چي ټولي اوبه تا ايران ته وركړي دي۰

## ديموكراسي دوري ته يوه كتنه

د ۱۹٦٤ كال د اساسي قانون د ۱۲٦ مادي دحكم پر اساس ، انتقالي حكومت د انتخاباتو ، اساسي تشكيلاتو ، مطبوعاتو او قضايي تشكيلاتو او صلاحيتونو قوانين جوړ او نافذ كړه ۰ دغه حكومت د احزابو او ولايتي جرگو قوانين تسويد او دوولسمي تقنيني دورې ته يي د تصويب له پاره وړاندي كړه ۰ ولي دغه حكومت د اجتماعاتو د قانون په برخه كي هيڅ اجراآت و نه كړه ۰ څرنگه چي د احزابو ، ولايتي جرگو او اجتماعاتو قوانين د ديموكراسي په ټولي دوري كي په هيواد كي نافذ نه سوه ، دغه كار افغاني ديموكراسۍ ډيره تاواني كړه ۰

د اجتماعاتو قانون : د ملي امنيت او د ديموكراسۍ د سالم رشد له پاره په هريوه هيواد كي د اجتماعاتو د قانون موجوديت ضروري شميرل كيږي٠ د مثال په توگه د امريكا هيواد، د اجتماعاتو د تنظيم له پاره قاطع قوانين لري ، په دغه هيواد كي تر هغو چي څوك د اجتماع دقيق وخت ، د اجتماع هدف ، ځای او خط السير وه امنيتي مقاماتو ته څرگند نه كړي او د پوليسو د دفتر څخه ليكل شوي اجازه نامه وانخلي ، حتي د درو كسانو اجتماع د قانون خلاف ده او اجتماع كونكي تر قانوني تعقيب لاندي راځي ٠ ولي په افغانستان كي به سياسي ډلو د امنيتي مقاماتو د اجازي پرته دوامداري مظاهري كولي خو امنيتي مقامات په دي نه پوهيدل چي څه وكړي ؟

دولايتي جرگو قانون : د اساسي قانون د ٤٥ مي مادي د حكم مطابق ، د مشرانو جرگي دريمه برخه سناتوران ، د ولايتي جرگو څخه د مشرانو جرگي ته ورتلل چي د هر ولايت ، ولايتي جرگه يو سناتور مشرانو جرگي ته وراستوي ٠ ولي د ديموكراسۍ په ټولي دوري كي ، ولايتي جرگي جوړي نه سوي او دريمه برخه سناتوران مشرانو جرگي ته معرفي نه سول او د مشرانو جرگي د غونډو نصاب پوره نه و ، نو ځكه د مشرانو جرگي ټول تصويبونه بايد قانوني هم نه وي ٠

د ديموكراسۍ په ټولي دوري كي د ولايتي جرگو موضوع په شورا ، جرايدو او سياسي حلقو كي د بحث او انتقاد موضوع وه ٠ گل پاچا الفت د ډاكټر عبدالظاهر حكومت ته د اعتمادد رايي دغونډو د ويناگانوو څخه د هغو وكيلانو نومونه چي د ولايتي جرگو د جوړيدلو غوښتنه يي كړي وه ، په يوي مقالي كي د انيس په ورځپاڼي كي خپاره كړل ٠ ددغي احصائيي له مخي دولسي جرگي اكثرو وكيلانو د ولايتي جرگو جوړيدل غوښتي وو ، خو د افغانستان دولت دغي موضوع ته توجه و نه كړه ( ٤٣ )

د سياسي احزابو قانون : په نړۍ كي داسي هيواد نسته چي ديموكراسي نظام ولري ، ولي هلته د اجزابو قانون موجود نه وي ٠ د افغانستان پاچا او حكومت په نامعلوم دليل په هيواد كي د احزابو د قانون د انفاذ سره مخالفت كاوه٠ ولي ډيري سياسي ډلي لكه مترقي ديموكرات ، افغان ملت ، جمعيت اسلامي ، خلق او پرچم ، شعله جاويد او داسي نوري ډلي عملاجوړي سوي وي دغو ډلو خپلي حزبي مرامنامي

نشر کړي ، هري ړلي نشراتي اورگان درلود ، د ړلي هر غړي به خپل حزب ته حق العضويت ورکاوه ۰ دوی په مظاهراتو کي فعاله برخه اخسته ، ځينو ړلو په پارلمان کي نمايندگان درلودل ، چي گواکي د قانون تر توشيح دمخه نوموړي ړلي منظم حزبونه وو۰ د دغه حزبونو له پاره حکومت يو کار نه و کړي ، هغه داچي د احزابو د مرامنامود ثبت له پاره کومه اداره نه وه جوړه شوي ، چي البته دغه کار دډيرو احزابو په گټه و.

د افغانستان دولت داسي فکر کاوه چي که دولت د احزابو قانون نافذ نه کړي ، نو په هيواد کي به احزاب موجود نه وي ۰ د دولت دغه تصور د فراه د خلگو هغي ټوکي ته ورته دې چي وايي د چا خورجين غلو وړی و ، دی په دي خوشحاله و چي د خورجين کيلي د ده سره ده . په ۱۹۷۰ کال کي ببرك کارمل د ولسي جرگي په عمومي غونډي کي و ويل چي ، ترد ي وروسته به د خلق ديموکراتيك جريان ته د خلق ديموکراتيك حزب ويل کيږي ده دغه مطلب په دري او ماتي گوډي انگريزي ژبو و وايه چي د ده وينا د ولسي جرگي په جريدي کي ثبت شوي ده ۰ ځرنگه چي ده د قانون تر انفاذ دمخه خپله ړله د حزب په حيث اعلان کړه ، ډيرو وکيلانو داسي فکر کاوه چي دی به د دغه مشهود جرم په وجه تر عدلي او قانوني تعقيب لاندي راسي خو حکومت دغي موضوع ته توجه و نه کړه . ( ٤٤ )

د افغانستان پــه غيـر حزبـي شورا کــي ، د افغانستان دولت او حکومت د لاندي ستونزو سره مخامخ وو :

ـ د دولسمي تقنيني دوري په وروستي کال کي چي وکيلان ولسي جرگي ته منظم نه ورتلل نو د دولت د بوديجي د تصويب پاڼه ، د ستري محکمي د دارلانشا د آمر ډاکټر وليد حقوقي د دفتر پر ميز پرته وه ، او هر وکيل به هلته ورتې او د بوديجي پاڼه به يي امضا کوله .

ـ پــه ديارلسمي تقنيني دوري کــي د صنعتـي بانکونو قانون د پاچا پــه مستقم خواهش وکيلانو و مانه ۰

ـ په ديارلسمي تقنيني دوري کي ، د نور احمد اعتمادي دوهم حکومت ته د اعتماد د رايي په وخت کي ، حکومت مجبور و چي د ۲۱٦ وکيلانو ځخه د اعتماد د رايي

غوښتنه وکړي ۰ په دغه ارتبا ط د حکومت مشاور وزیر چي د وکیلانو د اعتماد د رایو شمیرل يي پر غاړه و ، په ټوکه ویلي و چي هر وکیل چي به حکومت ته درایي وعده ورکوله ، دغه وکیل به د څونورو وکیلانو د رایي ذمه هم پر غاړي اخستله ، څو په پای کي د وکیلانو د رایي شمیر (۱۲۰۰ ) رایو ته ورسید . (٥ ٤)

ـ ولسي جرگه چي د منفردو وکیلانو څخه جوړه سوی وه ، ځینو وکیلانو بــه پــه ټوکه ویل چي په ولسي جرگي کي ( ۲۱٦ ) جزبونه غړیتوب لري ۰

ـ د اساسي قانون د تسوید د کمیټي رئیس سید شمس الدین مجروح ویلي و چي افغاني دیموکراسي داسي یوه موټر ته ورته ده چي اشترینگ ونه لري ۰

نه پوهیږم دا ډول دیموکراسي چي په هغي کي به حزبونه نه وي د کوم هیواد څخه به اخستل سوي وي ؟ زموږ په گاونډیو هیوادونو ، هند او پاکستان کي د انگریز د استعمار په وخت کي د کانگرس ، مسلم لیگ ، عوامي لیگ او داسي نور حزبونه جوړ سوي وو ۰ د افغانستان په یوه بل گاونډي هیواد ، ایران کي چي د دیموکراسۍ ادعایي هم نه کوله ، ډیر پخوا ( ایران نوین )، ( مردم ) او داسي نور حزبونه موجود وو ۰

ـ د دیموکراسۍ په پیل کي د افغانستان پاچا غوښتل چي په هیواد کي معتدل سیاسي جریانونه لکه د اساسي قانون ، مترقي دیموکرات ، ملي جبهه او ملي اتحاد ډلي جوړي سي ۰ چي په پارلمان کي ډیري چوکۍ و گټي او په راتلونکو کلونو کي به د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو مامور کړه سي، خو د پاچا دغه آرزو سر ته څکه و نه رسیدله چي حتي د افغانستان د دیموکراسي د معمارانو ډلي ، په هیواد کي د احزابو د جوړولو سره مخالفت کاوه ، لکه چي سید قاسم رشتیا لیکي (( ما او ډاکټر محمد یوسف دواړو پاچا ته شکایت وکړ چي خلیل الله خلیلي حزب جوړوي )) ( ٦ ٤)

د ښاروالیو قانون : تر دیموکراسۍ دمخه په افغانستان کي د ښاروالیو له پاره انتخابات کیدل ۰ ولي د دیموکراسۍ په دوري کي دغه حق د خلگو څخه واخستل سو څکه چي د دیموکراسۍ په دوري کي د هیواد ښاروالان د داخلي د وزارت له خوا ټاکل کیدل . رشتیا لیکي چي ده ته صدر اعظم نور احمد اعتمادي ویلي و چي که د ښاروالیو قانون نافذ سي ، نو انجینر غلام محمد فرهاد به په کابل کي د ښاروالۍ د چوکۍ له پاره

خان کاندید کړي ، چي د رشتيا په قول نور احمد اعتمادي د انجينر غلام محمد فرهاد د ښاروال کيدلو سره موافق نه و ( ٤٧ )

د پاچا صلاحيتونه : د ١٩٦٤ کال د اساسي قانون د ١٥ مي مادي په لومړۍ فقري کي پاچا ته (( غير مسؤول او واجب الاحترام )) ويل سوی دی ٠ دغه مطلب دامان الله خان د ١٩٢٤ کال په اساسي نظام نامي يا د محمد نادر خان د ١٩٢٩ کال په اساسي اصولو کي ، نه دې راغلې ٠ په دغه ارتباط به په کابل کي د سلطنت مخالفينو ويل (( په پخوانيو قوانينو کي به پاچا ته د خداي سيورې ويل کيدې ، ولي د ديموکراسۍ په اساسي قانون کي پاچا ته العياذ بالله د خدای صفات قايل شوي دي )) ٠

ـ د افغانستان پاچا محمد ظاهر شاه ، د خپل پلار محمد نادر خان تر مړيني وروسته د ١٩ کلونو په عمر سلطنت ته ورسيد ٠ په دغه وخت کي د ده اکا سردار محمد هاشم خان د افغانستان صدر اعظم و، چي د حکومت ټولي چاري د ده په واک کي وي ٠ تر ده وروسته د پاچا بل اکا شاه محمود خان د افغانستان صدر اعظم سوچي ده هم د حکومت چاري په خپله اجراکولي ، تر شاه محمود خان وروسته محمد داود خان د افغانستان صدر اعظم سو چي ده هم د حکومت په کارو کي د پاچا مداخله نه منله ٠ په خينو مواردوکي به محمد داود خان د پاچا سفارش هم نه اجرا کاوه د مثال په توگه : پاچا د محمد داود خان څخه غوښتنه کړي وه چي د ده د کاريزمير ياور ډگروال عبدالعلي اځگزي ته چي د ترفيع مستحق و د جنرالي ترفيع ورکړي خو محمد داود خان د پاچا دغه غوښتنه و نه منله او پاچا ته يي ويلي و چي ډگروال عبدالعلي په اردو کي وظيفه نه ده اجرا کړي ، نو په دغه لحاظ ده ته د جنرالي رتبه نه سي ورکولای ، کله چي محمد داود خان استعفا وکړه د جنرالي لمړی فرمان چي د پاچا له خوا توشيح سوی و هغه د عبدالعلي اځگزي د ترفيع فرمان و . ( ٤٨ )

د پاچا د اجراآتو خيني نموني :

ـ ډاکټر محمد يوسف په خپلي يوي مصاحبي کي ويلي و (( کله چي زه د افغانستان صدر اعظم سوم ماهيله درلوده چي پاچا به د حکومت په کارونو کي مداخله و نه کړي خو پاچا د سلطنت مقام دومره کښته کړ چي د حکومت پــه ټولو کارونو کي

يي مداخله كوله . )) ( ٤٩ )

ـ رشتيا ليكي چي صدر اعظم ډاكټر محمد يوسف پاچا ته ويلي و چي ستاسي سرمنشي خليل الله خليلي حزب جوړوي او دې د سلطنت د تخت د شا څخه پر حكومت باندي ټكان كوي . ( ٥٠ )

ـ ډاكټر محمد يوسف په خپلي يوي مصاحبي كي ويلي دي چي (( د ١٩٦٤ كال د اساسي قانون يوه اشتباه دا وه چي په دغه قانون كي ډير صلاحيتونه مقننه او قضاييه قواوو ته وركړه سوي وو چي په نتيجه كي حكومت ډير كمزوری سو )) د دغي اشتباه پر اساس دديموكراسي دوري څلورو حكومتونو ونه كولای سو چي هغه انارشي چي په تعليمي مؤسيسو په تيره بيا په پوهنتون كي پيدا سوي وي ، دمنځه يوسي .

ـ صدر اعظم محمد هاشم ميوندوال د پوهنتون شاگردانو ته وعده وركړه چي د عقرب د دريمي د پيښي عاملين به پيدا كوي او دوی ته به جزا وركوي ٠ خو پاچا محمد هاشم ميوندوال ته اجازه ور نه كړه چي د دغي پيښي تحقيق وكړي ٠

ـ د ديموكراسي دوري ټولو حكومتونو يو د بل سره مخالفت كاوه ٠

كله چي محمد هاشم ميوندوال د ډاكټر محمد يوسف پر ځای ، صدر اعظم سو نو د ډاكټر محمد يوسف ملگري ، په شورا او حكومت كي د محمد هاشم ميوندوال د حكومت په فوري نسكورولو بوخت سول ٠ دوی به د محمد هاشم ميوندوال او ديموكرات مترقي پر ضد ، ډير تبليغات كول ٠ دوی به ويل چي محمد هاشم ميوندوال پنځه متضاد اصلونه ( اسلام ، مشروطه شاهي ، ديموكراسي ، سوسياليزم او سرمايه داري ) په خپلي حزبي مرامنامي كي ځای كړي دي ٠ دوی داهم ويل چي د ديموكرات مترقي مرام نامه د (( خاك شير )) د دانو سره شباهت لري چي د هري ناروغې له پاره دوا ده ٠ كله به دوی د مترقي ديموكرات د جريان مرام نامي ته (( شتر گاو پلنگ )) هم وايه ٠ د محمد هاشم ميوندوال ملگرو به د ديموكراسۍ دوري اساسي قانون (( د شيطان كتابچه )) بلله .

ـ د محمد هاشم ميوندوال پر ځای نور احمد اعتمادي د افغانستان صدر اعظم سو د نور احمد اعتمادي او محمد هاشم ميوندوال مخالفت ، د نور احمد اعتمادي د

حکومت تر پایه ادامه درلوده. چي د دغي موضوع تفصيل د کتاب په بلي برخي کي راغلې دې .

ـ د افغانستان پاچا ولي د افغاني ديموکراسۍ د سالم رشد او په هيواد کي د ديموکراسۍ د مؤثريت په برخه کي لازم اقدامات و نه کړل ؟ آيا پاچا د سره څخه په افغانستان کي د کاملي ديموکراسۍ غوښتونکې نه و ، او که دې وروسته د ديموکراسۍ پر راوړلو باندي پښيمانه سوې و .

پرستش د يوه تن بت پرستي ده

د قانون پيروي لويه آزادي ده

په کوم ځای کي چي يو فکر کړي کارونه

هلته خوشي مهمل لفظ ديموکراسي ده

( ٥١ )

## ددريم فصل يادداشتونه


١ ـ رشتيا ، ذکر شوې اثر ، مخونه ١٨٢ ، ١٨٣

٢ ـ فيض زاد ، محمد علم ، جرگه هاي بزرگ افغانستان ، مخ ٢٨٢

٣ ـ کشککي ، ذکر شوې اثر ، مخ ٣٣

٤ ـ همدا اثر ، مخ ٣٢

٥ ـ دوپري ، لوويس ، افغانستان ، مخونه ٦٠٢ ، ٦٠٧

٦ ـ غبار ، ذکر شوې اثر ، دوهم ټوك مخونه ٢٣٩ ، ٢٤٠

٧ ـ همدا اثر مخونه ٢٤٤ تر ٢٥٤

٨ ـ همدا اثر ، مخونه ٢٥٤ تر ٢٥٨

٩ ـ همدا اثر ، مخونه ٢٤١ تر ٢٤٣

١٠ ـ فرهنگ ، ذکر شوې اثر، ټوك لومړې ، مخ

١١ ـ رشتيا ، ذکر شوې اثر، مخ ٢٩٠

۱۲ ـ زما مشاهدات

۱۳ ـ فرهنگ ، ذکر شوي اثر ، ټوك لومړی ، مخ ۵۰۰

۱٤ ـ مبارز ، ذکر شوي اثر ، مخ ۲۷۳

۱۵ ـ مبارز ، ذکر شوي اثر مخ ۲۷۳

۱۶ ـ خلمی ، ذکر شوی اثر، مخ ۲۰۵

۱۷ ـ همدا اثر ، مخ ۱۹۵

۱۸ ـ همدا اثر ، مخ ۱۹۶

۱۹ ـ د رامپارت مجله ، مخونه ۲۳ ، ۲٤

۲۰ ـ خلمې ، ذکر شوي اثر ، مخ ۲۰۳

۲۱ ـ فرهنگ ، ذکر شوي اثر ، مخ ۵۱۲

۲۲ ـ خلمې ، ذکر شوي اثر ، مخ ۲۳۶

۲۳ ـ فرهنگ ، ذکر شوي اثر ، مخ ۵۱۶

۲٤ ـ زما مشاهدات

۲۵ ـ خلمی ، ذکر شوي اثر ، مخ ۲۳۷

۲۶ ـ دنامه د ليکلو اجازه يي نه لرم

۲۷ ـ فرهنگ ، ذکر شوي اثر ، مخ ۵۲۲

۲۸ ـ زما مشاهدات

۲۹ ـ سرياور محمد عمر خان

۳۰ ـ د نامه ليکل يي لازم نه بولم

۳۱ ـ خالص ، مولوي محمد يونس ، د افغانستان د مسلمان ملت په سرنوشت لوبي نه دي په کار ، مخونه ۹ تر ۱۰

۳۲ ـ خلمې ، ذکر شوي اثر ، مخ ۲٤۶

۳۳ ـ د عبدالهادي مکمل په قول

۳٤ د نامه د ليکلو اجازه يي نه لرم

۳۵ ـ د نامه د ليکلو اجازه يي نه لرم

۳۶ ـ زما مشاهدات

۳۷ ـ زما مشاهدات

۳۸ ـ فرهنگ ، ذکر شوې اثر، مخ ۵۲۵

۳۹ ـ کشککي ، ذکر شوې اثر ، مخ ۸۲

٤۰ ـ همدا اثر ، مخونه ۸۰ تر ۸۲

٤۱ ـ د نعمت الله پژواك په قول

٤۲ ـ کشککي ، ذکر شوې اثر ، مخ ۸۱

٤۳ ـ زما مشاهدات

٤٤ ـ زما مشاهدات

٤۵ ـ د نامه د لیکلو اجازه يي نه لرم

٤۶ ـ رشتیا ، ذکر شوي اثر ، مخ ۲۸۰

٤۷ ـ همدا اثر ، مخ ۳۰۶

٤۸ ـ د یوه پخواني والي په قول

٤۹ ـ د خراسان مجله ، مخونه ۲۱ ، ۲۲

۵۰ ـ رشتیا ، ذکر شوې اثر، مخ ۲۸۰

۵۱ ـ د گل پاچا الفت شعر

۵۲ ـ د نامه د لیکلو اجازه يي نه لرم

## دريمه برخه

## څلورم فصل

## د : مقـنـنـه

۱ ـ دديموکراسۍ دورې شورا

د ۱۹٦٤ کال د اساسي قانون مطابق د لومړي وار له پاره په دوو تقنيني دورو
کي د غربي ديموکراسيو د اصولو پر اساس په هيواد کي عام ، سري او مستقيم
انتخابات و سول او د افغانستان په ۲۱٦ انتخاباتي حوزو کي چي به هر کانديد شخص

تر نورو کاندیدانو ډیره رایه اخستي وه ، هغه به د خپلي حوزی د وکیل په حیث ټاکل کیدې . د ۱۹٦٤ کال په اساسي قانون کي ، ولسي جرگي ته ډیر صلاحیتونه ورکړه سوي وو . چي ولسي جرگي د دغو صلاحیتونو څخه په استفادي سره ، دغي جرگي یو لړ اجراآت کړي دي چي د دغو اجراآتو یوه برخه په دغه کتاب کي راغلې ده زه د دوولسمي تقنیني دوري په ډیرو اجراآتو خبر نه یم ، څه محدود معلومات چې د دغي دورې په ارتباط ما اوریدلي دي هغه مي دلته لیکلي دي . ولي په دیارلسمي تقنیني دوري کي چي زه د شورا غړې وم او د دغي دوري د ولسي جرگي په ډیرو فیصلو کي مي برخه درلوده ما خپل مشاهدات د کتاب په دغي برخي کي په تفصیل وړاندي کړي دي . څرنگه چي د شورا پر دغي دوري باندي هیڅ لیکوال تر اوسه کوم اثر نه دی لیکلې یا ما کوم اثر تر اوسه نه دی لیدلی ، نو په دغه لحاظ د کتاب په دغي برخي کي ډیرو لیکلو اسنادو ته د مأخذ په حیث اشاره هم نه ده سوي . په دواړو تقنیني دوروو مخصوصا په دیارلسمي تقنیني دوري کي د وکیلانو ډیري غیر حاضری د ولسي جرگي حیثیت ته لویه صدمه ورسوله ، لکه چي نازک خیاله شاعرگل پاچا الفت وایي :

یو وکیل ته څوی ویل چي ولي پلاره کار ته نه څې تنخا اخلې له سرکاره
هغه ووې چي په کار او په خدمت څو تنخاگاني مزدور اخلي له باداره

زه د دوولسمي او دیارلسمي تقنیني دوروو دمحترمو وکیلانو څخه صمیمانه هیله کوم چي پر دواړو ولسي جرگو باندي خپل مشاهدات وه لیکي او خپاره یي کړي تر څو چي د دغو تقنیني دورو په اجراآتو زموږ هیوادوال ښه خبر سي .

## ۲ ـ دولسمه تقنیني دوره

د دیموکراسي دوري د اساسي قانون مطابق د ۱۹٦٥ کال د آگست د میاشتي پر ۲٦ نیټي په ټول هیواد کي د شورا د غړو د ټاکلو له پاره انتخابات پیل سوه چي د هیواد په ټولو انتخاباتي حوزو کي ډیر شمیر خلگو د ولسي جرگي او مشرانو جرگي د

غړیتوب له پاره ځانونه کاندید کړي وو . د دغي تقنیني دورې یوه کلکه او مشهوره انتخاباتي مبارزه د لغمان په ولایت کي د ډاکټر عبدالظاهر او غلام حسن ساپي تر منځ شوی ده . دوی دواړو د میترلام د ښار د اوسیدونکو د رایو د جلبولو له پاره دیرو ، مسجدنو او ښوونځیو ته ورغلل او د خلګو سره یي خبري وکړي . دوي لاندي ټوکي د دغي انتخاباتي حوزي په برخي کي په هیواد کي خپري شوي دي :

ـ غلام حسن خان ساپې چي په خپلي سیمي کي د یوه بډاي سړي په حیث شهرت درلود، ده ته یوه لیکوال ویلي و چي ته سرمایه دار یي . ده په جواب کي د ټوکي په شکل ورته ویلي و (( واقعیت دادې چــي ته ډیر لوڅ یــي نو ځکه زه تـاتـه سرمایه دار ښــکارم )) ( ۱ )

ـ د انتخاباتو په جریان کي ډاکټر عبدالظاهر د میترلام د ښار د ناروغانو صحي معاینه کوله او دوی ته به یي نسخه هم ورکوله . ده به په ټوکه ناروغانو ته ویل (( د درملو پیسي د غلام حسن خان ساپي ځخه و غواړې )) ( ۲ )

په هغه وخت کي دروو سیاسي ډلو د افغانستان ډیر تعلیم یافته خوانان جذب کړي وو . دیموکراسي نوین ، دیموکراتیك خلق او اسلامي جمعیت . خو د دغو سیاسي ډلو ځخه یوازي د دیموکراسي نوین ( شعله جاوید ) ډلي د افغانستان په انتخاباتو کي برخه وانه خسته .

ددیموکراتیك خلق ډلي فیصله کړي وه چي په انفرادي ډول به په انتخاباتو کي برخه اخلي او د دغي ډلي خو غړي په خپنو انتخاباتي حوزو کي ځانونه کاندید کړل. نور محمد تره کي د غزني د ناوي په حوزي کي کاندید سو او د محمد هاشم تره کي له خوا یي ماته و خوړه . ولي د کابل په ښار کي د دغه جریان ډیرو غړو د ببرك کارمل او اناهیتا په ګټه انتخاباتي مبارزه وکړه او دوی انتخابات و ګټل . په کابل کي دا هم ویل کیدل چي د شوروي اتحاد د خوشحالولو له پاره حکومت په انتخاباتو کي د ببرك کارمل او اناهیتا سره مرسته کړي ده . تر انتخاباتو وروسته ، د دغه جریان ځینو غړو نور محمد تره کي په دي خبر کړ چي ببرك کامل د دغه جریان پخواني فیصله ماته کړي ده ، او د دغه جریان د غړو د فعالیت په نتیجه کي یي انتخابات ګټلي

دي. . د دغه جريان د انشعاب اساس د دغه ځایه څخه ایښوول کيږي ( ۳ )

د ډاکټر محمد یوسف ځینو ملگرو دولسي جرگي انتخابات گټلي وو ، که څه چي د دوی شمیر نه و اعلان شوې خو په کابل کي ویل کیدل چي د دغي ډلي څخه لس یا دوولس وکیلان په ولسي جرگي کي وو چي گل پاچا الفت او میر محمد صدیق فرهنگ د دغي حلقي مشران وو ۰

د دغي دوري په ولسي جرگي کي د اسلامي ډلي يو مشر عبدالهادي هدایت و۰ ده به د ولسي جرگي د مباحثاتو په وخت کي ببرک کارمل ته همیشه دا خبرداري ورکوله چي دی په خپلو خبرو کي باید په اسلام تظاهر و نه کړي ، اوکه ببرک کارمل دا کار وکړي نو د ده د ملگرو د شدید عکس العمل سره به مخامخ سي ۰

په ولسي جرگي کي د ملي جبهي د ډلي مشر خلیل الله خلیلي و ۰ چي د دغي ډلي څخه هم لس یا دوولس وکیلان ولسي جرگي ته ورغلي وو ۰ کله چي خلیل الله خلیلي په جدي کي سفیر سو ، د دغي ډلي فعالیت په ولسي جرگي کي ډیر محدود کړ سو ۰

په ولسي جرگي کي د صدای عوام ډله هم فعاله وه ۰ د دغي ډلي مشران ډاکټر عبدالکریم فرزان او میرمن معصومه عصمتي وو .

په ولسي جرگي کي بله ډله د افغانستان د مخورو او خانانو ډله وه ، چي سردار عبدالرشید خان يي رهبري کوله ۰

کله چي محمد هاشم میوندوال د ډاکټر محمد یوسف پر ځای صدر اعظم سو ، ده په ولسي جرگي کي کومه ډله نه درلوده ، د ده سره په شورا کي د ډاکټر محمد یوسف او ببرک کارمل ملگرو ډیر مخالفت کاوه ۰ دی مجبور سو چي په ولسي جرگي کي د سردار عبدالرشید خان او خلیل الله خلیلي پر ملگرو تکیه وکړي (٤ )

ببرک کارمل په ولسي جرگي کي څنگه و وهل سو ؟

د ولسي جرگي په عمومي غونډو کي به ببرک کارمل او د ده ملگرو د آجندا پر ټولو مسایلو باندي اوږد مسلکي بحث کاوه چي د غونډو ډیر وخت به يي نیوی ، او د ډیرو وکیلانو به ددوی ددغو خبرو څخه ښه نه راتله او هیشه به د دوی او نورو

وکیلانو تر منځ لفظي مشاجري کیدلي ۰ یوه ورځ ببرك کارمل د ولسي جرګي په تالار کي د سید کرم وکیل سدو خان اصیل ته د پاکستاني خطاب کړی و ، چي د دغه اتهام په واردولو سره دی او د ده ملګري د سردار عبدالرشید د ډلي له خوا و وهل سول .

دغو وکیلانو د ببرك کارمل او د ده د ملګرو په وهلو کي برخه درلوده :

د سید کرم وکیل سدوخان اصیل، د بالابلوك وکیل عبدالستار خان ، د سپن بولدك وکیل عبدالصمد خان ، د دیراوت وکیل حاجي دوست محمد ، د شاجوی وکیل محمد عمر خان ، د اجرستان وکیل عبدالستار ملاخیل ، د بالا مرغاب وکیل غلام رباني شمولزی او څو نور وکیلان . ( ۵ )

تر وهلو وروسته کارمل د ابن سینا روغتون ته یووړل سو ، په دغه وخت کي ده نور محمد تره کي ته وویل چي سبا دي په کابل کي اعتراضیه مظاهره وسي ، تره کي ده ته وویل چي ته پر خپل شخصي عمل وهل سوی یي او حزب ستا له پاره مظاهره نه سي کولای۰ په سبا ورځ د کارمل اخلاصمنو په کابل کي مظاهره وکړه او دتره کي ملګرو په دغي مظاهري کي برخه وانه خسته چي د دغي ورځي څخه د دوی تر منځ انشعاب راغئ او وروسته ددوی جریان د خلق او پرچم پرډلو وویشل سو .(۶ )

پاچا به د سردار عبدالرشید د ډلي سره منظمه کتنه کوله ، خو د ببرك کارمل تر وهلو وروسته پاچا د څه وخت دپاره د دغي ډلي وکیلانو دلیدلو څخه ډډه وکړه ، څو میاشتي وروسته چي پاچا دغه ډله خپل حضورته و منله ، پاچا دوی ته ویلي و (( زه ستاسي څخه د کارمل پر وهلو خوابدئ شوئ وم ، تاسي پوهیږئ چــي تاسي څه کړي دي ؟ تاسي پر یوه مچ باندي د توپ ټك کړی دی ۰ )) پاچا په هغه وخت کي دا تصور نه سو کولای چي کارمل به څوارلس کاله وروسته د ده پر ځای کښیني او یو لوئ جهاني قدرت شوروي اتحاد به د ده و شا ته و دریږي . ( ۷ )

## ۳ ـ ددیارلسمي تقنیني دوري ولسي جرګه

د دیارلسمي تقنیني دوري انتخابات د ۱۹۶۹ کال د آګست د میاشتي پر ۲۶ نیټي پیل سوه د انتخاباتــو په وخت کي پــه لاندي څلورو انتخاباتي حوزو کـي څـه پیښـي

شوي وي.

ـ د غزني د مقر په ولسوالۍ کي پخواني صدر اعظم محمد هاشم ميوندوال او محمد اکرم خان ځانونه کانديد کړي و . حکومت او ستره محکمه په دي متهم دي چي د مقر د ولسوالۍ په انتخاباتو کي يي د محمد هاشم ميوندوال پر ضد مداخله کړي ده . رشتيا ليکي (( صدر اعظم نور احمد اعتمادي ما ته و ويل چي ده د ميوندوال پر ضد د مقر د ولسوالۍ په انتخاباتو کي مداخله کړي ده . )) ( ۸ )

د انتخاباتو په نتيجه کي محمد اکرم د مقر دولسوالۍ و کيل سو ، محمد هاشم ميوندوال د حکومت د مداخلاتو په ارتباط ستري محکمي ته اعتراضيه ليك وړاندي کړ د ستري محکمي د دالانشا آمر د ميوندوال دغه اعتراضيه ليك د ډيرو مراجعينو په مخ کي باطله داني ته اچولې و ( ۹ )

محمد هاشم ميوندوال په انتخاباتو کي د دولت د مداخلاتو په ارتباط د مساوات په جريدي کي يوه مقاله و ليکله ، او د افغانستان د هوايي قوي ځخه يــي پــه هغه کي داسي مننه کړي وه چــي يوازي دغــي قوي د مقر د ولسوالۍ پــه انتخاباتو کــي مداخله نــه ده کړي .( ۱۰ )

ـ د هرات په ولايت کي د هرات د هغه وخت والي د محمد شاه رحمتيان پر ضد په انتخاباتو کي مداخله کړي وه ، ولي هراتيانو د والي د مخالفت باوجود ، محمد شاه رحمتيان د خپل وکيل په حيث و ټاکی . ( ۱۱ )

ـ د کندهار د ولايت د سپين بولدك په ولسوالي کي د نورزو او اځگزو د اقوامو تر منځ د وکالت پر موضوع باندي اختلافات پيدا سوه ، چي په دغي دوري کي د سپين بولدك ځخه ولسي جرگي ته وکيل و نه ټاکل سو . ما په هغه وخت کي د سپين بولدك د يوه اوسيدونکي ځخه پوښتنه وکړه چي آيا دغه دوه قومونه تر دي حده يو د بل سره مخالف دي چي په دغي دوري کي دوی کاميابه نه سوه چي خپل وکيل ولسي جرگي ته معرفي کړي ؟ ده زما په جواب کي په عاميانه الفاظو وويل چي زموږ په سيمي کي يو متل دی چي په بولدك کي د نورزو او اځگزو د قومونو موجوديت د موسقي هغو آلاتو ته ورته دی چي يوازي د يوي آلي ږغول هيڅ خوند نه لري . خو سپين بولدك ته د

دباندي څخه د غرض لاسون ورسیدل او دغه دوه قومونه یي د دښمنۍ تر سرحده یو د بل په مقابل کي ودرول.

ـ د ننگرهار د ولایت د هسکي میني په ولسوالي کي د خلگو د اختلافاتو په وجه د ولسي جرگي انتخابات وځنډیدل چي یو کال وروسته د دغي ولسوالي خلگو د عبدالوهاب په نامه خپل وکیل ولسي جرگي ته و لیږي .

د دیارلسمي تقنیني دورې د وکالت له پاره دوو ملي شخصیتونو لکه محمد هاشم میوندوال او دیپلوم انجینر غلام محمد فرهاد خانونه کاندید کړي وو. د محمد هاشم میوندوال د وکالت ممانعت و سو. او انجینر فرهاد د کابل دښاریانو له خوا د وکیل په حیث و ټاکل سو ، ولي ده ژر د وکالت څخه استعفا وکړه .

ددیارلسمي تقنیني دوري شورا د ۱۹٦۹ کال د اکتوبر د میاشتي پــر ۱٤ نتټې د افغانستان د پاچا له خوا پرانستله سوه .

د دغي دوري ولسي جرگي د نور احمد اعتمادي ، ډاکټر عبدالظاهر او محمد موسي شفیق حکومتونو ته د اعتماد رایه ورکړي ده . دوو لومړنیو حکومتونو ته وکیلانو تر ډیرو خبرو او اوږدو مباحثاتو وروسته ، د اعتماد د رایي اظهار کړی دی ، خو محمد موسي شفیق د وکیلانو څخه غوښتنه وکړه چي د اعتماد رایي په غونډي کي تر خپلو متحدالمالو خبرو تیرسي او په پټه خوله د اعتماد د رایي اظهار وکړي . وکیلانو د ده غوښتنه و منله او دوی یوازي د لاسونو پــه پــورتــه کولو ســره د اعتــماد د رایي اظهار وکړ ، په دغي غونډي کــي مــا هــم د محمد شفیق حکومت تــه د اعتماد رایه ورکړي ده .

د ولسي جرگي په عمومي مجلس کي د نور احمد اعتمادي حکومت ته د اعتماد د رایو په غونډي کي یوه وکیل تر لسو دقیقو ډیري خبري وکړي ، د ولسي جرگي د طرزالعمل مطابق هر وکیل حق لري چي د دغي جرگي په غونډو کي ( حد اکثر )لس دقیقي خبري وکړي چي دطرزالعمل د دغه حکم پر اساس د ولسي جرگي رئیس ډاکټر محمد عمر وردگ دغه وکیل ته و ویل (( ستا وخت پوره سوی دی او ته د نورو خبرو حق نه لري )) د بگرامیو د حوزي وکیل ، دډاکټر محمد عمر وردگ پر دغي مداخلي

باندي قانوني اعتراض وکړ ، او ده اشتباها د ولسي جرګي رئيس ته وويل چــي د طرزالعمل مطابق هــر وکيل حق لـري چــي د دغــي جرګي پــه غونــډو کي ( حد اقل ) لس دقيقي خبري وکړي ، ده بايد حد اکثر ويلي وای ( ۱۲ )

لکه چي د ولسي جرګي رئيس هغه وخت د دغي جرګي طرزالعمل ښه نه و لوستې ، په دي چي دی ډير ژر دهغه وکيل په دغه اشتباهي او غير واقعي اعتراض قانع سو او د نورو وکيلانو په ويناګانو کي يي مداخله و نه کړه ۰ چي وروسته د لوګر د مرکز وکيل مولوي محمد نبي محمدي ، د اعتماد درايو په غونډي کي دوه ساعته خبري وکړي او د ولسي جرګي رئيس د ده د خبرو ممانعت و نه کړ۰

يوه ټوکه : يوه ورځ د ګل پاچا الفت څخه چي د دوولسمي دوري وکيل و ، د ديارلسمي دوري يوه وکيل پوښتنه وکړه چي (( آيا زموږ او ستاسي د دوروو تر منځ کوم توپير سته او که يه ؟ )) الفت چي ظريف او حاضر جوابه سړې و ، دغه وکيل ته و ويل زموږ او ستــا ســي د دوروو تــر منځ ډيــر تــوپيـر ستــه ، پـــه دي چـي زموږ ( اکثر حد ) ستاسي ( اقل حد ) دی ( ۱۳ )

په ۱۹۷۳ کال کي چي د افغانستان پاچا د سترګو د علاج له پاره اروپا ته سفر کاوه ، ده تر خپل سفر دمخه د شورا د غړو سره خدای اماني وکړه ، د پاچا دغه کار په کابل کي د ډيرو شايعاتو باعث سو . د مثال په توګه : کله چي د پاچا په غياب کي محمد داود خان کودتا وکړه ، په کابل کي ډيرو خلګو دا تصور کاوه چي محمد داود خان د پاچا په مصلحت کودتا کړي ده ۰ اودغو خلګو به د خپل قول د اثبات له پاره د شورا دغړو سره د پاچا خدای اماني ته اشاره کوله ، ولي د دغو خلګو دغو شايعاتو حقيقت نه درلود په دي چي هغه وخت د شورا د څلور کلني دوري وروستې ورځي وي او پاچا د ډير وخت له پاره په اروپا کي پاته کيدی او ده بايد تر خپل سفر دمخه د شورا د غړو سره خدای اماني کړي وای ۰

## ٤ ـ زه څرنګه وکیل سوم

زه چي د افغانستان د خارجه وزارت مسلکي مامور وم د ١٩٦٩ کال د شورا د انتخاباتو په وخت کي په لندن کي د افغاني سفارت د آتشي په حیث مقرر سوې وم. ولي د ځینو دوستانو په جدي غوښتنه زه په لندن کي د خپل ماموریت څخه مستعفي سوم او په خپل پلارني استوګن ځای یعني د فراه د ولایت د بالابلوک په ولسوالۍ کي د ولسي جرګي د وکالت له پاره کاندید سوم . د نوموړي ولسوالۍ د وکالت له پاره موږ دوه کسان کاندید سوي وو .

د انتخاباتي مبارزو په ورځو کي زه د اول وار له پاره د بالابلوک پر ټولو سیمو وګرزیدم او د هغو سیمو خلګ مي د نژدي څخه ولیدل . چي د بالابلوک د ولسوالۍ د عامو خلګو وفا ، پاکي ، پیرزویني او میلمه پالني پر ما باندي ډیر اثر وکړ . دوی په درواغو نه پوهیدل ، دوی د رایو خرڅول نه وو زده، دوی دورنګي نه درلوده ، هر څه چي به یي ویل هغه به یي کول، پر خپلو خبرو او وعدو ډیر کلك ولاړ وو ، چي زه به اوس د بالابلوک د غرنۍ سیمي د دوو کلیو ( زرمردان ) او ( ازو) د خلګو سپیځل توب او میړانه د مثال په توګه وړاندي کړم :

د ( زرمردان ) د کلي اوسیدونکو د وکالت دوهم کاندید ته د راي ورکولو وعده ورکړي وه . او د ( ازو ) د کلي خلګو فیصله کړي وه چي ما ته به خپله رایه راکوي. زه چي د هغي سیمي په کلیوالي اصولو ښه نه پوهیدم ، نو زه د زرمردان کلي ته د رایي غوښتلو له پاره ورغلم او یوه شپه مي د هغه کلي د مشر ملك رستم خان په کور کي تیره کړه ، ولي د دغه کلي خلګ زما سره حتي د خبرو له پاره هم حاضر نه سول او دوی ما ته خبر راکړ چي دوی د وکالت دوهم کاندید ته د رایي وعده ورکړي ده او دوی خپله وعده نه سي ماتولای . د دوی دغي صریح لهجي او بي ریا خبرو زه ډیر خوشحاله کړم او ما د بالابلوک د ولسوالۍ په نورو کلیو کي دغه عمل بیا تکرار نه کړ .

د( ازو) کلي ته د دوهم کاندید هغه نماینده ورغی چي د کلي د مشر ملك نظام خان سره یي ښه مناسبات درلودل . ولي د دغه کلي خلګ دي ته حاضر نه سول چي

د ده سره د انتخاباتو پر موضوع باندي و ږغيږي چي د زرمردان او ازو د كليو خلگ پر خپل موقف ثابت پاته سول او د انتخاباتو په ورځ د زرمردان اوسيدونكو د دوهم كانديد سندوخ ته خپلي رايي واچولي او د ازو د كلي خلگو ماته خپلي رايي راكړي ٠

د بالابلوك ولسوالي د پراخوالي او د اوسيدونكو د شمير له كبله ، د فراه د ولايت يوه غټه ولسوالي ده ٠ چي ډير اوسيدونكي يي نورزي ، عليزي ، باركزي ، اڅگزي او اسحق زي دي ٠ دوه كلي ( سيدان ) هم په دغي ولسوالي كي ژوند كوي ، د بالابلوك په غرنۍ سيمي كي د ( چار ايماق ) او ( زوريانو ) قبيلي هم ميشته دي٠ دغه ولسوالي ډيركوچيان هم لري ، چي دوی په دوبي كي د خپلو پسو د رمو سره يو ځای د غور ولايت ته كډه كوي او په ژمي كي بيرته خپل اصلي ټاټوبي ته راستنيږي ٠

د بالابلوك په ولسوالي كي د شورا د انتخاباتو له پاره دوه مركزونه ټاكل سوي وو چي په هر مركز كي به د پنځو ورځو له پاره رايه اخستل كيده٠د انتخاباتو په لومړی ورځ د هغه ځای خلگو فيصله وكړه چي د تبرك له پاره بايد د ( عارف آباد ) د كلي سيدان تر نورو دمخه ما ته په سندوخ كي خپله رايه واچوي ، دغو روحاني خلگو د سهار لمونځ د ( گنج آباد ) په كلي كي انتخاباتي مركز ته نژدي اداكړ، دوی خپله رايه سندوخ ته واچوله چي ځينو مشرانو د زيارتونو خوردي هم د رايو د پاڼو سره يو ځای په سندوخ كي اچولي وي ٠ د انتخاباتو د پيل څخه يو ساعت نه و تير سوی چي د رايو وركونكو د منځ څخه يوه ملنگ چي ډير اوږده ويښتيان يي درلودل ، په لوړ آواز ږغ وكړ چي (( ما تيره شپه خوب ليدلې دې چي د سخي دين محمد خان زوی عبدالغفار وكيل دې ) ) ده دوكيل كلمه دوه واره و ويله ٠ چرنگه چي زه په انتخاباتي كارونو مصروف وم نو ددغه ملنگ سره ما كتنه و نه كړه ٠

په لومړي انتخاباتي مركز كي ما تر دوهم كانديد ډيري رايي يووړي ، په دوهم انتخاباتي مركز كي چي په ( فراه رود ) كي و ، هلته هم د سيدانو يو كلي د( تپي ) په نامه سته چي د رايو وركولو په لومړې ورځ د دغي كلي روحاني مشرانو زه د خپلو نيكه گانو زيارتونوته بوتلم چي تر دعا وروسته زه د دوی سره يو ځای د رايو وركولو مركز ته ورغلم او دوی خپلي رايي سندوخ ته واچولي . په دغه انتخاباتي مركز كي هم

ما ډيري رايي واخستلي چي د ټولو رايو د شمير په نتيجه کي زه د بالابلوك وکيل سوم ۰

د بالابلوك د ولسوالۍ خلګو بي له کومي مادي ګټي څخه ما ته خپله رايه راکړي ده چي زه د دوی دغي پيرزويني ته د تل له پاره په درنه سترګه ګورم ۰ ما په کابل کي زده کړه کړي ده او هلته د دولت مامور وم او د بالابلوك ډير خلګ ما نه پيژندل ۰ ولي د بالابلوك د خلګو سره زما د پلار ارواښاد دين محمد خان نيك سلوك ، ما ته په انتخاباتو کي ډيره ګټه و رسوله ۰

د ديارلسمي تقنيني دوري انتخابات د نور احمد اعتمادي د حکومت په وخت کي سوي دي ، د ده حکومت په انتخاباتو کي د ديموکراسۍ د اصولو ښه مراعات کړی دی ده د فراه د ولايت د ټولو ولسواليو په انتخاباتو کي مداخله و نه کړه ، او ده د هغه ولايت خلګ پري ښوول چي د خپل خوښي کانديد ته خپله رايه ورکړي ۰

زما يوه خواخوږي دوست د فراه والي ارواښاد محمد صديق خان چي کله به يي زه په کومي ټولني کي ليدم ، نو ده به حاضرو خلګو ته ويل ، فراهي وګورئ چي د لندن ماموريت يي د وکالت له پاره پري ايښی دی . په سر کي زه هم د ولسي جرګي په اهميت نه پوهيدلم او په دي فکر کي وم چي زه ولي يو ديپلوماتيك ماموريت پريږدم او يوي داسي غير حزبي جرګي ته ورځم چي په هغي کي د کليو خانان او ملکان راټول سوي وي ۰ او دوی به د فيصلو په وخت کي ملي ګټو ته ډيره توجه نه کوي ۰ ولي زما دغه تصور غلط و پــه دي چــي په ولسي جرګـي کـي ډير مـلـي ، با احساسه او وطنپالونکي وکيلان موجود وو چــي د هـيـواد د ګټو او مـلـي ارزښـونو سـره يــي ډيره مينه درلوده ۰ دوی د زړه لـه کومي غوښـتل چـي افغانستان د عصر د ايجاباتوسره سم پر مخ ولاړ سي ۰ دوی په دغي لاره کي هر ډول قرباني ته حاضر وو د وکيلانو په مورد کي چي دوی ولي د حکومت دفترونو ته مراجعه کوله ، يا داچي ولي د ولسي جرګي غونـډو به نصاب نه درلود ، دا ټول مطالب د کتاب په بلي برخي کي تشريح سوي دي۰

ولسي جرګه زما له پاره يوه داسي مدرسه وه چي ما هلته ډير عمده مسايل زده

کړي دي ، په ولسي جرگي کي يو وکيل د افغانستان دولت په خپله اصلي بڼه ويني ۰ يو وکيل د خپل هيواد په واقعي ستونزو ډير ښه خبريږي۰ د خپل سالمو انتقاداتو له لاري څخه هر وکيل خپل هيواد ته ډيره گټه رسولای سي . له همدي امله زه شورا د ملت کور بولم  او په دي وياړم چي زه د ۱۹٦۹ کال څخه بيا تر ۱۹۷۳ کال پوري د افغانستان د ولسي جرگي غړي وم ۰

د بالابلوك د ولسوالي ډيرو خلگو په پوره اخلاص  ما ته خپله رايه راکړي ده چي زه د ډير وخت څخه په دي فکر کي وم ، چي که ما ته فرصت ميسر سي چي زه  د بالابلوك شريفو خلگو ته د زړه له کومي کور وداني و وايم  او دوی ته دا هم و وايم چي دوی زما د ژوند په ډيرو حساسو شيبو کي  زما سره لويه مرسته کړي ده او دوی زه هغه ځای ته ليږلي وم چي زما پر ذهن باندي يي  ژور اثر کړی دی او زما د ژوند لاره يي بدله کړي ده ۰ ما ډيره آرزو درلوده چي د بالابلوك خلگو ته دا هم و وايم چي ما د ولسي جرگي د وکالت څخه شخصي استفاده نه ده کړي او د وکالت مهمه وظيفه مي په ډيري امانت داري سره د نورو ملي او وطنپالونکو وکيلانو سره يو ځای چي تفصيل يي په دغه کتاب کي راغلی دی سر ته رسولي ده ۰

زه د دغو څو کرښو په ليکلو سره د بالابلوك ټولو خلگو ته د ميني سلامونه وړاندي کوم  ، او د بالابلوك د قومي مشرانو چــي ځني يي اوس ژوندي او ځينو يي وفات کړی دی لکه د ( وريي ) د کلي عبدالخالق خان، د ( شيوان ) د کلي ملك نور محمد خان خپل د اکا زوی د ( ديزکي ) دکلي عبدالقدوس خان ، د ( تودنك ) د کلي عبدالودود خان او عبداللطيف خان ، د ( کنسك ) د کلي محمد عمر خان ، ملك احمد خان او ملا نعمت الله آخند زاده او پير داد خان ، د ( گراني ) د کلي توکل خان او گل احمد خان ، د ( گنج آباد ) د کلي ملك حبيب الله خان ، د ( ازو ) د کلي ملك نظام خان او ډير نور مشران چي دلته يي نومونه نه سم ليکلای، ډير مرهون د احسان يم ۰

د انتخاباتو په وخت کي ، پر رايو سربيره د فراه د ولايت ډيرو مشرانو ما ته ميلمستياوي او نوري مادي او معنوي مرستي کړي دي ۰ د مثال په توگه د دين محمد خان ، پير محمد خان او شير محمد خان هغي مرستي چي دوی خپل سرويس او لاري

موټران بیغیر له اجرت څخه د رایو ورکونکو د نقل او انتقال له پاره د دوو هفتو له پاره په کار اچولي وو د قدر وړ مرسته وه چي زه یي ډیره مننه کوم . ( ١٤ )

## ٥ ـ د پاچا سره د وکیلانو دوي کتني

لومړي کتنه :

په ١٩٦٩ کال کي د مخه تر هغه چي د شورا غړي په کار پیل وکړي ، دوی د افغانستان د پاچا سره په شاهي ارگ کي کتنه وکړه ۰ د پاچا سره د ملاقات له پاره د شورا غړي په اته گروپونو ویشل سوي وو چي هر گروپ به به جلا ډول د پاچا سره لیدل زه د فراه ، نیمروز ، بادغیس ، غور او اروزگان د وکیلانو او سناتورانو سره په گډه د پاچا حضور ته ورغلم ۰ د انتظار په خونه کي ما دوی ته و ویل چي د پاچا تر فرمایشاتو وروسته باید یو سناتور د نورو په نمایندگۍ د پاچا په حضور کي خبري وکړي ۰ خو دوی ټولو وویل چي زه باید د دوی په نمایندگي هلته څو خبري وکړم ۰ په هغي لحظي کي د پاچا د حضور مصاحب محمد رحیم پنجشیرې په خونه را ننوتې او د ده په لارښوونه موږ د پاچا حضور ته ورغلو ۰ پاچا تر روغبړه وروسته د هیواد سیاسي او اقتصادي حالات تشریح کړل او د شورا غړي یي خپلو راتلونکو درنو او حساسو وظایفو ته متوجه کړل . ده د خبرو په ضمن کي و ویل (( نور احمد اعتمادي چي ما د حکومت په جوړولو توظیف کړې دې زما نژدي دوست دې او دې د صدارت د چوکۍ سره علاقه نه لر ي بلکه ما دې دغـه کار تـه مجبور کړې دې ))
پاچا داهم و ویل چي (( اعتمادي په خارجي سیاست پوهیږي که یو حکومت په داخلي چارو کي کومه اشتباه وکړي هغه اشتباه ژر تلافي کیدلای سي ، ولي په خارجي سیاست کي د یوه حکومت اشتباه ، نه سي تلافي کیدلای ۰ نو په دغه دلیل ما نور احمد اعتمادي چي په خارجي سیاست پوهیږي ، د حکومت په جوړولو مامور کړې دې او زه تاسي ته توصیه کوم چي د نور احمد اعتمادي د حکومت سره لازمه مرسته وکړ )

د پاچا تر فرمایشاتو وروسته ما د نورو په نمایندگۍ پاچا ته په هیواد کي د دیموکراسي نظام د راوړلو په منا سبت مبارکي و ویله او زیاته مي کړه چي د دغه

نظام له برکت څخه دغه حاضر وکيلان او سناتوران چي د افغانستان د ليرو ولايتونو اوسيدونکي دي ، نن د شورا د لاري څخه ستاسي تر رهنمايي لاندي د خپل هيواد په امورو کي برخه اخلي ۰ ما دا هم و ويل چي د شورا حاضر غړي اعليحضرت ته وعده ورکوي چي د حکومت سره به لازمه مرسته وکړي ، ولي د شورا غړي دحکومت څخه دمتقابلي همکاري توقع لري ، چي د حکومت د نه همکارۍ په صورت کي به د شورا او حکومت تر منځ اوسني ښو مناسباتو ته صدمه ورسيږي ۰

پاچا زه نورو خبرو ته پري نه ښوولم او زه يي په اشاره پوه کړم چي نوري خبري بايد و نه کړم ۰ پاچا زما پر خبرو يوه لنډه تبصره وکړه او د ليدني په پای کي پاچا زما په شمول خينو وکيلانو ته تر نورو ډيره توجه وکړه ۰

دوهمه کتنه :

په ۱۹۷۱ کال کي کله چي ولسي جرگي د نور احمد اعتمادي حکومت په بي کفايتي او د شورا سره په نه همکارۍ متهم کړ او د ده حکومت ته يي د نه اعتماد رايه ورکړه چي تفصيل يي وروسته راځي ، داوار بيا د پاچا په امر د فراه ، نيمروز او غور د ولايتونو وکيلان د شپي پر اتو بجو د پاچا حضور ته ورغلو ، په دغه شپه هم ما د نورو په نمايندگۍ د پاچا په حضور کي خبري وکړي ۰

په دغه ملاقات کي پاچا د هيواد او سيمي پر حالاتو باندي اوږدي خبري وکړي او ده د خبرو په آخر کي و ويل (( ولسي جرگي د نور احمد اعتمادي حکومت ته د نه اعتماد رايه ورکړي ده چي ولسي جرگي دغه کار بايد نه وای کړی ۰ او ولسي جرگي چي کوم اتهامات پر حکومت باندي وارد کړي دي ، د ولسي جرگي سره د دغو اتهاماتو ثبوت هم نه سته ، د بلي خوا څخه د حکومت ډير غړي د هيواد پوه ځوانان او د هيواد سرمايه ده او دوی ستاسي د نه اعتماد په رايي سره مايوسه کيږي ))۰ ما د پاچا تر فرمايشاتو وروسته د ولسي جرگي پر خينو اجراآتو رڼا واچوله او د ولسي جرگي خينو ستونزو ته مي هم اشاره وکړه ۰ ما پاچا ته و ويل چي تاسي د افغانستان رهبري پر غاړه لري او د ډيرو مصروفيتونو سره سره دا دوه ساعته کيږي چي د هيواد پر دغه پرابلم باندي چي حکومت يا شورا او يا دواړو ايجاد کړي دې د ولسي

جرگي د غړو سره بحث کوي او د حل د يوي معقولي لاري په لټه کي ياست ، ولي حکومت په تيرو دوو کلونو کي يو وار هم نه دې حاضر سوې چي د هيواد پر کوم مشکل باندي حتي لس دقيقي د دغو وکيلانو سره خبري وکړي ، نو دا طبيعي ده چي د پرابلمونو د تراکم په صورت کي به حکومت ته حتما د نه اعتماد رايه ورکوله کيږي ۰

داوار پاچا زما خبري پري نه کړي او زما ټوله وينا يي په دقت واوريده او زما تر خبرو وروسته پاچا ما ته و ويل (( په دغه ارتباط زه ستا تحليل تاييدوم ، ولي ستاسي د نه اعتماد رايه د افغانستان پرابلمونه نه سي حل کولای )) ده زياته کړه (( سبا به ډاکټر وليد حقوقي يو ليکلې مطلب ولسي جرگي ته دروړي چي تاسي بايد هغه مطلب تصويب کړې او بله شپه به دنور احمد اعتمادي دحکومت استعفا اعلان سي )) وکيلانود پاچا دغه امر و مانه او ليدنه پر همدغه ځای پای ته و رسيده۰

و لسي جرگي د ۱۹۷۱ کال د اپريل د مياشتي پر ۱۷ نيټي د نور احمد اعتمادي حکومت ته د نه اعتماد رايه ورکړه ، او د دغه کال د مي د مياشتي پر ۱۰ نيټي دا لاندي مطلب ډاکټر وليد حقوقي د ولسي جرگي په عمومي غونډه کي ولوست او د ولسي جرگي له خوا تصويب سو :

(( د شورا او حکومت د ښې همکاري د پيل په غرض ولسي جرگي فيصله وکړه چي حکومت ته د نه اعتماد تر رايي تير سي ))

د پورته مطلب تر تصويب شپږ ورځي وروسته ، د نور احمد اعتمادي د حکومت استعفا د کابل راديو د لاري ځخه اعلان سوه . ( ۱۵ )

## ۶ ـ د وکيلانو گړ دريځ

گران لوستونکي به په دي خبر وي چي په افغابستان کي د سياسي احزابو قانون نه و نافذ سوې او دولسي جرگي د انتخاباتو په وخت کي منفردو اشخاصو په خپلو مربوطو حوزو کي ځانونه د وکالت له پاره کانديد کړي وو چي هر موفق کانديد په خپل شخصي نفوذ او يا د خپل قوم په مرسته انتخابات گټلي وو او ولسي جرگي ته يي لاره

پیدا کړي وه ۰

لوستونکو ته دا هم معلومه ده چې په ولسي جرګي کي یوه وکیل یوازي تصمیم نه سو نیولای او دولسي جرګي هره فیصله د هغي جرګي د غړو د اکثریت له خوا نیوله کیده ، نو په یوي داسي غیر حزبي جرګي کي زما په شمول ډیر وکیلان د خپلو وظایفو د اجرا کولو په لاري کي د ډیرو ستونزو سره مخامخ وو ۰ چې د دغي نقیصي د رفع کولو له پاره ، هلته ضرورت احسا سیدې چې باید یو شمیر وکیلان یو د بل سره مفاهمه وکړي او په خینو مواردو کي خپل موقفونه سره نژدي کړي ۰

ددیارلسمي تقنیني دوري د لومړي اجلاس په سر کي خو وکیلانو د نورو وکیلانو سره خبري و کړي او دوی یي د ولسي جرګي دغي نقیصي ته متوجه کړل چې د دغو وکیلانو د هڅو په نتیجه کي ډیرو وکیلانو عملا د ولسي جرګي د کارونو په حساسو شیبو کي ګډ د ریخ غوره کړ ۰ په تدریج سره د دغه دریخ وکیلان مخ پر ډیریدو سول زما په تخمین د دغه روش د خاوندانو شمیر تر ۴۰ وکیلانو ډیر وو۰ د وکیلانو دغه روش ته د وکیلانو ګډ دریخ ویلای سو . دا یوه سیاسي ډله نه وه ، دوی کومه رهبري نه درلوده ، د هیواد د هیڅ حزب یا ټولني سره یي اړیکي نه درلودلي، دوی د سلطنت یا بل مقام څخه الهام نه اخستی ، دوی په کوم قوم یا سمت پوري تړلي هم نه وو ، بلکه دا دریخ د افغانستان د اکثرو ولایتونو د وکیلانو د مشترك تفاهم څخه جوړ سوی و ۰ دوی یو د بل سره تحریري یا شفاهي تعهد نه درلود ۰ د تصامیمو په وخت کي د دوی شمیر ثابت هم نه و ۰ په حقیقت کي دا د وکیلانو یوه داسي ټولنه وه چې د تصا میمو په وخت کي به یي ملي ګټي په نظر کي نیولي ۰ د هغو وکیلانو نومونه چې اکثرا به یي دغه دریخ غوره کاوه ، ددي کتاب په ضمیمه پاڼو کي مطالعه کولای سی ۰

دلته دا خبره د یادولو وړ بولم چې دا ملي دریخ یوه ځانګړي پدیده وه چې تر اومي دوري وروسته د افغانستان د شورا په تاریخ کي یي ساري نه دی لیدل سوی۰ د دغه دریخ وکیلانو په ولسي جرګي کي تخریبي فعالیت نه دی کړی ، دوی سالمه او آرامه پارلماني مبارزه کړي ده ، او هیڅکله یي د اکثریت د تصمیم په مقابل کي احتجاج نه دی کړی ۰ چرنګه چې دغه دریخ د شخصي ګټو د تامین له پاره نه و نیول

سوې نو د ولسي جرگي د وکيلانو تر منځ يي ډير صميميت پيدا کړ، د وکيلانو دغه صميميت د محمد موسي شفيق تر حکومت پوري چي تفصيل يي د کتاب پـه بلي برخي کي راغلی دی د وکيلانو تر منځ پاته سو٠دغه دريځ د افغانستان د پاچا او حکومت توجه هم ځان ته اړولي وه ، دلته ددي خبري يادول ضروري دي چي د سياسي ډلو د نمايندگانو څخه په انفرادي ډول يوازي عبدالرؤف بينوا او محمد اسحق عثمان په دغه دريځ کــي برخه درلوده ٠ د نورو ډلو استازو لکه مولوي محمد نبي محمدي ، حفيظ الله امين او ببرك کارمل په دغه دريځ کي برخه نه درلودله ، دوی به په ولسي جرگي کي د خپلو ډلو پالسي تعقيبوله ٠ د دغه دريځ د وکيلانو فعاليتونه د دي کتاب په مختلفو برخو کي ليکل سوي دي ، چي دلته د دغه دريځ د وکيلانو ځني اجراآت په لنډ ډول راوړل کيږي :

ـ د ولسي جرگي عمومي غونډي د دغه دريځ پر وکيلانو اعتماد وکړ، چي د مختلط کمسيون له پاره ټول لس غړي د دغه دريځ د وکيلانو څخه و ټا کل سول ، دغو وکيلانو په مختلط کمسيون کي د سياسي احزابو قانون ژر تصويب کړ او د ولسي جرگي له لاري څخه يي د پاچا توشيح ته وړاندي کړ ٠

ـ د دغه دريځ ( ١٣ ) وکيلان د تقنين د کمسيون غړي وو چي د شورا په تاريخ کي د اول وار له پاره دوی داوطلب سول چي په کمسيون کي به وړيا ډول د شپي له خوا کار کوي ٠ دوی څلور کاله د شپي له خوا کار کړی دی ، دوی د ولسي جرگي د موټرانو څخه استفاده و نه کړه ، دوی د دولت ډوډي و نه خوړله او د ولسي جرگي څخه يي اضافه کاري وانه خسته٠

ـ د دغه دريځ د وکيلانو په مرسته د نور احمد اعتمادي د حکومت څخه د استيضاح غونډه جوړه سوه ، چــي د بحث په نتيجه کــي ، حکومت ته پــه نه اعتماد بــدلــه سوه ٠

ـ د دغه دريځ وکيلانو د حکومت مخه ونيوله چي يوه وکيل ته يي جزايي دوسيه جــوړولــه ٠

ـ د دغه دريځ وکيلانو د صنعتي بانکونو د قانون پر ضد پراخه مبارزه و کړه ٠

ـ د دغه دريخ وكيلانو د لوړي او وچ كالي په وخت كي د ډاكټر عبدالظاهر د حكومت څخه د استيضاح د غونډي غوښتنه وكړه ، ولي د نصاب د نه پوره كيدو په وجه دغه استيضاح عملي نه سوه ٠

ـ د دغــه دريخ وكيلانو د هلمند د اويــو د معاهدي د تصويب پر ضد پــراخه مبارزه وكړه ٠

د دي مبحث په پاى كي بايد و ليكل سي چي د دغه دريخ په جوړولو كي د ولسي جرگي ډيرو وكيلانو برخه درلوده ، او زه په دي وياړم چي زه هم د دغه دريخ ملگرى وم او د دغه دريخ په ټولو مراحلو كي مي فعاله برخه اخستي وه .

محمدنذير كبير سراج په خپل اثر كي ليكلي دي چي محمد داود خان او د ده ملگرو د ولسي جرگي وكيلانو ته هدايت وركاوه چي په شورا كي بي نظمي راوړي ( ٧ ١ )

خرنگه چي په دغه كتاب كي به يي ولولې ، د ديارلسمي تقنيني دوري په څلورو كلونو كي په ولسي جرگي كي هيڅكله بي نظمي نه ده راغلي ٠ ولسي جرگي ته چي هر وخت فرصت ميسر سوې دې ، دوى خپل وظايف په عادي ډول سر ته رسولي دي چي په يوي غير حزبي جرگي كي تر دغه ښه نظم نه سي راتلاى ٠ تر كومه ځايه چي ماته معلومه ده محمد داود خان او د ده ملگرو په شورا كي هيڅ راز فعاليت نه درلود، او هر څه حادثي چي په ولسي جرگي كي پيښي سوي دي هغه ټول د وكيلانو خپل كار و او د محمد داود خان د كودتا سره يي هيڅ ارتباط نه درلود ٠ ما نه دي اوريدلي چي يوه ډله وكيلان د محمد داود خان كور ته ورغلي وي ٠ او يا په ولسي جرگي كي د يوي ډلي وكيلانو له خوا د ده دحكومتي دوري حمايه سوي وي ٠ يوازي دوو وكيلانو يو د كندهار د دوهمي حوزي وكيل حاجي محمد آصف پاس يوسفي او بل د فارياب د مركز وكيل محمد رحيم شيدا د اعتماد د رايو په وخت كي په خپلو خبرو كي د محمد داود خان ستاينه كړي ده٠

په ١٩٧٣ كال كي كله چي محمد داود خان كودتا وكړه د ولسي جرگي غړو د ننگرهار د كوچيانو د وكيل حاجي الله نظر خان په كور كي ، سره يو ځاى سول او

دوی په یوه لیك كي  محمد داود خان ته د نوي نظام مباركي و ويله ( ۱ ۸ )

تر كودتا یوه میاشت وروسته  ( خلگو ته خطاب ) په وینا كي محمد داود خان دولسي جرگي پر ټولو غړو باندي كلك انتقادونه وكړل چي د ده دغه  منفي نظر دا په اثبات رسوي چي ده د ولسي جرگي د غړو سره هیڅ ډول رابطه نه درلوده ٠

څرنگه چي ډیرو افغانانو ته معلومه ده  محمد داود خان او د ده ملگرو یوازي په شاهي اردو كي فعالیت درلود ،  دوی د شاهي اردو كښته رتبه صاحب منصبان د كودتا له پاره  تشویق كړي وو ، چي د هغو په مرسته دوی كامیابه كودتا وكړه ٠

محمد نبي عظیمي په خپل اثر كي لیكلي دي چي  د دیارلسمي تقنیني دوري د ولسي جرگي په پارلماني مبارزاتو كي حفیظ الله امین په هغه چپ فركسون كي برخه درلوده چي ببرك كارمل د هغه فركسون په سر كي و ( ۱ ۹ )

تر كومه ځایه چي ماته معلومه ده د دغي دوري په ولسي جرگي كي داسي یو فركسون موجود نه و چي ببرك كارمل د هغه په سر یا په پای كي واقع وي٠ دولسي جرگي ټول وكیلان په دي خبر دي چي په ولسي جرگي كي حفیظ الله امین او ببرك كارمل هیڅ وخت پر یوي  لاري نه دي تللي او دوی به همیشه د نورو وكیلانو په مخ كي یوه بل ته  ډیري بدي  خبري كولي ٠ دوی د ولسي جرگي په تالار كي حتي نژدي هم نه سره كښینستل ٠ كارمل  په ولسي جرگي كي همیشه پر هغي چوكي باندي  كښینستې چي په دوولسمي دوري كي ، دې  په هغي چوكي كي وهل سوی و، دغه چوكي د تالار د كیڼ اړخ د اتم قطار وروستي چوكي وه ، او دتالار فرعي لاري ته ډیره نژدي وه چي  په بحراني حالاتو كي د تالارڅخه د وتلو له پاره مساعد ځای و ، ولي حفیظ الله امین د ناستي ټاكلې ځای نه درلود ٠

## ۷ ـ د نور احمد اعتمادي سره كتنه

د دیارلسمي تقنیني دوري په سر كي پاچا د دوهم وار له پاره نور احمد اعتمادي د حكومت په جوړولو مؤظف كړ٠

پخوانیو صدر اعظمانو ډاكټر محمد یوسف او محمد هاشم میوندوال د اعتماد

درایو له پاره د وکیلانو څخه د لیدو غوښتنه کوله او د دوی محلي ستونزي به یي اوریدلي ، ولي د نور احمد اعتمادي له پاره په خپله پاچا وکیلانو ته توصیه کوله چي د نور احمد اعتمادي سره لازمه مرسته وکړي ۰

نور احمد اعتمادي د پارلماني ریاست له لاري څخه وکیلانو ته اطلاع ورکړه چي که وکیلان غواړي چي د ده سره و ویني ، دی حاضر دی چي ورسره وګوري ۰

خبر نه یم چي څو وکیلانو د نور احمد اعتمادي سره لیدي دي ، خو زه د مؤظف صدراعظم لیدلو ته نه یم ورغلی ۰ د اعتماد د رایو په ورځو کي نور احمد اعتمادي او زه د ولسي جرګي په دهلیز کي سره مخامخ سوو ، هلته ده غوښتنه وکړه چي د ده سره و وینم۰ زه هم په هغه شپه د ده دقرغي کور ته ورغلم۰ ده په دغي لیدني کي د شورا یا د هیواد پر مسایلو باندي زما سره خبري و نه کړي او ده د اعتماد رایه ، زما څخه و نه غوښتله ۰ خو پوښتنه یي وکړه چي تا په ولسي جرګي کي څــه ویلــي دي چي ستانوم هر ځای اخستل کیږي ؟

ما ده ته په جواب کي و ویل چي تر اوسه ولسي جرګي په کار پیل نه دې کړې چي د یوه وکیل په وینا څوك خبر سي ۰ زما د نامه یادیدل به بل علت لري . ده و ویل چي پاچا څو واره ستا په ارتباط زما څخه پوښتني کړي دي ۰

ما نور احمد اعتمادي ته وویل چي ما د افغانستان د جنوب غربي ولایتونو په یوي غونډي کي صرف دومره ویلي دي چي د اساسي قانون د حکم مطابق د ولسي جرګي د رئیس ټاکل باید د شورا تر پرانستلو وروسته وشي او هغه قانوني اشتباه چي په دوولسمي تقنیني دوري کي د ډاکټر عبدالظاهر د ټاکلو په وخت کي شوي وه ، هغه اشتباه باید بیا تکرار نه سي ۰ ما داهم و ویل چي زموږ په دیموکراسي نظام کي آیا دولت د یوه قانوني تخلف د مخنوي تحمل هم نه لري ؟

ده زمــا پــه جواب کــي و ویـل چـي (( اوس موږ په دغي برخي کي ډیر مشکلات لــرو )) خو ده خپله دغــه خبره نـوره تشریح نـه کړه ، زمــا او د ده کتنه تر څو معمولي او تشریفاتي خبرو وروسته پــای تــه ورسیده .

زما ددغي وینا په وجه د ولسي جرګي د ریس ټاکل کیدل د څو ورځو له پاره وه

خنډيدى . په دوولسمي تقنيني دوري كي د اساسي قانون د حكم پر خلاف ، د سري رايي پر ځاى ، وكيلانو په علني ډول يعني د لاسونو په پورته كولو سره ، ډاكټر عبدالظاهر د ولسي جرګي د ريس په حيث ټاكلى وو .

د افغانستان پاچا او حكومت دا بيره درلوده چي كه د ولسي جرګي د رئيس ټاكل كيدل ، ځو ورځي و ځنډيږي او د شورا تر پرانستلو وروسته وسي ، نو د كابل منورين به وكيلان تنوير كړي او محمد عمر وردګ به د ولسي جرګي د رياست له پاره ډيري رايي وانه خلي ، او د ولسي جرګي د رياست له پاره ، دوهم كانديد انجينر غلام محمد فرهاد به د ولسي جرګي رئيس سي٠

د نور احمد اعتمادي حكومت ته د اعتماد د رايي د اظهار په ورځ زه د ولسي جرګي په تالار كي حاضر نه وم او زه د خپل ورور اروانښاد عبدالرزاق فراهي د جنازي سره فراه ته تللي وم ٠ ( ٢٠ )

## ٨ ـ د ولسي جرګي اداري هيأت

د اساسي قانون مطابق ولسي جرګه د شورا تر پرانستلو وروسته خپل اساسي كارونه پيل كوي چي د جرګي لومړني اساسي كار د اداري هيأت ټا كل دي٠

هغه وخت چي ډاكټر محمد عمر وردګ د كورنيو چارو د وزارت ځخه استعفا وكړه او د ( چك ) په ولسوالي كي د وكالت له پاره كانديد سو ، د افغانستان ډير خلګ په دي پوهيدل چي دى د ولسي جرګي راتلونكې رئيس دى ٠

په سر كي د ولسي جرګي د رياست له پاره د پنځو كانديدانو لكه انجينر غلام محمد فرهاد ، ډاكټر محمد عمر وردګ، عبدالرؤف بينوا ، عزيزالله واصفي او محمد اسحق عثمان نومونه ياديدل ، ولي په آخر كي يوازي انجينر غلام محمد فرهاد او ډاكټر محمد عمر وردګ د دغي جرګي د رياست له پاره كانديد سول ٠

د اداري هيأت نورو مقامونو ته ډير شمير نور وكيلان كانديد سوي وو ٠ د

افغانستان د جنوب غربي سيمو څخه هم څو وکيلانو د اداري هيأت چوکيو ته خانونه کانديد کړي وو ، چي د دوی په ابتکار د زابل ، اروزگان ، کندهار ، هلمند ، فراه ، نيمروز ، ،هرات ، بادغيس او غور د ولايتونو وکيلانو په ولسي جرگي کي يوه غونډه وکړه ۰ کانديدانو د دغي سيمي وکيلان ، اتحا د او يووالي ته د دي له پاره هڅول چي دوی ته خپله رايه ورکړي ۰ ما په دغي غونډي کي و ويل چي د اساسي قانون د٦٠ مي مادي د حکم پر اساس د ولسي جرگي اداري هيأت ، د پاچا له خوا د شورا تر پرانستلو وروسته بايد وټاکل شي ، او هغه اشتباه چي دولسمي تقنيني دورې د ډاکټر عبدالظاهر د ټاکلو په وخت کي کړي وه ، بايد بيا تکرار نه سي . د دغه پيشنهاد پر اساس د اداري هيأت د ټاکلو کار څو ورځي وځنډيدی ۰

د ١٩٦٩ کال د اکتوبر د مياشتي پر ١٤ نيټي ، شورا د پاچا له خوا پرانسته سوه او د شورا تر پرانستلو وروسته د ولسي جرگي د اداري هيأت ټاکل پيل سوه ۰

د ولسي جرگي د رياست له پاره ډاکټر محمد عمر ورد گ ٧٢ رايي او انجينر غلام محمد فرهاد ۳۰ رايي وړي وي چي محمد عمر وردگ د ولسي جرگي د رئيس په حيث و ټاکل سو ۰ ما خپله رايه انجينير غلام محمد فرهاد ته ورکړي وه ۰

د اداري هيأت نور غړي په لاندي ډول وو :

د کندهار د ډنډ دحوزي وکيل عبدالاحد کرزی ، لومړی نايب

د بغلان د دوشي د حوزې وکيل سيد ناصر شاه نادري ، دوهم نايب

د هلمند د لښکرگاه د حوزي وکيل سيد مبين شاه امير ، منشي

د کندز د خان آباد د حوزي وکيل سيد امير ، دوهم منشي

نور احمد اعتمادي ما ته د خارجه وزارت د يوه مامور په وسيله خبر راکړ چي که زه د ولسي جرگي د دارالانشا د مقام له پاره خان کانديد کړم ، د ده حکومت به زما سره مخالفت و نه کړي ۰ ولي ما د دغه کار څخه ډډه وکړه ۰ ( ٢١ )

که څوك د ولسي جرگي په داخلي چارو خبر وي نو په دي خبره ډير ښه پوهيږي چي په ولسي جرگي که د حکومت د مقا مونو بر عکس ، هغه وکيل د ډير واك خاوند او د وکيلانو د اعتماد وړ وي چي په اداري کوم مقام کي نه وي راغلی او د پاچا او

حکومت سره ډیر تماس و نه لري ۰ ولي د اداري هیأت غړي مجبور دي چي حکومت او پاچا دواړو ته ځیني مشوري ورکړي ، په دغه دلیل دوی ډیر بي واکه او همیشه د وکیلانو تر فشار لاندي وي ۰

د دوولسمي تقنیني دوري د ولسي جرگي رئیس ډاکټر عبدالظاهر چي یو مدبر افغان و ، ده د هغه وخت حکومت ته ویلي و چي دی هیڅکله یوه وکیل ته د کوم کار سپارښتنه نه سي کولای ، دا د حکومت کار دې چي په خپلو ذرایعو مخصوصا د پارلماني ریاست له لاري ځخه په وکیلانو خپل د خوښي کارونه اجرا کړي ۰ او د ولسي جرگي رئیس باید د وکیلانو کومي جناح ته منسوب نه وي ، او دی باید یوازي د ولسي جرگي غونډي اداره کړي۰

زه د دیارلسمي تقنیني دوري په ولسي جرگي کي تر پایه د یوه آزاد وکیل په حیث پاته سوم او د ځینو ملي وکیلانو په څنگ کي مي د ولسي جرگي په ځینو اساسي کارونو کي فعاله برخه اخستي ده .

## ۹ ـ د صنعتي بانك د قانون سره وکیلان مخالف وو

د صنعتي بانك له پا ره د یوه مستقل قانون د جوړولو کار د دوولسمي دوري په ولسي جرگي کي پیل شوې و ۰ د دغه قانون د انفاذ سره د نور احمد اعتمادي د لومړي حکومت یو مهم غړې او د ولسي جرگي ځیني وکیلان مخالف وو ۰ د دوی د مخالفت په وجه نوموړی قانون په دوولسمي تقنیني دوري کي تصویب نه سو او دغه قانون د دیارلسمي تقنیني دوري غاړي ته ور ولویدی ۰

زه دلته د دي قانون پر ضرورت یا مفیدیت باندي بحث نه کوم ، زه صرف هغه جریان لیکم چي د دیارلسمي تقنیني دوري په وخت کي په سلطنت ، شورا او حکومت کي پر دغه قانون باندي پیښ شوې دې۰

په ۱۹۷۰ کال کي د تقنین په کمسیون کي پر دغه قانون باندي بحث پیل سو ، د کمسیون په غونډي کي د کمسیون د یوه غړي محمد اسحق عثمان د اعتراض په وجه ،

دغه مسوده بيرته حکومت ته د دي له پاره واستوله سوه چي حکومت د يوه عمومي قانون مسوده جوړه ، او بيرته يي ولسي جرگي ته وړاندي کړي ۰

پاچا په هغي ليدني کي چي د فراه او نيمروز د وکيلانو او سناتورانو سره د ديني علماوو د اعتصاب په ار تباط درلوده د خپلو خبرو په ضمن کي و ويل (( د ولسي جرگي يوه کمسيون د صنعتي بانك قانون رد کړي دی. چي بايد د ولسي جرگي کمسيون دغه کار نه وای کړی ۰ ))

ما د پاچا څخه د خبرو اجازه و غوښته او ما پاچا ته و ويل چي ، زه دهغه کمسيون غړی يم چي اعيحضرت اشاره ور ته وکړه ، ما پاچا ته وويل چي د تقنين کمسيون حکومت ته ويلي دي چي صنعتي بانك يو شرکت دی چي په سلو کي ٤٩ پانگه د يوه خارجي هيواد ده او په افغانستان کي سابقه نه لري چي شورا د يوه شرکت له پاره جلا قانون جوړ کړی وي ، اوس که شورا دغه کار وکړي ، نور شرکتونه د مثال په توگه د بوت آهو شرکت به هم د يوه جلا قانون غوښتنه وکړي ۰ په دغه دليل د تقنين کمسيون د حکومت څخه د يوه عمومي قانون د مسودي غوښتنه کړي ده ۰

پاچا زما په جواب کي و ويل (( د دغه قانون په مورد کي د حکومت دلايلو زه نه يم قانع کړی ، ما ډاکټر عبدالصمد حامد ته وظيفه ورکړي ده چي د شورا او حکومت سره خبري وکړي او خپل د مطالعاتو راپور ما ته وړاندي کړي . ))

ډاکټر عبدالصمد حامد د تقنين د کمسيون او حکومت سره خبري وکړي او ده پاچا ته اطلاع ورکړه چي د شورا موقف قانوني دی او حکومت بايد د قانون يوه عمومي مسوده جو ړه او شورا ته يي وړاندي کړي ۰

حکومت د صنعتي بانکونو په نامه يوه مسوده چي مشخص صنعتي بانك د هغه يوه برخه وه ، جوړه او شورا ته يي وړاندي کړه ، او حکومت د عدليي وزير عبدالستار سيرت د ماليي وزير ډاکټر محمد امان او د پلان وزير ډاکټر عبدالواحد سرابي وټاکل چي په ولسي جرگي کي د کمسيون د غړو سره يو ځای پر نوي مسودي باندي غور وکړي .

وزيرانو او د تقنين غړو ځو ميا شتي پر نوي مسودي کار وکړ ، چي په لړ

تعديل سره د حكومت پيشنهاد سوي مسوده د كمسيون د غړو له خوا و منله سوه ۰

يوازي پر لاندي دروو ټكو باندي د كمسيون د غړو او وزيرانو تر منځ توافق را نه غي :

ـ د كمسيون غړو وزيرانو ته پيشنهاد و كړ چي د افغانستان د ملي ګټو د ساتلو له پاره بايد په دغه قانون كي په دي مفهوم يوي مادي ته ځاى وركړه سي چي (( كه دغه بانك د افغانستان په كورنيو چارو كي مداخله كوله ، حكومت مكلف دى چي د دغه بانك وظايفو ته په افغانستان كي خاتمه وركړي )) خــو وزيرانــو د دغــه پيشنهاد سره موافقه و نــه كــړه .

ـ د تقنين غړو د حكومت د پيشنهاد شــوي مسودي د لانــدي دوو ټكو سره موافقه نه درلوده ۰

١ ـ په مسودي كي ليكل سوي وو (( هغه پورونه چي دغه مشخص بانك د خارجي هيوادونو څخه اخلي ، د افغانستان حكومت د دغو پورونو د تاديي ضامن دى ))

٢ ـ په مسودي كي داهم ليكل سوي وو ( د دغه بانك د پورونو تصويب د شورا پر ځاى د حكومت له خوا كيږي ، او حكومت به په مناسب وخت كي د دغه بانك د پورونو ليست شورا ته وړاندي كوي ))

لانــدي وكـيـلان د تـقـنـيـن د كمسيــون غــړي وو :

د موسي كلا د حوزي وكيل عبدالرؤف بينوا ، د ارغنداب د حوزي وكيل عزيزالله واصفي ، د كابل د لومړي او دوهمي ناحيي وكيل محمد اسحق عثمان ، د بدخشان د جرم دحوزي وكيل محمد هاشم واسوخت ، د لغمان د مركز د حوزي وكيل عبدالكريم عمر خيل ، د اندړو د حوزي وكيل يار محمد دليلي ، د هلمند د بلوخو د حوزي وكيل عبدالحميد زهري ، د غزني د ناوي د حوزي وكيل محمد هاشم تره كي ، د كټواز د حوزي وكيل عبدالحبيب كټوازي ، د حصارك د حوزي وكيل حاجي عبدالوهاب ، د شكردري د حوزي وكيل سيد ظاهر شاه ، د پښتون زرغون د حوزي وكيل محمد علي قاضي زاده ، د خوست د حوزي وكيل شير احمد خوستى ، د چاه آب د حوزي وكيل محمد علم فيض زاد ، د سروبي د حوزي وكيل مولوي امير محمد ، د دوشي د حوزي وكيل سيد ناصر شاه نادري ، د پروان د مركز د حوزي وكيل عبدالمهيمن ، د بګراميو

د حوزي وكيل عبدالرسول بره كي ، د بالابلوك د حوزي وكيل عبدالغفار فراهي ، دوه يادري نور وكيلان چي نومونه يي زما په ياد نه دي ۰

په ۱۹۷۰ كال د شورا د دوهم اجلاس په سر كي دولسي جرگي رئيس ډاكټر محمد عمر وردگ د تقنين كمسيون ته اطلاع وركړه چي پاچا امر كړى دى چي د صنعتي بانكونو د قانون هغه مسوده چي د كمسيون غړو او وزيرانو په گډه جوړه كړي وه ، ډير ژر په كمسيون كي تصويب كړي او د ولسي جرگي عمومي غونډي ته دي وړاندي كړي ۰ د تقنين د كمسيون غړو د شپي له خوا هم په كمسيون كي كار كاوه ، چي د پاچا د امر پر اساس د تقنين كمسيون دغه مسوده د هغي شپي په غونډي كي تر بحث لاندي و نيوله او دوى د كمسيون پخواني د اختلاف دري ټكي د خپلي خوښي مطابق په تصويب ورسول ، د كمسيون غونډه د شپي پر ۱۲ بجو پاى ته ورسيده ۰

سبا سهار پر شپږو بجو ډاكټر محمد عمر وردگ مـا تـه پـه تليفون كـي و ويل چي (( پاچا امر كړې دې چي د تيري شپي تصويب سوې قانون بايد په كمسيون كي وځنډول سي ، او د ولسي جرگي عمومي غونډي ته ژر وړاندي نه سي ۰ ځكه چي پاچا غواړي چي پر همدغه قانون باندي د تقنين د غړو سره خبري وكړي ))

ما ډاكټر محمد عمر وردگ ته و ويل چي د كمسيون د تيري شپي تصويب په كمسيون كي نور كار هم لري ، چي لومړې دا قانون د تصويباتو په كتاب كي ليكل كيږي او وكيلان هغه لاس ليك كوي ، بيا وروسته د دغه قانون يو نقل دارالانشأ ته ليږل كيږي ۰ په آخر كي ما د ډاكټر محمد عمر وردگ څخه دغه دوي پوښتني وكړي :

۱ ـ تاسي د صنعتي بانكونو د قانون په ارتباط د پاچا هدايات ولي د كمسيون رئيس عبدالرؤف بينوا ته نه وايا ست ؟

ده زما په جواب كي و ويل چي (( عبدالرؤف بينوا په جلال آباد كي دې ، د ننگرهار والي ته امر سوې دې چي بينوا ډير ژر كابل ته حاضر كړي ))

۲ ـ تيره شپه د تقنين كمسيون د شپي پر ۱۲ بجو د صنعتي بانكونو قانون تصويب كړ، آيا په دغه شپه چا د كمسيون اجراآت پاچا ته رسولي دي ؟

ده زما په جواب كي و ويل چي (( د قانون د تصويب په وخت كي هغه وكيل چي د

غونډې څخه دباندې بخا رې ته نژدې ناست و ، هغه وکيل په دغه شېپه پاچا ته دغه خبر رسولې دې )) په هغه شپه د کندهار يو وکيل چي د کمسيون غړې نه و ، په کمسيون کي بخاري ته نژدې ټوله شپه ددې له پاره ناست و چي د قانون د تصويب اطلاع پاچا ته ورسوي ۰

ما اوريدلې دې چي محمد ظاهر شاه په افغانستان کي هره شپه تر دوو بجو ويښ پاته کيدی ، او دی هره شپه صرف څلور ساعته بيده کيدی ، نو که دغه وکيل د شپې پر دوولسو بجو دغه اطلاع پاچا ته رسولې وي ، نو ده پاچا ته کوم خاص مزاحمت نه دی پيښ کړی .

سهار پر نهو بجو چي د عبدالرؤف بينوا په شمول د کمسيون غړي په غونډه کي حاضر سول ، ډاکټر محمد عمر وردگ پر کاغذ ليکلې شوې يو مطلب عبدالرؤف بينوا ته وروا‌ستاوه ، چي ده بيا هغه کاغذ ما ته راکړ ۰ پر کاغذ ليکل شوي وو (( پاچا امر کړی دې چي نن شپه عبدالرؤف بينوا ، عزيز الله واصفي او عبدالغفار فراهي بايد شاهي ارگ ته ورسي )) ما د هغه کاغذ پر شا ډاکټر محمد عمر وردگ ته و ليکل چي ، که پاچا دغه دري وکيلان د صنعتي بانکونون د قانون په ارتباط غوښتي وي ، څرنگه چي د قانون موضوع د کمسيون په ټولو غړو پوري اړه لري ، نو دغه دري وکيلان خو څه نه سي کولای )) څو دقيقي وروسته بله پرزه کاغذ چا راوړه چي پــه هغي کــي ليکل سوي و چي (( پاچا نن شپه پر اتو بجو د کمسيون ټول غړي شاهي ارگ ته ورغوښتي دي ))

په ارگ کي د پاچا په حضور کي د حکومت وزيرانو عبدالستار سيرت او ډاکټر محمد امان او د کمسيون غړو د صنعتي بانکونو پر قانون خبري پيل کړي ۰ د غونډې په سر کي عبدالرؤف بينوا ، محمد اسحق عثمان او عبدالکريم عمر خيل ، د دغه قانون د کار پر پخوانيو مراحلو رڼا واچوله ، وروسته پاچا د تقنين د کمسيون پر پيشنهاد سوي موضوع باندي چي (( د ملي گټو د ساتلو له پاره بايد په دغه قانون کي يوې مادې ته ځای ورکړه سي )) وويل (( په فرعي قوانينو کي بايد داسي يوه ماده را نه سي او زه هيله کوم چي دغه موضوع د دغه قانون څخه حذف کړه سې ))

په دي هکله چي د افغانستان حکومت  باید د صنعتي بانك د پورونو ضمانت وکړي یوه وزیر و ویل  (( دغه قید د پور ورکونکو هیوادونو غوښتنه ده  )) د دوهم ټکي په ارتباط چي د دغه بانك پورونه د شورا پر ځای باید حکومت تصویب کړي ، یوه وزیر وویل  (( څرنګه چي په شورا کي د پورونو تصوییبدل ډیر ځنډیږي ، نو دغه صلاحیت باید حکومت  ته ور کړه سي  ))

د بحث په جریان کي سید ظاهر شاه پاچا ته و ویل چي که موږ ته اجازه راکړه سي چي شورا ته ولاړ سو ، هلته به دغي معضلي ته د حل یوه لاره پیدا کړو ۰ پاچا و ویل چي ارګ هم ستاسي ځای دی او دلته باید خبري وکړې ۰ حاجي عبدالوهاب پاچا ته وویل چي اعلیحضرته ! موږ ستاسي څخه بیریږو او هم ستاسي څخه شرمیږو ، تاسي تشریف یوسې ، موږ او حکومت به سره جوړ سو ۰ په دغه اساس  پاچا دهغي خوني څخه و وتې او وکیلانو د پاچا په احترام د حکومت پیشنهاد سوې متن و مانه ۰ او تر پووړې خوړلو وروسته  وکیلان د شاهي ارګ څخه و وتل ۰

د ولسي جرګي په عمومي غونډي کي د صنعتي بانکونو قانون د ولسي جرګي د ډیرو غړو له خوا تر جدي بحث او انتقاد لاندي راغی ۰ څرنګه چي د دغه قانون سره د افغانستان د غربي سیمو وکیلانو ، تر نورو ډیر مخالفت کاوه ، پاچا ته ځینو وکیلانو اطلاع ورکړه چي فراهي په عمومي غونډي کي د دغه قانون د تصویب مانع دی ۰

پاچا خپل سریاور جنرال محمد عمر خان ته ویلي و چي (( ماته وکیلانو اطلاع راکړي ده چي فراهي په عمومي غونډه کي د صنعتي بانکونو د تصویب مانع دی ، فراهي ته و وایه چي د څو ورځو له پاره ولسي جرګي ته ولاړ نه سي )) ما د پاچا امر و مانه او فراه ته ولاړم ، چي زما په غیاب کي هم پر دغه قانون باندي ډیر انتقادونه کیدل او د قانون تصویب د ډیر وخت له پاره وځنډیدې۰

ما په عمومي غونډي کي د صنعتي بانکونو د قانون د تصویب سره مخالفت نه دی کړی ، د دغه قانون سره د وکیلانو ډیر مخالفت دوه عمده علتونه درلوده ۰

۱ ـ د ولسي جرګي ټول غړي په دي خبر سول چي د کمسیون غړو د دغه قانون د څو ټکو سره موافقه نــه درلوده ، ولـي دوی د پاچا په احترام ، د خپل موقف څخه

اوښتـــي دي ۰

۲ ـ وکیلان په دي هم خبر سوه چي د کمسیون غړو د پاچا په مستقیم خواهش تر خپل موقف تیر سوي دي ، او دوی په هغه شپه پر سلطنتي میز باندي ډوډي خوړلي وه و کیلانو دا آرزو درلوده چي پاچا د دوی څخه هم د دغه قانون د تصویب غوښتنه وکړي او دوی داسي تصور کاوه چي دوی ته په سپکه سترگه کتل سوي دي ۰

وروسته ولسي جرگي او مشرانو جرگي دغه قانون تصویب کړ ۰

په ولسي جرگي کي د پاچا مشاورینو پاچا ته سمه مشوره نه ورکوله او دوی به د سلطنت مقام پر غیرو واقعي لارو استعمالاوه ، چي د دغي لاري څخه د سلطنت مقام ته لویه صدمه رسیده ۰ د پاچا دغو مشاورینو د شاهي ارگ د متصدیانو په مرسته د پاچا دربار انحصار کړې و ۰ دوی پاچا ته د سالمو مشورو لاره هم تړلي وه چي دا فاسده عنعنه محمد موسي شفیق ماته کړه ، ده په خپله د پارلماني ریاست دنده پر غاړه واخسته او ده پارلماني ریا ست د شورا په څنگ کي د تجارت د وزارت عمارت ته انتقال کړ ، چي تر هغه وروسته د دسیسو لاره و تړله سوه او د شورا ټول کارونه په خپل اصلي مجرا کي ولویدل . ( ۲۳ )

## ۱۰ ـ حکومت د احزابو د قانون سره مخالف و

د ډاکټر محمد یوسف انتقالي حکومت د سیاسي احزابو د قانون مسوده جوړه کړه او د تصویب له پاره یي دوولسمي تقنیني دوري ولسي جرگي ته وړاندي کړه ۰

په ۱۹٦٥ کال کي د احزابو قانون د ولسي جرگي له خوا تصویب سو، ولي مشرانو جرگي د دغه قانون یوه ماده تعدیله کړه ۰

په ۱۹۷۰ کال کي دیارلسمي تقنیني دوري ، د اساسي قانون د ۷٤ مادي د حکم پر اساس ، د دواړو جرگو د اختلاف د ټکو د حل له پاره یو مختلط کمسیون جوړ کړ ، چي د دغه کمسیون له پاره د هري جرگي څخه لس لس غړي و ټا کل سول ۰

څرنگه چي په دیموکراسۍ دوره کي د اول وار له پاره په ولسي جرگي کي د مختلط

کمسیون له پاره انتخابات کیدل ، او په دغه کمسیون کي مهم قوانین لکه د احزابو ، انتخاباتو ، ښاروالیو او د مخکو د سروي د قوانینو د اختلاف ټکي په تصویب رسیدل ، نو د دغه کمسیون د غړیتوب له پاره ، تر شلو ډیرو وکیلانو خانونه کاندید کړي وو ۰

ما د ګډ دریځ دلسو ملګرو وکیلانو دنومونو یولست جوړ کړ او پر ټولو وکیلانو مي وویشې ، او د دوی څخه مي غوښتنه وکړه چي که زموږ کاندیدانو ته خپله رایه ورکړي کله چي د انتخاباتو نتایج اعلان سوه ، د ولسي جرګي هر لس نمایندګان زموږ د تقنین د کمسیون ملګري او د دارالانشا آمر سید مبین شاه امیر ، د مختلط کمسیون له پاره انتخاب شوي وو . دلته د یادولو وړ بولم چي په دغو انتخاباتو کي سید مبین شاه امیر عزیزالله واصفي او عبدالغفار فراهي هر یوه تر سلو ډیري رایي وړي وي . د تقنین د کمسیون د غړو نومونه د مخه ذکر شوي دي ، د مشرانو جرګي استازي دادي : ډاکټر محمد انس خان ، سید شمس الدین مجروح ، قیام الدین خادم ، محمد هاشم مجدیدي ، حبیب الله هلمندي ، محمد امین خوګیاڼي ، ډاکټر عبدالقیوم رسول ، شیر محمد خان ، میر محمد شاه صدیقیان او حاجي محمد ځمکنې ۰

مختلط کمسیون په خپلي لومړي غونډي کي عبدالکریم عمر خیل د رئیس په حیث او محمد هاشم مجددي او وروسته حبیب الله هلمندي د منشیانو په توګه و ټاکل ۰

دغه کمسیون په خپلو لومړنیو غونډو کي د سیاسي احزابو د قانون د اختلاف ماده په تصویب ورسوله ۰

څرنګه چي په اساسي قانون یا د دواړو جرګو په طرزالعملونو کي د مختلط کمسیون د فیصلو مرجع نه وه تعین سوي ، نو کمسیون فیصله وکړه چي خپلي فیصلي به د پاچا دتوشیح له پاره د سلطنت دارالانشا ته وړاندي کوي۰ ولي د مختلط کمسیون د دغي فیصلي سره د نور احمد اعتمادي حکومت داسي عکس العمل ښکاره کړ ۰

نور احمد اعتمادي د مشرانو جرګي غړي په پغمان کي میلمانه کړه ، په دغي میلمستیا کي صدر اعظم دوی ته و ویل (( په مختلط کمسیون کي د ولسي جرګي تندروه وکیلان غواړي چي پر پاچا باندي فشار راوړي چي دی د احزابو قانون توشیح کړي ولي زه د حکومت د مسؤول په حیث د احزابو د قانون نافذیدل veto کوم او د

پاچا ځخه به و غواړم چي دغه  قانون توشيح نه کړي  ))

بله ورځ د مختلط کمسيون په  غونډي کي د مشرانو جرگي غړو مخصوصا حاجي محمد ځمکني په شدت سره د کمسيون پر پخوانۍ فيصلي باندي اعتراض وکړ ، د دغه اعتراض په وجه د کمسيون ټول غړي  تر خپلي پخوانی فيصلي تير سول  او د کمسيون فيصلي ولسي جرگي ته و سپارلي سوی . ( ٢٤ )

رشتيا ليکي چي محمد هاشم ميوندوال د خپل صدارت په وخت کي ده ته ويلي و چي  د نوي اساسي قانون يوه خلا داده  چي د شورا تر انتخاباتو دمخه يي د احزابو د جوړولو  غوښتنه نه وه کړي .  ( ٢٥ )

ډاکټر محمد يوسف په خپلي يوي مصاحبي کي ويلي دي چي (( پاچا ځکه د احزابو قانون توشيح نه کړ چي دی بيريدی چي که په هيواد کي سياسي احزاب جوړ سي ، نو دغه احزاب به د ده ځخه قدرت واخلي )) دې زياتوي چي (( پاچا قوي اراده نه لري  او د خلگو د خبرو تر تاثير لاندي راځي  ))  ( ٢۶ )

د اساسي قانون ٣٢ مه ماده د سياسي احزابو په برخه کي داسي حکم کوي :

١ ـ د حزب د بنيادي فعاليتونو اهداف او مفکوري بايد د اساسي قانون د مندرجاتو سره تناقض ونه لري .  ٢ ـ د حزب تشکيلات او مالي منابع بايد علني وي .

د افغانستان پاچا په نامعلوم علت د خپل سلطنت تر پايه د احزابو قانون توشيح نه کړ په داسي حال کي چي د کيڼ او ښي اړخ د مفکورو خاوندانو د قانون مطابق نه سو کولای چي په هيواد کي د سياسي فعاليت اجازه تر لاسه کړي .

رشتيا ليکـي چـي  پـه  ١٩٦٤ کال کي د افغانستان پاچا د امريکا د جمهور رئيس John F. Kenney پـه بلنه امريکا تـه رسمـي سفر وکـړ٠ کيندي پاچا ته ويلي و چي (( د ديموکراسۍ د تطبيق په لاره کي جدي خطرونه او مشکلات سته ، چي تاسي بايد په دغي لاري کي په کراره گام کښيږدی ))  دی زيـاتوي  چــي (( د ديـموکـراســۍ د تطبيق په جريان کـي د پـاچـا تـرحـد زيـات احتيا ط  ښـايـي د دغـه ملاقـات ځخه منشأ اخستي وي ))دی ليکي (( په بل ملاقات کي چي د پاچا او کيندي تر منځ و سو ، يوازي زلمې محمود غازي د ترجمان په حيث برخه درلوده او د دغــه

ملاقات څخه ، هيڅ رسمي يادداشت نه دې اخستل شوی ))دی ليکي (( په دغه ملاقات کي شايد کيندي د پاچا څخه په افغانستان کي د اوضاع د کنترول له پاره د سي٠ آی٠ ای د فعاليت اجازه غوښتي وي )) دی د ډاکټر محمد يوسف له قوله ليکي چي (( تر دغه ملاقات پنځه کاله مخکي امريکايانو د محمد داود خان څخه هم دا سي يوه غوښتنه کړي وه ، ولي په هغه وخت کي محمد داود خان د امريکايانو دغي غوښتني ته جواب نه و ويلې ، چي شايد اوس به بيا امرکايانو خپله پخوانې غوښتنه تکرار کړي وي )) ( ٢٧ )

## ١١ ـ حکومت د وکيلانو د مصونيت حدود ټاکل

په ١٩٦٩ کال کي حکومت د کټواز د کوچيانو وکيل عبدالرزاق په دي متهم کړ چي ده کومه ښځه د خانه سره د کانتيننتل هوټل ته بيولي وه ٠ چي په دغه اتهام امنيتي افرادو دی د کابل په ولايت کي تر نظارت لاندي نيولی و او په هغه شپه دغه وکيل د کابل د ولايت څخه وتښتيدې او دی د حکومت تر تعقيب لاندي و ٠

د کټواز وکيل او حکومت دواړو ولسي جرگي ته د دغي حادثي اطلاع ورکړه ، وکيل ادعا کوله چي د کابل امنيه قوماندان جنرال عبدالحکيم کټوازی دده شخصي دښمن دی او دغه موضوع د هغه له خوا ده ته جوړه سوي ده ٠ خو حکومت ادعا کوله چي د ولسي جرگي يوه غړي مشهود جرم کړې دې او د حکومت تر عدلي تعقيب لاندې دی او ولسي جرگه بايد د اساسي قانون د ٥٠ مي مادي د حکم مطابق د نوموړي وکيل پارلماني مصونيت سلب کړي څو حکومت د ده د جرم تحقيق وکړي ٠

عبدالرزاق د ولسي جرگي د دولسمي او دپارلسمي دورو د اعتماد درايو ورکولو په غونډو کي د حکومت پر اجراآتو انتقادونه کړي وو ، چي ښايي د ته دغه مشکلات دده د پارلماني موقف څخه پيدا سوي وي ٠ دغي حادثي د ډير وخت له پاره ولسي جرگه ، حکومت او حتي پاچا مصروف و ساتل ٠

وکيلانو سعي کوله چي دغه حادثه د مسالمت آميزي لاري څخه حل کړه سي ، په دغه اساس څو وکيلانو د ولسي جرگي د رئيس ډاکټر محمد عمر وردگ څخه غوښتنه

وکړه چي حکومت ته ووايي چي ددغه وکيل د تعقيب څخه لاس واخلي او د حکومت او ولسي جرگي اوسني ښه روابط خراب نه کړي ۰ د ولسي جرگي رئيس چي بي آلايشه سړی و ده په جواب کي وويل (( کله چي زه داخله وزير وم يوه شپه د دوولسمي تقنيني دوري څو وکيلانو د ء پلازا ء په هوټل کي د بزم يو محفل جوړ کړی و ، په هغه شپه ما ته امر وسو چي ددغه محفل حفاظت ددي له پاره وکړم چي د دغه محفل څخه کومه رسوايي پيښه نه سي ۰ ولي اوس په خپله حکومت دغي رسوايي ته لمنه وهي چي زه د حکومت په اوسني پالسۍ نه پوهيږم )) . په دغه ارتباط د کابل په سياسي حلقو کي ويل کيدل چي حکومت فيصله کړي ده چي يوه وکيل ته جزا ورکړي او په دغه طريقه نور وکيلان په دي و پوهوي چي د دوی د مصونيت حدود يوازي د دوی د وظايفو په ساحي کي تطبيق کيږي او په نورو ساحــو کــي دوی هــم لکه عــادي خلگ د جــرم په صورت کــي تر عـدلــي تعقيب لاندي راځــي۰

خينو باخبرو منابعو داهم ويل چي يوه مشابه حادثه په پاکستان کي يوسف خټك ته چي د پاکستان په پارلمان کي دعوامي ليگ د حزب مشر و هغه وخت پيښه سوي وه چي نور احمد اعتمادي په کراچي کي افغاني سفير و ۰ يوسف خټك د ډاکټر بلوچ د جرمني الاصلي ښځي سره متهم سو ، چي د ده د اتهام موضوع د ډير وخت له پاره د پاکستان په مطبوعاتو کي خپريده ۰ د دغو منابعو پــه عقيده ، ښايي د افغانستان حکومت به په دغي موضوع کي د يوسف خټك د اتهام څخه الهام اخستې وي۰

د کابل امنيتي منابعو زما په شمول ، خينو وکيلانو ته ويل چي د دغي حادثي په شپه د بوت آهو فابريکي اور اخستې و او دوی هلته مصروف وو چي ناوخته د شپي دوی په دغي حادثي خبر سول او دوی يو مکمل هيأت لکه د عکاسي ، نشان انگشت او د تحقيق مسئول هوټل ته د دي له پاره استولي وو چي ددغه جرم دوسيه په دغه شپه تکميله کړي . (( د حکومت دغه اقدام د اساسي قانون د حکم پر خلاف دی ))

وکيل وايي چي (( په هغه شپه ما او د معاملاتو د دفتر آمر حاجي عبدالشکور د سپين زر هوټل ته ورغلي وو ، د کانتيننتل لوي آمر چي هغه وخت په سپين زر هوټل کي و ده موږ دواړه په خپل هوټل کي ميلمانه کړو او کله چي موږ هغه هوټل ته ورغلو

موږ یوه اطاق ته رهنمايي کړل سو ، چي يو ساعت وروسته يوه ښځه هغه اطاق ته راغله او ډېر ژر څو امنيتي افراد په اطاق ننوتل او موږ يي د کابل ولايت ته بوتلو ))

ولسي جرگي د حکومت دغه غوښتنه چي د کڼواز وکيل دي سلب مصونيت سي و نه منله او د حکومت څخه يي غوښتنه وکړه چي د دغه وکيل دعدلي تعقيب څخه لاس واخلي. ولي حکومت ونه منله ، حکومت او ولسي جرگه دواړه پر خپلو موقفونوټينگ پاته سول چي په پای کي پاچا د حکومت د موقف په تاييد په دغي موضوع کي مداخله وکړه . پاچا د ډېرو وکيلانو سره په دغه ارتباط خبري وکړي.ما ته هم پاچا د کانتيننتل د هوټل د حادثي وړي خبري تشريح کړي چي زه اوس د هغو د ليکلو څخه عاجز يم ، زه د پاچا د فرمايشاتو په وخت کي په دي فکر کي سوم چي ولي حکومت د سلطنت دلوړ مقام څخه په داسي مسايلو کي مرسته غواړي ؟ د کڼواز وکيل د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت د اعتماد د رايي په غونډي کي نوي حکومت ته خپله رايه ورکړه او د ډاکټر عبدالظاهر حکومت د ده دعدلي تعقيب څخه منصرف سو.د جمهوريت په وخت کي ددغه وکيل دوسيه محکمي ته وړاندي سوه او وکيل د څه مودي له پاره بندي سو .

## د سر آهنگ یوه خبره

يوه ورځ د صدارت کفيل د ولسي جرگي او حکومت د تقنين غړي په پغمان کي ميلمانه کړي وو ، په دغي ميلمستيا کي وزيرانو هم برخه اخستي وه . حکومت د هيواد مشهوره سندرغاړي استاد سر آهنگ د هنر نمايي له پاره دغي ميلمستيا ته بللې و.استاد سر آهنگ په دغه محفل کي ډېري استادي غزلي و ويلي ، او پر دغو استادي سندرو باندي يوازي د صدارت مرستيال عبدالله يفتلي ډېر خوند اخستی .ولي ډېرو نورو حاضرو وکيلانو او مامورينو غوښتل چي که استاد دوی ته څو محلي غزلي ووايي ما په ډېر محترمانه ډول د استاد سر آهنگ څخه غوښتنه وکړه ، چي که دغه حاضر مجلس ته څو کليوالي سندري واوروي . زما دغه غوښتنه د استاد سر آهنگ خوښه نه سوه ، ده د محفل برخه والو ته په ډېر ټينگار سره وويل چي ، په هيواد کي يا وزير وي

او یا وکیل ، دلته دواړه حاضر دي ولي فراهي زما څخه غواړي چي زه دلته کلیوالي سندري ووایم ، نو آیا زه خپل استادي هنر په هیواد کي چا ته وړاندي کړم ؟

په هغي لحظي کي زه د خپل ځایه څخه ولاړ سوم او استاد سر آهنگ ته مي وویل چي زه ستاسي د دغه عکس العمل منتظر وم چي حاضر مجلس ته ستاسي یــوه پخواني خبره واوروم ۰ ما د دغه محفل شاملینو ته وویل چي څلور کاله پخوا ، ما په پیښور کي په افغاني قونسلګرۍ کي کار کاوه او په هغه وخت کي استاد سر آهنگ هم په پیښور کي و ۰ موږ یوه شپه ، استاد قونسلګري ته دعوت کړ چي په هغه شپه هم استاد ډیري استادي غزلي موږ ته وویلي۰ ما په هغه شپه د استاد څخه غوښتنه وکړه چي که موږ ته څو کلیوالي سندري ووایي . استاد په هغه شپه زما دغوښتني په مقابل کي هیڅ عکس العمل ښکاره نه کړ ، ده څو خوږي کلیوالي سندري موږ ته وویلي ، چي د هغو په جمله کي د استاد دغه مشهوره سندره ( ګڼ سو د لونګو لو ګڼ سو ) هم شامله وه ۰خو کله چي د ډوډۍ خوړلو خوني ته ولاړو ، هلته ما د استاد څخه پوښتنه وکړه چي آیا ستا زوی د موسقي په فن کي مهارت لري او که یه ؟ استاد زما په جواب کي وویل چي (( ما خپل زوی ته ډیر پخوا ویلي دي چي ، موسیقي ډیر مشکل فن دی ، او ته په دغه فن کي استاد کیدلای نه سي )) ده په دري ژبه دا هم وویل چي ما خپل زوی ته ویلي دي چي (( برو بچیم ، فا کولته ما کولته یته بخوان )) ددغي قصي په اوریدلو سره د مجلس برخه والو او استاد سر آهنګ وخندل او وروسته استاد موږ ته ډیري خوږي کلیوالي سندري واورولي ۰

## ۱ ۲ ـ د اطلاعاتو او کلتور وزیر ته د نه اعتماد رایه

د ولسي جرګي ډیرو وکیلانو تصمیم نیولی و چي د اطلاعاتو او کلتور وزیر ډاکټر محمود حبیبي ډیر ژر د هغه وزارت څخه لیري کړي ، ځکه چي د ده د وزارت په وخت کي په دولتي ورځپاڼو کي د اسلام ضد نشرات کیدل۰ او هم دی په دي متهم و چي ملي جراید ، تر نشر دمخه سانسور وي ۰ ځني وکیلان د ده څخه په دي آزرده وو چي دی په کابل رادیو کي د ولسي جرګي خبرونو ته د نشر اجازه نه ورکوي ۰

ولسي جرګې په ۱۹۷۱ کال کې ډاکټر محمود حبيبي د هغې جرګې د استجواب يوې غونډې ته د دې له پاره احضار کړ چې د وکيلانو پوښتنو ته جواب ووايي. د نورو پوښتنو په ضمن کې يوه وکيل د ډاکټر محمود حبيبي څخه پوښتنه وکړه چې ، تاسې ولې د ولسي جرګــې خبرونو تــه د نشر اجازه نــه ورکوی ؟ ده په جواب کــې وويــل

(( زه د ولسي جرګې د کمسيونونو هغو خبرونو ته د نشر اجازه نه ورکوم چې خبري ماهيت و نه لري . ))

ما بيله مګروفون څخه د ده د پورتني ادعا توضيح وغوښته . ده زما په جواب کې وويل (( د اطلاعاتو او کلتور وزارت ته د ولسي جرګې څخه داسې يو خبر راځي چې پلاني کمسيون د پلاني عالي جناب تر رياست لاندې يوه غونډه وکړه او دپلاني ملك پر عريضې باندې يې غور وکړ . تاسې ووايئ چې دغه مطلب څه خبري ماهيت لري چې زه هغه ته د نشر اجازه ورکړم ؟ ))

د ډاکټر محمود حبيبي له خوا د عالي جناب د کلمې استعمال ، د وکيلانو د انزجار باعث سو او وکيلان ډيرهيجاني سول ، په هغې لحظې کې تر سلو ډيرو وکيلانو د خبرو نوبت وغوښت او هر وکيل به په خپلو خبرو کې ډاکټر محمود حبيبي ته د عالي جناب خطاب کاوه . ډير ژر د ډاکټر محمود حبيبي څخه وغوښتل سوه چې د ولسي جرګې د تالار څخه ووزي . او وکيلانو د رايو په اتفاق ده ته د نه اعتماد رايه ورکړه .

د رايو ورکولو په جريان کې يوازې ببرك کارمل د ولسي جرګې د تالار څخه ووت چې ډيرو وکيلانو دده پر دغه عمل باندې اعتراض وکړ . بله ورځ يوه وکيل د کارمل څخه پوښتنه وکړه چې دی ولې د نه اعتماد د رايې په وخت کې د ولسي جرګې دتالار څخه ووتی ؟ ده په جواب کې وويل چې (( د نه اعتماد دغه تحريك يو ارتجاعي حرکت و په دې چې د مذهبي وکيلانو له خوا پيل سوی و او ما بايد په هغې کې برخه نه وای اخستې . )) ولې واقعيت داو چې ببرك کارمل غوښتل چې په خپل دغه حرکت سره نوراحمد اعتمادي ته په اثبات ورسوي چې دی د حکومت پر ضد د وکيلانو ددغه تحريك ملګری نه و .

د نه اعتماد تر رايې وروسته پاچا دغه څلور وکيلان لکه عبدالرؤف بينوا ، عزيزالله

واصفي ، امان الله شنډنډی او عبدالغفار فراهي ، شاهي ارگ ته ددي له پاره غوښتي
وو چي د ولسي جرگي ددغه تصميم پر قانونيت باندي ددوی سره خبري وکړي ۰
پاچا دغو وکيلانو ته وويل (( ما څو مياشتي پخوا نور احمد اعتمادي ته ويلي و چي
ډاکټر محمود حبيبي ته ووايـي چي د اطلاعاتو او کلتور د وزارت څخه استعفا وکړي ،
ولي نوراحمد اعتمادي دا کار نه و کړي ، ده دا موضوع پري ايښي وه چي زه د خارج
د سفر څخه راسم او زه په خپله دا خبره ډاکټر محمود حبيبي ته وکړم ۰ ولي زما تر
راتگ دمخه ولسي جرگي ده ته د نه اعتماد رايه ورکړه )) پاچا زياته کړه (( حکومت
ادعا کوي چي ولسي جرگي حکومت ته د يوه کل په حيث د اعتماد رايه ورکړي ده ، او
ولسي جرگه دا حق نه لري چي يوه وزير ته د نه اعتماد رايه ورکړي )) په دغه وخت
کي عبدالرؤف بينوا د روزگار د جريدي يوه گڼه پاچا ته ورکړه ، ده پاچا ته وويل چي
يوه وزير ته د نه اعتماد د رايي په ارتباط په دغي گڼي کي د جريدي چلونکي محمد
يوسف فرند د عبدالغفار فراهي سره يوه مصاحبه کړي ده ۰ په دغي مصاحبي کي د
ولسي جرگي قانوني موقف توضيح سوی دی ۰

ما په هغي مصاحبه کي د اساسي قانون د ۹۶ مادي د لومړي فقري د حکم
پر اساس چي ، صدر اعظم او وزيران د حکومت د عمومي سياست په برخه کي په
گډه ، او په خپلو مشخصو وظايفو کي په ځانگړي توگه مسؤوليت لري ، په دغه دليل
ما د ولسي جرگي د نه اعتماد د رايي فيصله قانوني بللي وه ۰

په دغي ليدني کي امان الله شينډنډي پاچا ته وويل چي ډاکټر محمود حبيبي په
دولتي ورځپاڼو او راديو کي د ولسي جرگي د جرياناتو د نشر ممانعت کوي ۰ پاچا
دواړه لاسونه پر سر ونيول او وي ويل چي دا څه حال دی ؟ تر دي وروسته بايد
اخبارونه هم زه په خپله وگورم ۰ دغه ليدنه پر همدغه ځای پای ته ورسيده
.

## ۱۳ ـ د نور احمد اعتمادي حکومت ته د نه اعتماد رايه

صدر اعظم نور احمد اعتمادي د ۱۹۷۱ کال د مې د مياشتي پر ۱۷ نيټي ولسي
جرگي ته د استيضاح له پاره وغوښتل سو۰ د استيضاح د غونډي لومړۍ وينا کونکې

محمد اسحق عثمان و ۰ ده په تندو الفاظو نور احمد اعتمادي په بي كفايتي او دولسي جرگــي سره پــه عدم همكاري متهم كړ ۰ د محمد اسحق عثمان دغــي تندي خبري د نور احمد اعتمادي د تأثر سبب سوى  چي وروسته د استيضاح غونډه په لفظي مشاجري  واوښتله۰

په دغي غونډي كي هر وكيل ادعا كوله چي صدر اعظم بايد د هر وكيل پوښتنو ته په جلا توگه جواب ووايي ۰ خو صدر اعظم ادعا كوله چي اوسني غونډه د استجواب غونډه نه ده چي د حكومت مشر د هر وكيل پوښتنو ته جواب ووايي ، بلكه دا د استيضاح يوه غونډه ده چي  دى حق لري چي د ټولو وكيلانو تر پوښتنو وروسته ، دوى ته په يوه مناسب وخت كي جواب ووايي۰

صدر اعظم او وكيلانو ټولو د اساسي قانون پر ۶۶ مادي اتكا كوله ، ځرنگه چي د اسلسي قانون دغي مادي ښه صراحت نه درلود،  څكه نــو صدر اعظم او وكيلان پر خپلو موقفونو ټينگ پاته سول ۰ تر يوه ساعت بحث او مناقشي وروسته ، وكيلانو د صدر اعظم نور احمد اعتمادي څخه غوښتنه وكړه چي د ولسي جرگي د تالار څخه ووزي۰ وروسته د ولسي جرگي اكثريت غړو د نــور احمد اعتمادي حكومت تــه د نه اعتماد رايه وركړه ۰

عبدالحميد مبارز په دغه ارتباط په خپل اثر كي ليكي چي ، د افغانستان دولت د نور احمد اعتمادي حكومت ته د نه اعتماد د رايي په برخه كي ولسي جرگي ته شين ځراغ وركړی و ۰ دده حدس شايد د لاندي ټكو څخه راپيدا سوی وي . (۲۸)

ـ محمد اسحق عثمان د يوه وكيل څخه چي د استيضاح د غونډي په ترتيب شوي ليست كي  د هغه نوم تر نورو دمخه و ، غوښتنه وكړه چي د خبرو لومړی نوبت ده ته ددي له پاره وركړی چي دی به په نني غونډي كي يو بم وه چوي ۰

ـ وروسته تر هغه چي نور احمد اعتمادي د ولسي جرگي د تالار څخه ووت ، د ولسي جرگي رئيس ډاكټر محمد عمر وردگ ، څو واره وكيلانو ته وويل چي ، كوم تصميم چي نن تاسي د حكومت د سرنوشت په برخه كي نيسی ، پام وكړی چي ستاسي دغه تصميم قانوني بڼه ولري ۰ چي وروسته بيا پښيمانه نه سی ۰

حکومت ته تر نه اعتماد خو ورخي وروسته پاچا د ټولو وکيلانو سره وليدل ۰ زه هم د فراه او نيمروز د وکيلانو سره د پاچا حضور ته ورغلې وم ۰ په دغي ليدني کي ما د پاچا په حضور کي څو خبري وکړي چي تفصيل يي د کتاب په بلي برخي کي ليکل سوی دی ۰ پاچا د خپلو فرمايشاتو په ضمن کي وويل چي ډاکټر وليد حقوقي يو ليکلې متن په ولسي جرگي کي لولي او تاسي بايد هغه متن تصويب کړئ ، او تر هغه وروسته به د نور احمد اعتمادي د حکومت استعفا اعلان سي ۰ هغه متن داسي و :

د شورا او حکومت د ښي همکارۍ د پيل په غرض ولسي جرگي فيصله وکړه چي حکومت ته د نه اعتماد تر رايي تير سي .

ولسي جرگي پورته متن تصويب کړ او د نور احمد اعتمادي حکومت د ۱۹۷۱ کال د مې د مياشتي پر ۱٦ نيټي استعفا وکړه ۰

## ٤ ۱ ـ د ډاکټر عبدالظاهر سره د وکيلانو کتنه

کله چي ډاکټر عبدالظاهر د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو مامور سو ، ده د اعتماد تر رايي دمخه د ټولو وکيلانو سره وليدل ۰ زه د هرات ، فراه ، بادغيس او غور د وکيلانوسره يو ځای د ډاکټر عبدالظاهر د ليدلو له پاره دده کور ته ورغلی وم ۰ ډاکټر عبدالظاهر د حاضر مجلس دډيرو وکيلانو سره په دوولسمي تقنيني دوري کي وکيل و او د ډيرو وکيلانو نومونه دده په ياد وو ۰ صدر اعظم او وکيلانو خپلي زړي خاطري يادي کړې چي ډيره صميمي او دوستانه فضا هلته جوړه سوه ۰

وروسته ډاکټر عبدالظاهر وکيلانو ته وويل (( که تاسي حکومت ته د ويلو کوم مطلب ولرئ زه خوشحاليږم چي هغه مطلب اوس ماته ووایاست )) وکيلانو فورا خپلي خواستي او محلي مشکلات صدر اعظم ته بيان کړل ۰ يوه به ويل چي په خپلي سيمي کي مکتب نه لري ، بل به ويل چي صحي کلينيك ته ضرورت لري ، هغه بل به د خپلي ولسوالۍ د سرك د خرابوالي بيان کاوه ۰ ډاکټر عبدالظاهر به ټولو دغو وکيلانو ته ويل چي (( د مالي امکاناتو په حدودو کي به ځيني کارونه وکړي )) په دغه وخت کي د غوريانو د ولسوالۍ وکيل شاه پور عليزي زما څخه غوښتنه وکړه چي که زه هم هلته څو

خبري وکړم ما د خپلو خبرو په پيل کي د ډاکټر عبدالظاهر د پوهي ، اوږدي تجربي او ښواخلاقو ستاينه وکړه ، او وروسته ما وويل چي حاضر وکيلان ستاسي د حکومت د نوي پروګرام او ريدلو ته منتظر دي چي که تاسي په دغي برخي کي موږ ته څه ووایاست . ډاکټر عبدالظاهر په خندا وکيلانو ته وويل (( ګوري ! فراهي زما څخه د هغو مطالبو ويل غواړي چــي زه بـايـد هغه مطالب د ولسي جرګي پــه تالار کي تاسي ته ووايم )) ما صدراعظم ته وويل چي تاسي هم د وکيلانو څخه د هغو مطالبو اوريدل وغوښتل چي دوی باید د ولسي جرګي په تالار کي تاسي ته ويلي وای . صدر اعظم او ټولو وکيلانو وخندل او دغه ليدنه پر دغه ځای پای ته ورسيده .

يوه ورځ وروسته زما او د ډاکټر عبدالظاهر تر منځ يوه بله دوه په دوه ليدنه هم و شوه چي تفصيل يي د کتاب په بلي برخي کي راغلې دې .

## ۱ ۵ ـ زما د پارلماني وينا يوه برخه

( د اعتماد درايو جريانات د کابل راديو له لاري خپريدل )

ګرانو اوريدونکو !

د افغانستان د بي وزلو خلګو د نيکمرغي او سعادت په هيله ، عبدالغفار فراهي د بالابلوك د ولس وکيل خپل نظر وړاندي کوي .

ښاغلې مؤظف صدر اعظم ډاکټر عبدالظاهر !

زه ګمان نه کوم چي ددغه تالار دغه مجلس دي د ادبي مسابقو او طويلو او منسجمو عباراتو او کلماتو له پاره چي عام ولس په هغه و نه پوهيږي داير سوې وي . څرنګه چي موږ اوس د قوم سره رغيږو باید دقوم په ژبه هم خبري وکړو، او څه چې وايو لومړې مو باید ددوی پوهنه او ويښتيا په نظر کي وي. نو که زما وينا د ادبي مطنطنو عباراتو او بي خايه انشا پردازيو څخه عاري وي معذرت غواړم .

زما په فکر که زه د خپل ولايت او يا ولسوالې د مشکلاتو څخه ورغيږم او ووايم چې دلته هيڅ د ژوندانه مظاهر په نظر نه راځي ، او ټول د ژوندانه وسايل يي يا د طبيعت د بي رحميو او يا د اداره چيانو د روزګذرانيو او بي التفاتيو له کبله د فنا او

نیستې په کندي کي لویدلې دې ، دا به مي یو ډول تنگ نظري یا لږ معلوماتي له کبله ویلي وي ٠ او معنا یي دا چي په ټول افغانستان کي هر څه سته او دلته هیڅ نه سته ٠ په داسي حال کي چي د افغانستان ټولي سیمي او د ولس زیاته برخه په دغو دردونو او مشکلاتو اخته دي ٠

نو که زه د افغانستان د عمومي مشکلاتو او مصایبو په هکله وږغیږم دا به ښه وي نسبت و هغه تــه چــې زما فکر د یــوي مشخصي او محلــي مشکل د حل خوا ته متوجه وي٠

که زموږ هیواد افغانستان آباد او معمور وي ، دا معنا نه لري چې فراه چې د افغانستان یو تاریخي او د هره حیثه با ارزښه سیمه ده ، نا آباده او د نظره لویدلي سیمه وي ٠ بیا هم زه د خپلي سیمي د وکیلانو هغه هیلي چي د فراهیانو د لوړي او د فراه رود د بند په مورد کي یي کړي او یایي کوي ، د تایید وړ بولم ٠ او دومره پر علاوه کوم چې موږ باید ددغو مشکلاتو علت العلل ته متوجه سو چې ولي د افغانستان ټول ولس په دي عصر کي په داسي مصایبو او آلامو اخته دې ؟

موږ تر ټولو دمخه دي ته احتیاج لرو چي افغانستان جوړ کړو ، او دا خبره دا معنا نه لري چي  خدای نا خواسته افغانستان موجود نه دې او یا ملي او بین المللي موقف او اهمیت ته یي څوك په درنه سترگه نه گوري ٠ ددي جملي مطلب دادی چي موږ باید افغانستان د یو عصري او مترقي هیواد پـه څیر ، څرنگه چي پـه حقوقي قا موسونو او بین المللي منا شیرو کي یي تعریف کیږي ، هغه شاني جوړ کړو ٠ یعني لومړی باید د خپلو سرحداتو او سیاسي لانجو او کشالو د حل او فصل کولو له پاره جدي توجه وکړو او څرنگه چي یي ملي هیلي او مصلحتونه آرزو لري هغه شاني اقدام وکړو ٠

په یوه عصري او مدني دولت کي چې هغه د نوي ژوند په ټولو مزایاو او ښیگڼو مجهز وي ، هلته د پووندوو او کوچیانو مسأله هیڅ موضوع د بحث نه سي کیدلای٠ ولي ددولت یو حقوقي تعریف هم دادې چي خلگ یي په یوه معینه سیمه کي و اوسي په داسي حال کي چي دا خواران نه یوازي په افغانستان بلکه په باندنیو همسایه هیوادونو کي خپل بي ارزښه ژوند په ډیر محروم او جلا وطني ډول تیروي ٠

همدغه مشکل دې که احیانا د یوه ملي حکومت له خوا د ملت په نفع څه اقتصادي مقررات او تنظیمونه وضع سي او وغوښتل سي چي یو ملت د اقتصاد او صنعت له پلوه پر خپلو پښو ودریږي ، ددغو اقوامو ځیني برخه چي د کال په سر او پای کي د موسمونو د تغییر او جوي شرایطو له کبله خپلي میني بدلوي ، ځرنګه به د سیاسي لانجو او مختلفو وجوهاتو له کبله زموږ دولتي قوانین او مقررات د دوی د تګ او راتګ پر مسالي باندي تطبیق کړه سي ۰ د بلي خوا څخه هغه پوونده چي د ننه په هیواد کي یوي او بلي خوا ته کډي کوي ، ددي څخه علاوه چي ددوی د نفوسو شمیر او د ژوندانه په هکله څوك پوره احصائیه نه لري ، خو دومره پوهیږو چي په دغو دو کلونو کي چي د طبیعت قهر چي د افغانستان پر ټول ملت نازل سوی دی ، ددوی ژوند یې تر نورو ډیر د تباهي او نیستي منجلاب ته ورغورځولی دی ۰ موږ چي خپله څه نه لرو ، ددوی سره به څنګه غم شریکي او ورور ګلوي و ساتو ، او حکومتونه خو یې د یو انسان او هم وطن په ځیر هیڅ د ژوندانه مسألي ته ملتفت نه دي او نه ددوی په موجودیت قایل دي لکه ځرنګه چي د موجوده حکومت په تګ لاري کي ددوی په هکله حتي ددوی دمحض خوشالواو تسلیت لیکنه نه سته ۰

کله چي مو د کوچیانو مسأله د یوه عصري دولت د په وجود راوړلو له کبله حل کړه بیا اقتصادي سمون دومره اشکالات نه لري ، دغه مشکل چي نن موږ په اقتصادي ساحه کي د ملي تولیداتو د نیستي او صنعتي محصولاتو د بربادي له کبله ور سره مخامخ یو ، تر موږ دمخه نورو وروسته پاته زموږ په شان آسیایي او افرقایي هیوادونو او قومونو هغو ته د ملي حکومتونو د په وجود راوړلو او اقتصادي پلان جوړولو ، استثمار او استعماري سیاست سره په مبارزي کولو سره حل کړي دي ۰

کله چي مو دغه ضرورتونه رفع کړه البته اداري مشکلات چي فلانکې رشوت خوري او بستانکې ظلم او ناروا کوي ، یوازي د یوه ملي حکومت د په وجود راوستلو سره چي په هغه کي قوانین حکومت ولري رفع کیدلای سي ۰ که قانون حاکمیت ولري بیا به هیڅوك د وزیر ، والي ، رئیس او داسي نورو کاردارانو څخه شکایت و نه کړي ۰ او هر څه به د قانون څخه غواړي ۰ که قانون احیانا په ځینو مواردو کي د ولس ګټه او

مصلحت په نظر کي نه وي نيولي ، هغه به هم د قانوني لاري څخه اصلاح کيږي ٠

د ديموکراسي د راتگ سره زموږ په هيواد کي دديموکراسي د چلولو او بريالي توب له پاره ځني قوانين او مقررات راووتل ، خو هغه اصلي او اساسي قوانين چي دديموکراسي اساس او بنسټ پر ايښوول سوی دی تر اوسه نه دي راوتلي ، ځرنگه چي ديموکراسي بي له احزابو او د احزابو د قانون څخه کوم حقيقي مفهوم نه لري ، نو ښايي چي ديموکراسي سره د وفادارۍ او د موفقيت له پاره يي د احزابو ، ولايتي جرگو او داسي نور قوانين ژر راوايستل سي ، او دغه داسي يو مشکل دی چي نن حکومت او ملت دواړه ورسره مخامخ دي ٠

يو شي چي د زياتي يادوني وړ دی هغه دا سوال دی چي د موجوده ديموکراسي او اساسي قانون حاميان او طرفداران به څوك وي ؟ په موجوده شرايطو کي تر څو چي نور څه نه وي سوي ، د افغانستان روشنفکره او تعليم يافته او په آخر کي د عالي ښوونځيو او پوهنځيو محصلان دي ٠ چي دوی واقعا لکه تږي چي اوبه غواړي ، همداشاني د هيواد اعتلا او ارتقا ته په ډير تلوار او فداکارۍ منتظر دي ٠ خو نه پوهيږم چي غلط فهمي ورته ووايم او که بل څه ، نن د هيواد ځني روشنفکره او وطن پالونکي عناصر په يوه او بل نامه د سياسي فعاليتونو څخه مايوسه سوي دي او يا زندانونو ته ليږل سوي دي ٠ تر کومه ځايه چي معلومات سته دوی ډير وطن پالونکي او ددي خاوري ريښتيني زامن دي ، او دوی د هيواد په خير او شر کي د يو حقيقي افغان او انسان په څير ځانونه مسؤول او حتي شريك گڼي٠ نو نه ښايي چي ددوی پر آزاديوو باندي بي ځايه پابندي و لگول سي ٠

ښاغلي مؤظف صدر اعظم ! لکه چي د ولسي جرگي زياتو وکيلانو د تيرو حکومتونو څخه د بي ځايه وعدو ورکولو او ورځ تيرولو څخه شکايت وکړ ، او وي ويل چي ددوی ملي هليي او قومي ارمانونه يي په سلو کي هيڅ نه دي عملي کړي ، نو آيا ددي له پاره کوم دليل سته چي دا حکومت به هم پر خپلو وعدو وفاداره وي ؟ په داسي حال کي هغه څه چي يي دوسه پوره وو ، په خپل خط مشي کي د هغو د اجراکولو څخه ځان تير کړی دی ، نودا به عجيبه وي چي زماځخه د اعتماد درايي توقع ولري ! نوځکه په زغرده وايم

چي خپل د اعتماد رایه نه درکوم ۰ ( د ۱۹۷۱ کال د جولای میاشت )

د وینا پا ی

## د محمد موسی شفیق یوه ټوکه

د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت د اعتماد د رایو په غونډي کي ، کله چي ما ته د خبرو کولو وار راورسیدې ، څو دقیقي د غرمي ۲ ۱ بجو ته پاته وي او د ولسي جرگي رئیس ډاکټر محمد عمر وردگ د خپل مقامه څخه ، زه په اشاره و پوهولم چي زما د خبرو کولو وار رارسیدلې دی ۰ په هغي لحظي کي ما د خپل لاس ساعت ته وکتل ، او ډاکټر محمد عمر وردگ فورا په مگروفون کي اعلان وکړ چي د فراهي د خبرو کولو وار دې ، اوس وخت لږ دی ، فراهي به د ماپښین پر دوو بجو خبري وکړي ۰ ده د ولسي جرگي سهارنې غونډه پر هغه خای پای ته ورسوله ۰

د ډاکټر محمد عمر وردگ دغه اعلان په ټول هیواد کي اوریدل سوې و او هر چا چي زه پیژندلم دوی شاید زما وینا اوریدلي وي ۰ زما ورور عبدالواحد فراهي په فراه کي ددغه اعلان په وجه زما د وینا په وخت خبر سوی و ۰

شهید عزیزالرحمن الفت ما ته وویل (( زما او ستا استاد خارجه وزیر محمد موسي شفیق ستا پر پارلماني وینا باندي داسي تبصره کړي ده )) :

شفیق ویلي و (( پــه هغه ورځ چــي فراهــي په ولسي جرگــي کــي خبري کولي ، ما د ماپښین له خوا د خارجه چارو په وزارت کي یو مجلس درلود ۰ څرنگه چي د ولسي جرگي رئیس اعلان وکړ چي فراهي پر دوو بجو خبري کوي ، نو زه د فراهــي د خبرو د اوریدلو له پاره په ولسي جرگــي کــي پــاتــه سوم او د خــارجــه وزارت مجلس مــي یــو بــل وخت ته وځنډوی ))

زما وینا لکه چــي په دغه کتاب کــي یي لولې پــه سر کي ډیره ملایمه او په پای کي ډیره تنده لیکل سوې ده ، او پــه دغــي وینا کــي مــا حکومت تــه د اعتماد رایــه هم نه ده ورکړي ۰

محمد موسي شفیق زما پــر وینا داســي تبصره کړي وه : (( د فراهي وینا د تجارت د وزارت د یوه وزیر هغي مشهوري قصي ته ورته وه چي ، دغه وزیر د هغه

وزارت يو مامور د مكافاتو له پاره خپل دفتـر ته ورغوښتې و ، ولي ده د مكافاتو پر ځاى دغه مامور ته جزا وركړي وه او په وهلو يي د خپل دفتر څخه ايستلى و))

د استاد شفيق دغه تبصره په هغه وخت كي عزيزالرحمن الفت ما ته ويلي وه چي زه په دغي ټوكي نه يم خوابدى شوى ۰

تبصره : د سلطنت د وخت ددغه وزير په ارتباط يو بل وزير وايي چي زه يوه ورځ دده دفتر ته ورغلى وم چي هلته نور خلگ هم حاضر وو . دغه وزير چي به هره ستايش آميزه خبره زما په ارتباط حاضر مجلس ته كوله نو زه به يو گام پر شا تلم ، ده زما څخه پوښتنه وكړه چي ته ولي پر شا ځي ؟ ما ده ته په جواب كي وويل چي ما اوريدلي دي چي د هر هغه چا ستاينه چي ته كوي نو په آخر كي هغه سړى ته وهي ، نو په دغه لحاظ زه ځان ستاسي څخه ليري كوم .

## ۱۶ ـ د معارف او عالي تحصيلاتو قانون

په ١٩٦٥ كال كي د عقرب د دريمي تر حادثي وروسته ډاكټر محمد يوسف مستعفي سو او دده پر ځاى محمد هاشم ميوندوال د افغانستان صدر اعظم سو ۰ ده د پوهنتون شاگردانو ته وعده وركړه چي د قانون په چوكاټ كي به دوى ته د اتحاديي د جوړولو اجازه وركړي ۰ محمد هاشم ميوندوال د خپلي وعدي سره سم د معارف او عالي تحصيلاتو د قانون مسوده جوړه كړه ۰ ولي په ١٩٦٧ كال كي د پاچا په اراده دده حكومت د منځه ولاړ ۰ او دده پر ځاى نور احمد اعتمادي صدر اعظم سو ۰ په دغه كال كي د شورا د تعطيل په ورځو كي د نور احمد اعتمادي د حكومت له خوا دغه قانون په تقنيني فرمان نافذ سو ، ولي د پوهنتون او عالي تحصيلاتو د پوهنځيو شاگردانو ددغه قانون سره مخالفت وكړ ۰ دوى په ١٩٦٨ كال كي د معارف او عالي

تحصیلاتو د قانون پر ضد اوږدي مظاهري پیل کړي. حکومت د اساسي قانون د ۷۷ مادي د حکم پر اساس دغه تقنیني فرمان ، د تصویب له پاره شورا ته وړاندي کړ . او په دغه کال کي د حکومت تقنیني فرمان د ولسي جرگي له خوا ملغي اعلام سو . چي ددغي نیټي څخه وروسته د پوهنتون او عالي تحصیلاتو د پوهنځیو له پاره په هیواد کي کوم قانون موجود نه و ، او پـه ۱۹٦۹ کال کي د شـاگـردانــو او پولیسو تــر منځ نښتي هم وشوي .

په ۱۹٦۹ کال کي د نور احمد اعتمادي حکومت د وزیرانو په سویه یو هیأت ددي له پاره و ټاکې چي د پوهنتون له پاره لوایح جوړي کړي ، دغي لوایح جوړي سوي ددغو لوایحو پر اساس ددغه کال دمي په میاشت کي پوهاند فضل ربي پژواك د کابل پوهنتون دلومړي انتخابي رئیس په حیث وټاکل سو. چي دغو لوایحو او انتخابي رئیس ټاکل کیدل د پوهنتون د وضعي په آرامولو کي مؤثر واقع نه سوه .

صدر اعظم نور احمد اعتمادي ۱۹٦۹ کال د جون د میاشتي پر ۲۸ نیټي د کابل رادیو له لاري څخه خبرداري ورکړ چي دده حکومت به په کابل پوهنتون کي د استادانو او شاگردانو د اعتصابونو مخه و نیسي . ولي د نور احمد اعتمادي حکومت په دغه کار بریالی نه سو .

په ۱۹۷۱ کال کي د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت په وخت کي ، د ولسي جرگي د تقنین کمسیون ته د کابل پوهنتون د استادانو او شالگردانو له خوا عرایض وړاندي سول چي په دغه اساس دتقنین د کمسیون په غونډه کي د پوهنتون د استادانو په نمایندگي پوهاند فضل ربي پژواك ، سعید افغاني او محمد هاشم صاعد او د شاگردانو په نمایندگي ډاکټر نجیب الله او خلیل الله کوهستاني برخه اخستي وه . چي د تقنین کمسیون ددوی سره په جلا غونډو کي اوږدي خبري وکړي .

په دغه ارتباط څو ورځي وروسته د حکومت یو لوی هیأت د تقنین د کمسیون په یوي غونډي کي برخه واخسته ، چي په دغه هیأت کي صدر اعظم ډاکټر عبدالظاهر ، د پوهني وزیر حمیدالله عنایت سراج ، د عدلیي وزیر محمد انور ارغندیوال او د پوهنتون رئیس سید عبدالقادر بها برخه درلوده . د ولسي جرگي ډیر وکیلان د مباحثاتو د

اوریدلو له پاره د تقنین په کمسیون کي حاضر وو ۰

د مجلس آجندا دا وه چي (( حکومت ولي د پوهنتون او عالي تحصیلاتو د پوهنځیو له پاره قانون نه جوړوي ؟ ))

په دغه مجلس کي صدر اعظم او دده ملګرو د ویلو څه مطالب نه درلودل ۰ ولي د تقنین د کمسیون غړو هر یوه پر حکومت باندي کلك انتقادونه کول ۰ ځینو وکیلانو به ویل چي نژدي پنځه کاله کیږي چي په پوهنتون او نورو عالي پوهنځیو کي نا آرامي موجودي دي ، شاګردان د زده کړي پر ځای د اعتصاب په حالت کي دي او حکومت ددغي معضلي د حل په لار کي کوم مؤثر اقدام نه کوي۰ بل وکیل به ویل چي په دغي اوږدي مودي کي چي کومه مادي او معنوي خساره هیواد ته رسیدلي ده د دغو ټولو خسارو مسؤولیت د حکومت پر غاړي دې ۰ نورو وکیلانو استدلال کاوه چي هغه لوایح چي د حکومت له خوا د پوهنتون له پاره جوړي سوي دي ، دغه لوایح د ولسي جرګي په نظر قانوني حیثیت نه لري ۰

د حکومت لــه خوا یوازي د پوهني وزیــر ځو واره وکیلانو ته وویل (( د قانون جوړول یو مسلکي کار دې او هر ځوك د قانون د جوړولو اهلیت نه لري او نه ښایي چي هر ځوك ٴ دده مقصد وکیلان وه ٴ پر قانون باندي نیوکي وکړي )) ده ویل (( د قانون جوړول د متخصصینو کاردې او هغه لوایح چي د پوهنتون له پاره جوړي سوي دي ، د حقوقدانانو په مشوره جوړ سوي دي ، او په دغو لوایحو کي هغه نواقص چي وکیلان ورته اشاره کوي ، موجود نه دي ))

ما د پوهني د وزیر د خبرو په هکله ، یوه تاریخي قصه وکړه ۰ ما وویل : یو وخت د ترکیي او یونان تر منځ یوه خونړي جګړه وسوه ، چي په دغي جګړي کي د ترکیي عسکرو ته ډیر د سر تاوان ورسید ۰ د ترکیي جنګي مقاماتو فیصله وکړه چي د ډاکټرانو یوه ډله دي د جنګ د محاذ مړي او ټپیان وګوري چي تر معاینې وروسته به ډاکټران پر مړو باندي سور بیرغ او پر ټپیانو باندي به سپین بیرغ ودروي ۰ چي تر دوی وروسته به نور خلګ دغو ځایو تــه ورځي ، دوی بــه مړي اوبو تــه اچوي او ټپیان به روغتونونو ته انتقالوي ۰

ډاکټرانو د معاینې په وخت کې یو ټپي سړی ولید چې ډیره وینه یې ضایع کړې وه چې د ډاکټرانو په تصور ، تر هغو چې دا بله ډله خلګ راتلل ، دغه سړی حتما باید مړ سوی وای ، نو دوی پر دغه سړي باندي سور بیرغ ودراوه ۰ کله چې ډاکټران ولاړل دغه سړی پر دابل اړخ سو او وینه یې ودریده او روغ رمټ کښیناست ۰ کله چې دا بله ډله خلګ ده ته راورسیدل او سره بیرغ ته یې وکتل ، نو دوی اراده وکړه چې دی اوبو ته واچوي ټپي سړي دوی ته وویل چې زه مړ نه یم او تاسي ولي ما اوبو ته اچوئ دوی په جواب کې ده ته وویل چې ته ښه پوهیږې که ډاکټر ؟ ډاکټر وایي چې ته مړ یې دوی دډاکټرانو دسره بیرغ په استناد دغه ژوندی سړی اوبو ته واچوی . ما دا هم وویل چې د پوهنتون دغه لوایح د ډاکټرانو هغه سره بیرغ ته ورته دی چې پر پوهنتون باندي ، درول سوی دی .

د غونډې په پای کې حکومت او وکیلانو موافقه وکړه چې حکومت به ډیر ژر د پوهنتون له پاره د قانون یوه مسوده جوړه او ولسي جرګي ته به یې وړاندي کړي ۰ غونډه پر همدغه ځای پای ته ورسیده ۰

کله چې صدر اعظم د صدارت ما ښي ته ورسید ، حکومت پر خپلې وعدې باندي پښیمانه سو ، او یو ساعت وروسته ډاکټر عبدالظاهر په خپله د تقنین کمسیون ته په تیلفون کې وویل (( د تقنین په کمسیون کې د فیصلې په وخت کې یوه غلط فهمي پیښه سوې ده ، او حکومت نه غواړي چې د پوهنتون او عالي تحصیلاتو د پوهنځیو له پاره د قانون مسوده جوړه کړي ۰ او که شورا غواړي چې دغه قانون جوړ سي ، نو په خپله شورا دې ددغه قانون مسوده جوړه کړي ))

لکه چې حکومت وروسته متوجه سوی دی چې حکومت نه سي کولای چې د استادانو او شاګردانو ټولې غوښتني په دغه قانون کې ځای کړي ، نو په اوسنیو شرایطو کې د قانون جوړول بې ګټې کار دی ۰

بله ورځ د تقنین کمسیون غونډه وکړه او په دغې غونډې کې یې په دې مفهوم یو خبر تصویب کړ (( حکومت د پوهنتون او عالي تحصیلاتو د پوهنځیو له پاره د یوه قانون په جوړولو کې تعلل کوي او د پوهنتون د نا کراریو مسؤلیت د حکومت پر

غاړه دی ) ) دا خبر د کابل راديو په وسيله خپور سوی دی ۰

## ۱۷ ـ حکومت د وکيلانو په بدنامولو کي لاس درلود

د ۱۹٦٤ کال د اساسي قانون له مخي د افغانستان دولت پر اجراييه ، مقننه او قضاييه قوو ، وويشل سو او د ديموکراسۍ دوري حکومتونه د صلاحيتونو په دغه تفکيك نه وو خوشحاله ۰ د حکومت وزيرانو به هميشه دا شکايت کاوه چي وکيلان ټوله ورځ پر وزارتونو گرزي او دوی د وکالت د نفوذ څخه ناوړه استفادي کوي ۰ ولي حکومت هيڅ وخت دا اعتراف و نه کړ چي وکيلان مجبور دي چي د خپلو مؤکلينو د کارونو د اجرا له پاره د حکومت اداراتو ته مراجعه وکړي او حکومت ته په کار و چي ددغي معضلي د حل له پاره يوه آبرمنده لاره پيدا کړي وای۰

د ۱۹٦٤ کال د اساسي قانو ن مطابق د افغانستان شورا ته لاندي صلاحيتونه ورکړه سوي وو :

- د شورا غړي د افغانستان د لوي جرگي غړي هم دي
- ولسي جرگه حکومت ته د اعتماد رايه ورکوي
- ولسي جرگه د حکومت څخه د اعتماد سلب کولای سي
- ولسي جرگه د حکومت څخه د استيضاح او استجواب حق لري
- د دولت بودجه د شورا له خوا تصويبيږي ۰
- د بين الملل معاهداتو تصديق د ولسي جرگي په واك کي دې ۰
- د دولت د پورونو منظوري د ولسي جرگي په صلاحيت کي دي ۰
- د پيسو نشر د ولسي جرگي په صلاحيت کي دې ۰
- د حکومت د اعمالو تحقيق د ولسي جرگي له خوا کيږي ۰
- خارج ته د افغاني اردو استول د شورا په واك کي دي ۰

پورته صلاحيتونه دا په اثبات رسوي چي شورا د دولت يو مهم رکن و او بايد د شورا غړو ته په درنه سترگه کتل شوي وای ۰

د ۱۹٦٤ کال د اساسي قانون د حکم پر اسا س د افغانستان دولتي چاري په کابل

کي متمرکزي وي ۰ وکيلان او دکليو نور خلگ مجبور وو چي د خپلو کارونو د اجرا کولو له پاره وزارتونو او ستري محکمي ته مراجعه وکړي ۰

زه چي د فراه د ولايت اوسيدونکې وم او په کابل کي مي ماموريت درلود ، ما ته هم تر وکالت دمخه د فراه ډيرو خلگو د خپلو مشکلاتو د حل له پاره مراجعه کوله ، او زه به مجبور وم چي د حکومت يا ستري محکمي اداراتو تــه ورسم او د هر کاتب ميز ته ودريږم ۰

وکيلانو په کابل کي د اوسيدلو ځايونه نه درلودل ، دوی د وکالت په ټولي دوري کي د يوه کوره څخه بل کور ته په کډه کي وو ، چي کله کله به حکومت هم ددوی په پيدا کولو کي په مشکلاتو اخته و ۰

ولسي جرگي په هر کال کي دوي عادي غونډي درلودي چي لومړي غونډه صرف ددوو مياشتو له پاره او دوهمه غونډه د پنځو مياشتو له پاره وه ۰ چي د کابل په ښار کي هيچا وکيلانو ته د دوو مياشتو له پاره کور په کرايه نه ورکاوه ۰ ځرنگه چي اکثرو وکيلانو په کابل کي مجرد ژوند کاوه ، نو د کابل په ډيرو سيمو کي به مجردو وکيلانو ته چا خپل کورونه په کرايه نه ورکول ۰ چي ډير وکيلان به د شورا لومړي غونډي ته چي د دوو مياشتو له پاره وو نه حاضريدل ، او په دغه وجه به د ولسي جرگي غونډي نصاب نه پوره کيدی .

د وکيلانو د استوگني د ځای په هکله ما ته د يوه ايراني ځوان د ژوند ماجرا را په ياد سوه ، چي په ۱۹۷۵ کال کي د ايران په مطبوعاتو کي خپره سوي وه (( يو ايراني ځوان تر تحصيلاتو وروسته په يوي اداري کي مامور سو، دی د يوه کرايي کور په لټه کي سو ۰ ده چي به هر کرايي کور ته مراجعه کوله دده څخه به پوښتنه کيده چي متأهل يي که مجرد ؟ ده به په جواب کي ويل چي مجرد يم . نو د کور خاوند به ده ته ويل چي مونږ مجرد سړي ته کور په کرايه نه ورکوو ۰ وروسته دغه مامور د يوه فاميل څخه ددوی د لور د وصلت غوښتنه وکړه۰ دغه فاميل دده څخه پوښتنه وکړه چي کور لري او که يه ؟ ده په جواب کي وويل چي کور نه لرم ۰ دغه فاميل ده ته وويل چي مونږ خپله لور بي کوره سړي ته نه ورکو )) چي د ولسي جرگي وکيلان هم مجبور

سوي وو چي د کورونو د کرايه کولو له پاره په کابل کي ودونه وکړي ٠

زمونږ په همسايه هيواد پاکستان کي د ملي اسامبلي د غړو له پاره په اسلام آباد کي ځايونه جوړ سوي وو ، چي هر وکيل ته به يوه وداني ورکول کيده او دهغي وداني کرايه به د هغه وکيل د معاش څخه وضع کيدل ٠ په ١٩٩٨ کال کي د پاکستان د صدر اعظم له خوا ٣٦٢ لوکسي ويلاګاني په اسلام آباد کي پرانستلي سوي ، چي دغه ځايونه د پاکستان د پارلمان د غړو له پاره جوړ سوي وو چي پر دغو ويلاګانو بـانـدي نژدي ١٤ مليونه دالره مصرف شوي وو ( ٢٩ )

ما په يوه صحبت کي صدر اعظم ډاکټر عبدالظاهر ته وويل چي حکومت د وکيلانو د حيثيت په ساتلو کي خپله وظيفه سر ته نه ده رسولي ٠ او دغه د قوم مشران د خپل مؤکلينو د کارونو د اجرا کولو له پاره مجبور دي چي د هر کاتب ميز ته ودرېږ ي او حکومت د وکيلانو دغه سپك عمل ته زمينه برابره کړي ده ٠ صدر اعظم زما څخه ددغي معضلي د حل دلاري پوښتنه وکړه ، ما ده ته وويل چي حکومت کولای سي چي خپل پارلماني رياست د شورا څنګ ته انتقال کړي او د وکيلانو څخه غوښتنه وکړي چي خپل عرايض ، پارلماني رياست ته و سپاري ٠ او صدر اعظم بايد خپلو وزيرانو ته امر وکړي چي د وکيلانو قانوني عرايض ډير ژر اجرا کړي ، او ټول وکيلان به د حکومت احکام به د پارلماني رياست له لاري څخه لاس ته وروړي ٠ په دغه صورت کي به د وکيلانو حيثيت وساتل سي ٠ ما په ټـوکـه صدر اعظم ته دا هم وويل چي حکومت ته به هم د هر وکيل د عرايضو شمير معلوم سي او هر وکيل چي حکومت ته ډيري عريضي وړاندي کوي ، هغه وکيل به مجبور وي چي په ولسي جرګي کي د حکومت کلك ملاتړ وکړي ٠

صدر اعظم ډاکټر عبدالظاهر په دغي مشوري ډير خوشحاله سو ، دده په هدايت د شورا په څنګ کي د پارلماني رياست له پاره د يوه تعمير نقشه جوړه سوه ، چي متأسفانه د ډاکټر عبدالظاهر حکومت د وچ کالي او د هيواد والو د لوږي سره د مقابلي په کار اخته سو او دده د صدارت په وخت کي پارلماني رياست ، شورا ته انتقال نه سو ٠ چي تر ده وروسته صدر اعظم محمد مو سي شفيق پارلماني رياست د

شورا څنگ ته د تجارت د وزارت ماڼي ته انتقال کړ او ده شخصا د پارلماني رياست دنده پر غاړي واخسته . که د محمد موسي شفيق د صدارت دوري ادامه پيدا کړي وای ، ددي امکان موجود و چي په څوارلسمي تقنيني دوري کي به د وکيلانو حيثيت خوندي سا تل سوی وای . ولي د ديارلسمي تقنيني دوري په پای کي محمد داود خان کودتا وکړه او د محمد موسي شفيق حکومت له منځه ولاړ .

څه په کار به د چا هغسي شورا وي

چي د ږيري واك يي لاس کي د ملا وي ( ۳۰ )

## ۱۸ ـ وکيلانو ته د حج سهميي

افغاني ليکوالانو صباح الدين کشککي او عبدالحميد مبارز په خپلو آثارو کي ليکلي دي (( وکيلانــو حتي د حاجيانــو سهميي هم په بازار کــي خرڅي کړي وي )) ددغه مطلب د روښانه کولو له پاره بايد وليکل سي چي په ۱۹۷۱ کال کي د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت په وخت کي ، کله چي زه د خارج د سفر څخه ولسي جرگي ته ورغلم ، د ولسي جرگي په دهليز کي د زابل د ولايت د کلات وکيل عبدالعزيز ما ته وويل چي د يوه حاجي د پاسپورت امر راکړه . څرنگه چي زه دده په غوښتنه پوه نه سوم نو ما ده ته جواب هم ور نه کړ . وروسته يوه وکيل د تقنين په کمسيون کي دغه موضوع ما ته داسي تشريح کړه : ده وويل چي صدر اعظم هر وکيل ته صلاحيت ورکړی دی چي پنځلس حاجيان د مځکي له لاري څخه حج ته وليږي . چي بيله ( جي سنگه ) څخه نورو ټولو وکيلانو ته دا واك ورکړه سوی دی . ما په هغي لحظي کي د پارلماني رئيس محمد ياسين نسيمي څخه په تيلفون کي پوښتنه وکړه چي ، زما په نامه خوبه چا کوم سړی حج ته نه وي استولي ، ده زما په جواب کي وويل چي تر اوسه دا کار نه دی سوی . وروسته ما په تيلفون کي صدر اعظم ډاکټر عبدالظاهر ته وويل چي تاسي ولي هغو وکيلانو ته چي تاسي ته يي مراجعه نه وي کړي د حج سهميه ورکړي ده ؟ صدراعظم زما په جواب کي وويل چي ډيرو وکيلانو د حج د سفر د امر اخستلو له

پاره حکومت ته مراجعه کوله او حکومت د عدالت د تامین له پاره ټولو وکیلانو ته مساوي حـق قایل سو ، چـې په دغـه اقدام سره حکومت د وکیلانـو د نوري مراجعي څخه ځان خلاص کـړ ۰

ما د صدر اعظم څخه غوښتنه وکړه چي که دې شخصا د فراه والي محمد عالم نوابي ته هدایت ورکړي چـي زمـا د سهمیي پـه نـامه د بالابلوك د ولسوالۍ خلگ ور وغواړي او د پچي پر اساس پنځلس کسان د حج د سفر له پاره وټاکي ۰ صدر اعظم زما غوښتنه و منله او سمدلاسه یي د فراه والي ته هدایت ورکړ چي د بالابلوك د اوسیدونکو څخه پنځلس کسان د حج د سفر له پاره وټاکي او د فراه والي پنځلسو کسانو ته د پچي پر اساس د حج د سفر اجازه ورکړه ۰

د پورته جریان د لیکلو څخه زما هدف دادې چي د حاجیانو د سهمي په برخه کي تر وکیلانو د حکومت مسؤولیت ډیر دی ۰

حکومت ته به ښایي ډیرو هغو وکیلانو مراجعه کړي وي چي د خپلو فامیلونو او دوستانو سره د بیت الله شریف د سفر عزم یي کړی و ، او حکومت باید دغو وکیلانو ته د حج د سفر زمینه برابره کړي وای ۰ ولي حکومت دمځکي له لاري څخه د دوو زرو حاجیانو د مسافرت اجازه دوه سوه وکیلانو ته ورکړه ، چي که وکیلانو د حج دغه سهمیه په بازار کي خرڅه کړي هم نه وي ولي دوی به حج ته حتما خپل دوستان استولي وي ۰ چي زما په نظر دغه هم یوه بي عدالتي ده ۰ په دي چي د حج سهمیه د افغانستان د ټولو هغو کسانو حق دې ، چي د حج د تلو اراده یي کړي وي ، او حکومت باید د حاجیانو دتعیین حق وکیلانو ته نه وای ورکړې .

داو د حج د سهمي جریان چي په پورته تفصل و ړاندي سو ۰

## ۱۹ ـ د ژبو موضوع پر ولسي جرگي تحمیل سوه

په ۱۹۷۱کال کي د دولت د ملکي مامورینو قانون د تقنین په کمسیون کي تصویب سو ، او د ولسي جرگي عمومي مجلس ته وړاندي سو ۰ په عمومي مجلس کي ځینو وکیلانو د استخدام د مادي پر شرایطو باندي یو بل شرط په دي مفهوم پیشنهاد

کړ ( څوك چي ددولت د مامور په حيث استخداميږي  بايد په پښتو او دري ژبو وپوهيږي  )  څرنگه چي دغه پيشنهاد د پښتنو وکيلانو له خوا وړاندي سوی و  نو په هيواد کي يي د پښتو ژبي د پيشنهاد په نامه  شهرت پيدا کړی و ٠

ما اوريدلي دي چي دغه پيشنهاد د حکومت د يوه مهم غړي په لارښوونه د دولسمي او ديارلسمي تقنيني دورو د څلورو وکيلانو له خواجوړ سوی و  او د غزني د ولايت د وازي خوا د وکيل بهأ الحق خان له خوا د ولسي جرگي دارالانشأ ته وړاندي سو ٠ دغه پيشنهاد دوو هدفونو له پاره وړاندي سوی و  :

ـ دوی پـه دغـه پيشنها د سره د ولســي جــرگــي پښتانــه وکيلان د خــانــه څخه خــوشحــالــه کــول ٠

ـ دوی په دي ښه پوهيدل چي دري ژبي وکيلان به ددغه پيشنهاد سره کلك مخالفت وکړي  او د ډاکټر عبدالظاهر کم وا کي حکومت به د هغه علاج نه سوای کولای نو په نتيجه کي به د ډاکټر عبدالظاهر حکومت  استعفا کولو ته مجبور سي ٠

دغه پيشنهاد په ډيرو ماهرانه او په انعطاف پذيرو کلماتو ليکل سوی و لکه ( ٠٠٠ بايد په پښتو او دري ژبو و پوهيږي ) چي د پوهيدلو معيار معلوم نه و . او دي پيشنهاد تفسير ته ضرورت درلود ٠ دا راز يوه جمله د اساسي قانون په ٤٦ مي مادي کي د وکالت د کانديدانو د سواد په هکله هم درج سوی ده چي د انتخاباتو په وخت کي ، ستري محکمي د يوي استهدا په جواب کي دغه ماده تفسير کړه او د وکالت د کانديدانو خصوصي زده کړه يي د وکالت له پاره کافي بللي وه ٠

د ولسي جرگي دطرزالعمل مطابق که د يوه پيشنهاد فوريت د لسو وکيلانو له خوا غوښتل سوی وي ، هغه پيشنهاد د ولسي جرگي د دارالانشأ له خوا فورا په مجلس کي لوستل کيږي ٠ او که د مجلس اکثرو غړو د پيشنهاد طرحه تاييد کړي ، نو هغه پيشنهاد په مجلس کي سمدلاسه تر بحث لاندي راځي ٠

ددغه پيشنهاد طرحه د ولسي جرگي د اکثر غړو له خوا تاييد سوه او دا پيشنهاد تر فوري بحث لاندي ونيول سو٠ په  دغه ورځ د پيشنهاد موافقو او مخالفو وکيلانو د

پیشنهاد پر موضوع باندي ډیر سالم بحث وکړ ۰ پښتنو وکیلانو به ویل چي دغه پیشنهاد عادلانه دی په دي چي دد غه پیشنهاد پر اساس پښتانه هم مکلف سوي دي چي دري ژبه زده کړي ۰ ولي دري ژبو وکیلانو به ویل چي دري ژبه د ډیري پخوا زماني څخه په افغانستان کي ددولت د اداراتو مروجه ژبه ده او ډیرو پښتنو هم دغه ژبه زده کړي ده ، ولي پښتو ژبه په هیواد کي نه ده تعمیم سوي او اوس د افغانستان ډیرو خلگو پښتو ژبه نه ده زده چي ددغه پیشنهاد په فوري تطبیق سره د افغانستان ډیر خلگ ددولت د ماموریت څخه محرومه کیږي ، چي دا یو تبعیضي عمل دی او باید ددغه پیشنهاد د فوري تطبیق مخه ونیوله سي ۰

د پیشنهاد په دوهمه ورځ دري ژبي وکیلان دولسي جرگي تالار ته را نه غله او د انتظار په خونه کي کښینستل ۰په دغه ورځ ولسي جرگه عملآ دوه خایه سوه ، چي نژدي سل وکیلان به د ولسي جرگي په تالار کي ناست وو ، او نژدي اویا وکیلان به د انتظار په خوني کي کښینستل ، چي دغه بلا تکلیفي دڅو میاشتو له پاره ادامه در لوده

د ولسي جرگي دروو غړو سید ظاهر شاه ، عبدالاحد کرزي او ببرك كارمل د مصلحینو په نامه د دواړو ډلو وکیلانو تر منځ تگ او راتگ پیل کړ ۰ ددوی څخه یو تن چي به هر وار د ولسي جرگي تالار ته راتي ، نو ده به ما او څو نورو وکیلانو ته ویل چي تاسي د ولسي جرگي په ټولو مسایلو کي مداخله کوی او په دغي موضوع کي چي ولسي جرگه یي دوه خایه کړي ده تاسي ولي بي غرضه ناست یاست ؟ ما ده ته په جواب کي وویل چي په افغانستان کي د ژبو مسأله ډیره حساسه ده ، چي په دغي مسألي کي باید هیڅوك بي خایه گوتي و نه وهي۰ موږ منتظر یو چي گوندي د افغانستان پاچا دغي حساسي مسألي ته ډیر ژر متوجه سي او په ولسي جرگي کي دغه بل شوي اور ژر مړ کړي ۰

څو ورخي وروسته د مصلحینو ډلي یوه نیمگړي فیصله وکړه چي ددوی فیصله سید ظاهر شاه د ولسي جرگي په تالار کي ولوسته۰ چي ددغي فیصلي پر اساس لس وکیلان د تالار څخه او لس وکیلان د انتظار خاني څخه ټاکل سوي وو ، چي دغه شل وکیلان باید سره کښیني او دغي معضلي ته د حل یوه لاره پیدا کړي ۰ چي زه هم د

تالار د وکیلانو څخه ټاکل سوی وم ۰ کله چي ددواړو خواوو نمایندګان سره یو ځای سول او په خبرو یي پیل وکړ ۰ د پیشنهاد مخالفو نمایندګانو چي به هر یوه خبري کولي دوی پر اصلي پرابلم نه ږغیدل او دوی به هر یوه د پښتو پر کورسونو انتقادونه کول دوی به د پښتو معلمان غندل ، او د هر یوه وروستې خبره به داوه چي ، پښتانه وکیلان باید خپل پیشنهاد بیرته واخلي ۰ دوی به دا هم ویل چي تر هغو پوري چي دغه پیشنهاد د ولسي جرګي په آجندا کي موجود وي ، دوی د ولسي جرګي عمومي مجلس ته نه حاضریږي ۰

د تالار د وکیلانو نمایندګانو به هر یوه په خپل وار سره دوی ته ویل چي ددغه پیشنهاد موضوع په احتیجاج یا په اعتصاب سره نه حل کیږي ، قانوني لاره داده چي ټول وکیلان د ولسي جرګي په تالار کي حاضر سي او پر دغي موضوع باندي جدي بحث وسي تر څو چي دغي معضلي ته د حل یوه لاره پیدا سي ۰ ددوی په جواب کي به مخالفو وکیلانو خپلي پخواني خبري ، د پښتو پر کورسونو باندي انتقاد ، د پښتو معلمان غندل او دا چي پښتانه دي خپل پیشنهاد بیرته واخلي تکرارول ۰

په پا ي کي ما دوی ته وویل چي وړونو ! دغه لس وکیلان چي د تالار څخه دلته راغلي دي ، دوې ټولو دغه پیشنهاد نه دې امضا کړې ۰ او موږ د پښتو ژبي د تعمیم له پاره دغه پیشنهاد یوه سمه لاره هم نه بولو۰ موږ ټوله د تقنین د کمسیون غړي یو ۰ که موږ د پښتو ژبي د تعمیم له پاره دغه لاره مفیده بللي وای ، موږ به د پیشنهاد موضوع د قانون په متن کي داخله کړي وای چي په هغه صورت کي به دغه پیشنهاد ته ضرورت هم نه وای پیدا سوې ۰ زموږ په نظر د پښتو ژبه باید د پوهني د وزارت له خوا په هیواد کي تعمیم سي ، چي ددغي لاري څخه به ټول هیوادوال په پښتو اودري ژبو وپوهیږي ۰ ما دوی ته دا هم وویل چي ستاسي دا خبره چي پښتانه دي خپل پیشنهاد بیرته واخلي ، زه هیله من یم چي دا خبره بلوار تکرار نه کړې ۰ په دي چي دا دیوه اکثریت پیشنهاد دې او تاسي صرف د هغه د تعدیل غوښتنه کولای سې ، چي زما په عقیده ښه لاره یي دا ده چي تاسي ټول وکیلان د ولسي جرګي تالار ته راسې او هلته دغه پیشنهاد و منې او د پیشنهاد پر دغي فقري باندي داسي یوه تبصره

ولیکــې (( دغه فقره لس کاله وروسته د تطبیق وړ ده چې په دغې لس کلنې موده کې به د افغانستان دولت د اساسي قانون د ۳۵ مې مادې د حکم مطابق ، د پښتو ژبې د انکشاف او تقویې له پاره به مؤثر اقدامات کړي وي او پښتو ژبه به په هیواد کې تعمیم سوې وي او ددغې لارې څخه به هیوادوال نورې ستونزې و نه لرې ))

متأسفانه چې د پیشنهاد مخالفو وکیلانو زموږ خبرې و نه منلې او موږ بیرته د ولسي جرګې تالار ته ورغلو. زموږ د مذاکراتو نتایج عزیزالله واصفي د تالار وکیلانو ته ووایه . د نتایجو په اوریدلو سره د تالار وکیلان ډیر هیجاني سول او ډیرو وکیلانو غوښتل چې د مخالفو وکیلانو سره تصادم وکړي . د تالار دغو لسو نمایندګانو د ولسي جرګې د تالار د وتلو لارې و تړلې او د وکیلانو د دغه احساساتي عمل مخه یې و نیوله . په پای کې د حصارک وکیل حاجي عبدالوهاب مګرفون ته نژدې سو او د وکیلانــو څخه یــې د آرامیدلو غوښتنه وکـړه . ده د تــالار لســو نمایندګانو تــه وویـل (( که تاسې دې ته حاضر یاست چې د تالار د وکیلانو د رهبرۍ د کمیټې په حیث ، ددغې معضلې د حل له پاره جدي اقدام کوی ، نو د تالار وکیلان به ستاسې خبره ومني او د معضلې حل به تاسې ته پریږدي ، او که تاسې تر دې وروسته خپله وظیفه ختمه بولې او دخیر پر غونډې کښیني ، نو لطفا زموږ په کارو کې مداخله مه کوې او زموږ د مخه څخه لیرې سې او د تالار وکیلان پریږدې چې دغه موضوع په خپله طریقه حل کړي )) لسو نماینده ګانو د تالار د وکیلانو دا خبره چې د معضلې حل ته به یوه لاره پیدا کړي ، و منله او غونډه پر دغه ځای پای ته ورسیده .

د تالار د وکیلانو نمایندګان عبدالرؤف بینوا ، عزیزالله واصفي ، محمد اسحق عثمان ، عبدالحمید زهري ، یارمحمد دلیلي ، عبدالکریم عمرخیل ، عبدالغفارفراهي او دري نور وکیلان وو چې نومونه یې اوس زما په یاد نه دي .

په لومړۍ مرحلې کې لسوو نمایندګانو تصمیم و نیوه چې باید پښتانه غیر حاضر وکیلان ولسي جرګې ته حاضر کړي . ددغه کار د اجرا کولو له پاره شپږ ګروپه وکیلان و ټاکل سول چې د افغانستان ولایتونو ته سفر وکړي . دوی په ډیر لږ وخت کې نژدې څلویښت وکیلان ولسي جرګې ته حاضر کړل .

د ولسي جرگي د طرزالعمل مطابق د ولسي جرگي تصا ميم د وکيلانو په دوه ثلثه آراوو نيول کيږي ، د ولسي جرگي د غړو شمير ( ۲۱۶ ) وکيلان دي ، چي د دغه تعداد وکيلانو څخه د ( ۱٤٤ ) وکيلانو په حاضريدلو سره د ولسي جرگي د غونډو نصاب پوره کيږي او ولسي جرگه د تصميم نيولو حق پيدا کوي ، څـرنـگه چـي د ديارلسمي تقنيني دوري وکيلان ، د ژبي پر اساس وشميرل سوه ، په دغي دوري کي ولسي جرگي ته تر ۱٤٤ ډ ير پښتانه وکيلان انتخاب سوي وو ۰ د دغي دوري د ټولو وکيلانو نومونه ددغه کتاب په ضميمه پاڼو کي لوستلای سي ۰

څو واره د ولسي جرگي په عمومي مجلس کي د وکيلانو شمير ۱۳۸ وکيلانو ته ورسيد ، او تر دغه تعداد اضافه وکيلان د ولسي جرگي په تالار کي نه کښينستل ۰ دولت او حکومت په دغه وخت کي سکوت اختيار کړي وو ۰ دوی د تالار وکيلان هم دي ته نه پريښودل چي خپل نصاب تکميل کړي او دغه موضوع يکجانبه په تصويب ورسوي ۰ په ولسي جرگي کي هغه وکيلان چي ددولت مشاورين وو ، دوی به هميشه په تالار کي د وکيلانو شمير ته متوجه وو ، او دوی به د ولسي جرگي مجلس نصاب پوره کولو ته نه پريښودې ۰ د مثال په توگه : هر وخت چي به د ولسي جرگي په تالار کي د وکيلانو شمير نصاب نيولو يعني ۱٤٤ ته نژدي کيدې ، په دغه حساس وخت کي به چي هر وکيل د ولسي جرگي تالار ته داخليدې ، نو په مقابل کي به يو يا دوه وکيلان بيرته د تالار څخه وتل ۰ ددولت مشاورينو به د مختلفو تکتيکونو څخه استفاده کوله ۰ دوی به خينـي وکيلان پـه دي بهانـه چي تيلفون تـه دي غواړي او يـا د بـانـدي د يوه سړي په کار يـي ، او داسـي نورو چلـونـو خيني وکيلان د تـالاره څخه ايستل او د مجلس نصاب بـه نـه پوره کيدې ۰

د تالار وکيلانو به هره پنجشنبه د يوه ولايت د وکيلانو په ميلمستيا کي برخه اخسته او هلته به لس کسيزه هيأت خپل د اجراآتو راپور دوی ته وړاندي کاوه ۰ دغه هيأت د مشوري اخستلو له پاره د خينو مشرانو سره چي اروابښاد محمد هاشم ميوندوال هم په دغي ډلي کي و ، د پغمان د کشکك په بڼ کي چي د محمد اسحق عثمان ملکيت و ، يوه غونډه وکړه ۰ ددغي غونډي تفصيل د روزگار په جريدي کي خپور شوی دی ۰

د کابل په ملي جرايدو کې د پښتنو او دري ژبو له خوا نشرات کيدل ، چې وروسته تر دې د ژبو مسأله يوازې په ولسي جرگې پورې منحصره نه وه ، بلکه دا موضوع په ټول هيواد کې خپره سوه او د افغاني جامعې ټول قومونه يې و ښورول ولې د پيشنهاد مخالفينو به د افکار نو په جريدې کې چې د امتياز خاوند يې نورالله نورزاد او مسؤول مدير يې ضيأ حيدري و ، د پښتنو پر ضد ډير زهرجن مطالب نشر ته سپارل. دپښتنو له خوا په افغان ، روزگار او کاروان په جرايدو کې خينې مطالب نشريدل . پښتنو وکيلانو په خپلو نشراتو کې د افغانستان هيڅ قوم ته بد نسبت نه دې کړې ، بلکه دوی يوازې د افغانستان ددولت هغه فرمانونه او احکام چې د پښتو ژبې د تعميم او تقويې په هکله په مختلفو دوروو کې مخصوصا د سردار محمد نعيم خان د پوهنې د وزارت په وخت کې صادر سوې وو ، نشر ته سپارل . چې دغه ټول مطالب داروابښاد عبدالرؤف بينوا له خوا تهيه کيدل.

لس کسيز هيأت د مارشال شاه ولي خان کور ته ددې له پاره ورغلې وو چې دده څخه ددغې معضلې د حل په لارې کې مرسته و غواړې . مارشال صاحب په دغې موضوع کې خپله بې طرفې و ښودله او هيأت ته يې توصيه وکړه چې دده د زوی سردار عبدالولي سره ووينې. هيأت د سردار عبدالولي کور ته هم ورغې ، په دغو دواړو مجلسونو کې د پاچا سرياور جنرال محمد عمر خان هم حاضر و.وکيلانو سردار عبدالولي ته د ژبو معضله تشريح کړه ولې ده د وکيلانو په جواب کې هيڅ و نه ويل . ما سردار عبدالولي ته د اساسي قانون ۳ ۵ مه ماده ولوسته چې په دغې مادې کې د افغانستان دولت مکلف سوې دې چې د پښتو ژبې د انکشاف او تقويې له پاره لازم اقدامات وکړې . زما په گمان چې سردار عبدالولي په خپل کور يا دفتر کې اساسي قانون نه درلود ، ده په هغه ورځ د پاچا سرياور جنرال محمد عمر خان ته وويل چې ده ته يو اساسي قانون پيدا کړې ، چې ما خپل اساسي قانون ده ته ورکړ .

څه موده وروسته د پښتنو وکيلانو يوه ليکنه ( د وکيلانو قانوني موقف ) تر عنوان لاندې و په افغان جريدې کې چاپ سوه . ولې حکومت د اساسي قانون د ۳۱ مادې د حکم پر خلاف د جريدې دغه گڼه په دولتي مطبعې کې قيد کړه . د افغان د جريدې

چلونکي محمد حسن ولسمل د حکومت ددغه اقدام اطلاع ولسي جرگي ته ورکړه. د ولسي جرگي د تالار وکیلان د حکومت په دغه عمل ډیر خوابدي سوه او ټول وکیلان صدارت ته ورغله. صدر اعظم خپله کابینه په لږ وخت کي حاضره کړه او یوازي د صدارت مرستیال ډاکټر عبدالصمد حامد او دخارجه چارو وزیر محمد موسي شفیق په نامعلوم علت په صدارت کي د وکیلانو لیدلو ته حاضر نه سول .

په سر کي صدر اعظم ډاکټر عبدالظاهر چي په تیري دوري کي د ولسي جرگي رئیس و او د حاضرو ډیرو وکیلانو سره یي پیژندل ، ده د وکیلانو د حساسیت د کمولو له پاره د خینو وکیلانو سره ټوکي کولي . په هغي لحظي کي عبدالرؤف بینوا وکیلان مخاطب کړه او وي ویل (( هلته د پښتو جنازه اخسته کیږي او دلته تاسي خاندئ )) چي د عبدالؤف بینوا تر دغه اعتراض وروسته وکیلان بیرته ډیر جدي سوه.

په دغه ورځ د صدارت په ماڼي کي نژدي (١١٠ )وکیلان حاضر سوي وو او د دوی په نماینده گئ عزیزالله واصفي حکومت ته وویل چي حاضرو وکیلانو ستاسي حکومت ته د اعتماد رایه درکړي وه او په ولسي جرگي کي یي ستاسي د حکومت سره مرسته کوله ، ولي ستاسي حکومت ددوی یوه قانوني لیکنه په دولتي مطبعي کي قید کړي ده په دغه اساس دوی فیصله کړي ده چي خپل د اعتماد رایه ستاسي د حکومت څخه بیرته واخلي ، په هغي لحظي کي ټولو وکیلانو د نه اعتماد لاسونه پورته کړه .

د وکیلانو تر دغه تصمیم وروسته د اطلاعاتو او کلتور وزیر محمد ابراهم عباسي او خینو وکیلانو پر انجام شوي مسألي باندي خبري پیل کړي . په دغه وخت کي ما وکیلانو ته وویل چي د وکیلانو فیصله د حکومت په اطلاع ورسیده ، پر دغي موضوع باندي نور بحث نه سي کیدلای او وکیلان باید د صدارت د ماڼي څخه ووزي. غونډه پر هغه ځای پای ته ورسیده او وکیلان بیرته ولسي جرگي ته ولاړه .

د وکیلانو ددغه اقدام په نتیجه کي څو میاشتي وروسته د ډاکټر عبدالظاهر حکومت مستعفي سو او دده پر ځای محمد موسي شفیق صدر اعظم سو . او د محمد موسي شفیق د حکومت په وخت کي د ژبو موضوع داسي حل سوه :

د محمد موسي شفيق حکومت اراده کړي وه چي د ايران د حکومت سره د
هلمند د اوبو معاهده لاس ليك کړي ٠ او دغه معاهده بايد په ولسي جرگي کي په
تصويب ورسيږي ٠ د ولسي جرگي د طرزالعمل پر اساس ددي له پاره چي د هلمند د
اوبو معاهده د ولسي جرگي د مجلس په آجندا کي داخله کړه سي ، بايد د ولسي
جرگي په عمومي مجلس کي دوه واره رايه واخسته سي ٠ چي د اول وار له پاره بايد د
ژبو مسأله چي د مجلس په آجندا کي پرته ده ، د وکيلانو د اکثريت رايو په وسيله د
غونډي دآجندا څخه وه ايستله سي ٠ او په دوهمي رايو اخستلو کي د هلمند د اوبو
معاهده د مجلس په آجندا کي ونيول سي٠ په دغه هکله د تالار د لس کسيز هيأت خينو
غړو پاچا ته اطلاع ورکړه چي پښتانه وکيلان دي ته حاضر نه دي چي د پښتو ژبي
پيشنهاد د هلمند د اوبو د معاهدي له پاره د مجلس د آجندا څخه و باسي ٠ او که پاچا
پر دوی باندي فشار راوړي ، ډير پښتانه وکيلان به د ولسي جرگي د عضويت څخه
استعفا وکړي ، چي په هغه صورت کي به د هلمند د اوبو معاهده هم په ولسي جرگي
کي په تصويب و نه رسيږي ٠ پاچا او صدراعظم دواړو د ژبو د پيشنهاد مخالفو
وکيلانو ته سپارښتنه وکړه چي د ولسي جرگي عمومي غونډي ته حاضر سي . دوی تر
شپږو مياشتو اعتصاب وروسته عمومي غونډي ته حاضر سوه او د غونډي منشي سيد
مبين شاه امير د ژبو پيشنهاد د دوهم وار له پاره ولوست او دغه پيشنهاد د رايو په
اتفاق په تصويب ورسيدي . مهمه خبره داده ، که پورته لارښودنه شپږ مياشتي پخوا د
پيشنهاد مخالفو وکيلانو ته د پاچا او صدر اعظم له خوا سوي وای او دوی د عمومي
غونډي څخه نه وای وتلي نو دغه ملي نفاق به په هيواد کي نه وای پيدا سوی . داسي
ښکاري چي د ژبـو د پيشنهاد د مخالفـو وکيلانـو رهبري د افغانستان د دولت په لاس
کـي وه چـي ( دولت په خپله کرل او هم په خپله يي ريبل ) اما په افغاني ټولني کي
ولسي جرگه په دغه کار غندل کيدله . ډيرو هيواد والو ته به دا سوال پيدا سي چي ولي
يوي ډلي وکيلانو د ژبي د پيشنهاد سره مخالفت کاوه او بيا ولي دغه پيشنهاد د ولسي
جرگي د ټولو غړو له خوا و منل سو ؟ زما په گمان د پورته پوښتني ښه جواب به دا
وي چي دغه پيشنهاد يوازي يوه قانوني حيله وه چي د ډاکټر عبدالظاهر د مستعفي

کیدلو له پاره طرحه شوی و ، او کله چي دوی خپل دغه هدف ته ورسیدل نو بیایي
شاید د پیشنهاد مخالف وکیلان په دي خبره قانع کړي وي چي ستره محکمه به دغه
پیشنهاد تفسیر کړي او د پښتو او دري ژبو د پوهیدلو معیار به د ۱۲ صنف شهادتنامه
کافي و بلل سي ، چي د ۱۲ صنف شهادتنامه د یوه مامور د استخدام د شرایطو څخه
هم وه . که پورته گمان حقیقت ولري نو دا به د حکومت د نوي کاندید له پاره مناسب
کار نه وي چي په داسي حیلو چي د ملي نفاق په قیمت تمامیدی ، برحاله حکومت
استعفا کولو ته مجبور کړي .

د ملکي مامورینو قانون په ولسي جرگي او مشرانو جرگي کي تصویب سو
او د افغانستان پاچا هم توشیح کړی دی .

## ۲۰ ـ د وچ کالي په وخت کي ولسي جرگي نصاب نه درلود

په ۱۹۷۱ او ۱۹۷۲ کلونو کي چې د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت دوره وه په
افغانستان کي یوه بي ساري تباه کونکي لوږه او وچ کالي راغلي وه چي په دغو کلونو
کي واوره او باران لږ اوریدلې و . په نتیجه کي د غنمو او نورو خوراکي موادو د
حاصلاتو مقدار په ډیره پیمانه لږ سوی و ، او د افغانستان د لویدیز او مرکزي ولایتونو
ډیر خلگ د لوږي څخه مړه سول او د غور ، بادغیس او د هرات ځینو خلگو د
افغانستان نورو سیمو ته کډه وکړه او ددغو سیمو ځینو خلگو خپل اولادونه خرڅ کړه ،
او په دغو کلونو کي په ټول هیواد کي ډیر څاروي تلف سوه . چي دډیرو هیوادوالو په
عقیده ، دغه ملي فاجعه د حکومت د نارسایي څخه پیښه سوی وه.

په ولسي جرگي کي د هرات د ښار وکیل اروابښاد محمد شاه رحمتیان ، د ولسي
جرگي ډیر وکیلان د زرنگار په پارك کي د حکومت پر ضد د یوي مظاهري له پاره
وهڅول . چي د وکیلانو دغه مظاهره د ۲ ۷ ۹ ۱ کال د اپریل په میاشتي کي کیده .
چي د وکیلانو ددغي مظاهري وخت د کابل په پوهنتون او د حکومت په ډیرو اداراتو
کي د خلگو په اطلاع رسول سوې و . او پر ټاکلي وخت ډیر خــلــگ د زرنگار پــه
پارك کي را ټول سوي وو . په ورستیو لحظو کي وکیلانو خپل تصمیم واړاوه او د

مظاهري پر ځای ، دوی د حکومت څخه د استیضاح په لټه کي سوه٠ چي په دغه هکله د هرات د ولایت د انجیل د حوزي وکیل عبدالقدوس مومند د فراه ، هرات ، غور او بادغیس وکیلان د باغ بالا په رستوران کي میلمانه کړه ٠ په دغي میلمستیا کي د حکومت څخه د استیضاح د غونډي پیشنهاد و لیکل سو ، دغه پیشنهاد د ولسي جرگي دارالانشأ ته وسپارل سو ولي د استیضاح دغه مجلس جوړ نه سو ، په دي چي د حکومت په لاربښودنه د ولسي جرگي عمومي مجلس د نصاب څخه ولوید ٠د افغانستان د ستونزو او د هیواد د بي ساري لوړي سره د مقابلي په غرض د ولسي جرگي ډیر وکیلان مجبور سوه چي د ۱۹۷۲ کال د اپریل د میاشتي پر ۱۲ نیټه د یوي تقاضا نامي په ترڅ کي د ولسي جرگي د غیر حاضرو وکیلانو څخه غوښتنه وکړي چي په دغه تاریخي حساس وخت کي خپلو وظایفو ته ډیر ژر حاضر سي٠ ددغي تقاضا نامي متن څو وکیلانو جوړ کړی او د هرات د لومړی حوزي د وکیل سید رسول فکور په قلم لیکل سوی دی د وکیلانو دغه تقاضانامه د هیواد په جرایدو کي خپره شوه٠ صباح الدین کشککي د وکیلانو ددغي تقاضانامي متن په خپل اثر کي لیکلی دی . ( ۱ ۳ )

ددغــه تاریخــي سند اصلي پاڼه چي پر هغي باندي تر ( ٦٠ )ډیرو وکیلانو لاس لیکونه کړي دي ددغه کتاب په ضما یمو کي لوستلای سی ٠

## د ولسي جرگي په باب څو نوري خبري

څرنگه چي ولسي جرگه د سیاسي احزابو پر بنا نه وه جوړه سوی ، نو ځکه ځیني وکیلان مجبور سوه چي د قومي یا اداري واحدونو پر بنا پر مختلفو ډلو وویشل سي ، لکه د مشرقي ( ننگرهار ، لغمان ، کنړ ) د وکیلانو ډله ، د پکتیا ( پکتیا ، خوست ، پکتیکا ) د وکیلانو ډله ، د هزاره قوم د وکیلانو ډله او داسي نوري ډلي . په دوولسمي تقنیني دوري کي د نورزو د قوم ډله هم جوړه سوی وه ولي په دیارلسمي تقنیني دوري کي دغه ډله مصلحتا جوړه نه سوه .

ـ ډاکټر محمد وردگ د پاچا له خوا شاید په دي دلیل د ولسي جرگي د

رياست له پاره هڅول سوی وي چي دده پلار عبدالاحد خان مايار هم يو وخت د شورا ريس و . ډاکټر وردگ د خپل رياست په وخت کي د ډيرو مشکلاتو سره مخامخ سو ، د مثال په توگه : يوه ورځ په عمومي غونډي کي پر يوي موضوع باندي د بحث په وخت کي ځينو وکيلانو دی په دي متهم کړ چي د رياست دنده په بي طرفی پر مخ نه وړي ، نو د گڼ دريخ د وکيلانو په شمول ډير وکيلان د اعتراض په نامه د عمومي غونډي څخه ووتل او د ډيرو ورځو له پاره يي په انتظار خاني کي د ولسي جرگي پر نيمگړتياو خبري کولي ، او په دغي مودي کي ډاکټر وردگ هم د ناروغی په نامه ولسي جرگي ته نه راتی ، په هغو ورځو کي آوازي هم خپري سوي وي چي ډاکټر محمد يوسف به د غلام محمد فرهاد پر ځای وکيل سي چي بيا به د ولسي جرگي په رياست وټاکل سي . د گڼ دريځ وکيلانو فيصله وکړه چي ډاکټر وردگ چي يو سپيڅلی افغان و بايد خپلي وظيفي ته ادامه ورکړي چي ددغي فيصلي پر اساس بله ورځ دی او ټول وکيلان د ولسي جرگي تالار ته ولاړه او دغه معضله پر همدغه ځای پای ته ورسيدله .

## ۲۱ ـ د محمد داود خان سره کتنه

په ۱۹۷۲ کال کي د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت په ورستيو مياشتو کي ، ما يوه ورځ په خارجه وزارت کي د خپلو پخوانيو همکارانو سره چي سيد وحيد عبدالله هم هلته حاضر و د ولسي جرگي پر جرياناتو خبري کولي ۰ د هغي ورځي په ماښام سيد وحيد عبدالله ما ته په تيلفون کي وويل (( ما د ورځي د صحبت جريان محمد داود خان ته بيان کړ ، ده آرزومندي و ښووله چي که ته دده د ليدلو له پاره ورسي . ))

زه پر ټاکلي وخت د محمد داود خان کور ته ورغلم او دده ناظر باز محمد خان زه د ناستي خوني ته رهنمايي کړم او محمد داود خان د خپل کور ددوهم پوړ څخه راکښته سو ، ده بالاپوش اغوستي و او خولي يي هم پر سر وه ، داسي ښکاريده چي په هغي لحظي کي دي د قدم وهلو څخه غبرگ سوي وي ۰

ما د محمد داود خان تر ليدلو دمخه د افغانستان پاچا محمد ظاهر شاه څو واره ليدلي و ، د ليدلو په پيل کي به پاچا په خپله د هيواد پر مسايلو خبري کولي او مقابل

طرف ته به يي د ډيرو خبرو موقع نه وركوله ، ولي محمد داود خان لومړې زما څخه د ولسي جرګي جريانات او د هيواد پر حالاتو پوښتني وكړي ۰

ما د هيواد د حالاتو په برخه كي محمد داود خان ته وويل (( لكه چي تاسي خبر ياست دا ډيره موده كيږي چي د پوهنتون شاګردان د اعتصاب په حالت كي دي ، په ټول هيواد كي لوږه او وچ كالي ده او د هيواد په څينو برخو كي خلګ د لوږي څخه مري ، ولسي جرګه نصاب نه لري چي د حكومت څخه استيضاح وكړي . ) )

محمد داود خان زما په جواب كي وويل ( ( شورا خپله وظيفه نه ده اجرا كړي او د افغانستان منورين خپلو مسؤوليتونو ته متوجه نه دي ۰ ))

ما محمد داود خان ته وويل چي د افغانستان منورين پر ډلو ويشل سوي دي او دوی په خپلو منځونو كي په مبارزه اخته دي ، او د افغانستان ولسي جرګه چي د افرادو يوه جرګه ده ، تر هغو چي دغه جرګه نصاب و نه لري ، نو ددغي جرګي مؤثريت ډير لږ وې ۰ په هغي لحظي كي چي ما د محمد داود خان سره خبري كولي ، ما د خپل عادت مطابق په ورين تندي او غيري جدي لهجي د هيواد پر مسايلو بحث كاوه چي زما د صحبت دغه طرز د محمد داود خان خوښ نه سو ۰ ده ما ته وويل (( ته مه خانده زه جدي خبري كوم )) ده زياته كړه (( د هيواد د ټولو اوسني بدبختيو اصلي عامل په خپله پاچا دی ، تر هغه وخته چي د پاچا چاره و نه سي ، تر هغو به په افغانستان كي ښه ورځ را نه سي . ))

ما محمد داود خان ته وويل چي زه اوس د يوه وكيل په حيث ستاسي سره خبري كوم ، او د افغانستان اساسي قانون يوه وكيل ته اجازه نه وركوي چي د پاچا سره مخالفت وكړي ۰ ده تر پخوا لا په جدي لهجي ما ته وويل (( تاسي د خپل هيواد د خلګو په مقابل كي مسئووليت لرې ، او په دغو بهانو چي اساسي قانون تاسي ته اجازه نه دركوي تاسي خانونه غولوې . ) )

ما تر دي پخوا محمد داود خان نه و ليدلې او د پاچا په هكله دده په عقيدي نه پوهيدم ۰ ما تصور نه كاوه چي دې به د پاچا سره تر دي حده مخالف وې ۰ زما په شمول د افغانستان ډيرو خلګو داسي فكر كاوه چي دوی دواړه د افغانستان د سلطنتي

کورني مشران دي او په ملي او بین المللي سویه د دواړو ښه احترام کیږي او خلگ په دي نه پوهیدل چي دوی پر څه شي اختلاف سره لري ۰ ځینو خلگو د پاچا او محمد داود خان مخالفت د سلیقي اختلاف باله نه د عقیدي ، نو په دغه لحاظ ددوی پر اختلافاتو باندي هیڅا د دښمنۍ او کودتا تر سرحده تبصره نه کوله ۰

په پای کي ما د محمد داود خان څخه پوښتنه وکړه چي ستاسي په نظر وکیلان باید څه وکړي ؟ محمد داود خان زما پر دغي پوښتني هیڅ تبصره وه نه کړه او د بحث موضوع یي واړوله ۰ امکان لري چي دی په هغو ورځو کي د کودتا په فکر کي و ولي زه دده په کودتا خبر نه وم ۰

## ۲۲ ـ حکومت د وکیلانو په حاضریدلو خوشحاله نه و

ډیر افغانان په دي عقیده دي چي ددیموکراسۍ دوري وکیلان د وکالت د مقام مستحق نه وو او دوی خپلو ملي وظایفو ته پاملرنه نه درلوده ۰ زما په نظر د ولسي جرگي د نصاب په برخه کي تر وکیلانو د حکومت ملامتي ډیره وه ۰ په دي چي په اکثرو حالاتو کي حکومت نه غوښتل چي ولسي جرگه نصاب ولري ، د حکومت ډیر وزیران په دي عقیده وو چي د نصاب په صورت کي ولسي جرگه د تصمیم قدرت پیدا کوي او حکومت ته مشکلات جوړوي۰

په دیارلسمي تقنیني دوري کي څو واره حکومت په ولسي جرگي کي لاس وهنه کړي ده چي څو مثالونه یي په همدغه کتاب کي راوړل سوي دي .

زه داخبره نه سم منلای چي څوك ووایي چي وکیلان پر خپل سر یاغیان شوي وو او د ولسي جرگي عمومي مجلس ته نه حاضریدل۰ ما نه دي اوریدلي چي پاچا ، صدراعظم یا کوم وزیر په عادي حالاتو کي د کوم وکیل څخه غوښتنه کړي وي چي ولسي جرگي ته حاضر سي۰ که پاچا یا صدر اعظم د ولسي جرگي د نصاب د پوره کولو په برخي کي وکیلانو تـه توصیه کړي وای ، زه یقین لرم چي یوه ورځ به هم ولسي جرگه بـي نصابه نه وای ، که د هر ولایت والي د وکیلانو څخه غوښتنه کړي وای چي کابل ته ولاړ سي ۰ زه باور لرم چي د شورا د اجلاس په ورځو کي به هیڅ وکیل په خپل

کلي کي نه پاته کيدې زما په نظر اراده داسي وه چي دولسي جرگه نصاب پوره نه سي او په دغه حالت کي به حکومت ددوی له شره څخه خلاص وي ۰

پاچا او حکومت د وکيلانو سره د ارتباط له پاره ډير چينلونه درلودل چي د ضرورت په وخت به ددغو لارو څخه وکيلانو ته رهنمايي کيدله ۰ د مثال په توگه :

د ستري محکمي د دارالانشأ آمر ډاکټر وليد حقوقي به په فوق العاده حالاتو کي د ولسي جرگي سره د ارتباط وسيله وه ۰ د پارلماني رياست له لاري څخه هم د خينو وکيلانو سره تماس نيول کيدې ۰ د پاچا د حضور مصاحب محمد رحيم خان پنجشيري او د دربار د تشريفاتو رئيس عثمان شير علومي هم ډيرو وکيلانو ته لارښودنه کوله ۰ د تجارتي بانك رئيس جنت خان غروال د پکتيا د ولايت او د هيواد دنورو سيمو د وکيلانو سره په ارتباط کي و ۰ زما په شمول په ولسي جرگي کي د افغانستان د جنوب غرب د حوزو د وکيلانو سره د سلطنت ارتباط د پاچا د سرياور جنرال محمد عمر خان نورزي په وسيله ساتل کيدې ۰ ما اوريدلي دي چي پاچا اراده کړي وه چي جنرال محمد عمر خان په ترکيي کي د سفير په حيث مقرر کړي ، څرنگه چي په ديارلسمي تقنيني دوري کي د نورزوو د قوم څوارلس فعال وکيلان ولسي جرگي ته ورغلي وو ، نو پاچا لازمه وبلله چي د نورزوو وکيلانو سره د ارتباط له پاره د خپل سرياور سفارت د څه مودي له پاره وځنډوی۰

په دي کي شك نه سته چي د نصاب په نه پوره کيدلو سره د ولسي جرگي اعتبار ته لويه صدمه ورسيده ، ولي په يوي غير حزبي شورا کي د نصاب د معضلي حل آسانه کار هم نه دې ۰ څرنگه چي لوستونکي پوهيږي د نړې په ديموکراسي نظامونو کي پارلمانونه د احزابو پر بنا جوړيږي او هر حزب دنده لري چي د خپل حزب غړي پارلمان ته حاضر کړي ، چي په مهمو حالاتو کي احزاب حتي خپل ناروغه غړي پارلمان ته حاضروي ، چي د ۱۹۹۸ کال د آگست په مياشت کي په ايتاليا کي دغسي يوه پيښه وسوه چــي د حکومت مخالفــي ډلــي خپل د حزب يــو غړې په امبولانس کي پارلمان ته حاضر کړ۰

په ديارلسمي تقنيني دوري کي دوه پيشنهادونه ولسي جرگي ته وړاندي سول ۰

لومړي پیشنهاد چي یو مؤثر پیشنهاد و چي په هند او خینو نورو هیوادونو کي عملي کیږي ۰ هغه داسي و ( په افغانستان کي چي د یوه وکیل معاش اته زره افغاني و ، پر دوو برخو ویشل کیدې چي یو وکیل به په هر حالت کي دڅلور زرو افغانیو مستحق کیدې ۰ ولي نوري څلور زره افغاني د حق الحضور په نامه تثبیتیدلي چي یو وکیل به د حاضریدلو په صورت کي ددغو پیسو مستحق کیدي ) دغه پیشنهاد عملي نه سو ۰

دوهم پیشنهاد چي یو بې ګټي پیشنهاد و ، چي د ولسي جرګي د عمومي مجلس په ورځو کي د وکیلانو حاضري اخستل کیدله او د غیر حاضرو وکیلانو نومونه به په کابل راډیو کي خپریدل۰ متأسفانه چي دغه کار ګټه و نه کړه ۰ په دې چي ځني وکیلان په دې خوشحاله کیدل چي ددوی نومونه په راډیو کي یادیږي ۰ ما ته په فراه کي یوه سړي وویل چي په ولسي جرګي کي ستا ږغ نه سته ، لکه چي هلته ډیر فعالیت نه کوې ۰ ما دده څخه پوښتنه وکړه چي ته څه پوه سوې چي زه په ولسي جرګي کي فعاله نه یم ۰ ده زما په جواب کي وویل چي زه ددې څخه پوهیږم چي د وکیلانو په ډلي کي په راډیو کي ستا نوم نه یادیږي ۰ چي دده مقصد د غیر حاضرو وکیلانو ډله وه چي ښایي دي سړي په ټوکه دغه خبره ما ته کړې وي ۰

هر وخت چي پاچا یا حکومت اراده کړې وي چي د ولسي جرګي مجلس باید نصاب و لري ، نو په هغه وخت کي تر نصاب ډیر وکیلان ولسي جرګي ته حاضر شوي دي ۰ د مثال په توګه :

- د ولسي جرګي په افتتاحیه غونډو کي اکثر وکیلان حاضر وو۰
- د ولسي جرګي د رئیس د ټاکلو په وخت کي د جرګي ډیر وکیلان حاضروو۰
- د نور احمد اعتمادي ، ډاکټر عبدالظاهر او محمد موسي شفیق د حکومتونو د اعتماد د رایو په غونډوکي د مجلس تر نصاب ډیر وکیلان حاضر وو ۰
- د صنعتي بانك د قانون د تصویب په وخت کي د ولسي جرګي نصاب پوره وو۰
- کله چي دولت اراده وکړه چي د ژبو مسأله دي په ولسي جرګي کي تصویب سي نو دري ژبي وکیلان چي د شپږو میاشتو له پاره د اعتصاب په حالت کي وو د ولسي جرګي تالار ته حاضر سول ،

ـ کله چي دولت غوښتل چي د هلمند د اوبو معاهده په ولسي جرگي کي تصويب سي ، نو د ولسي جرگي اکثر وکيلان حاضر وو ۰

پورته څو مثالونه دا ثابتوي چي هر وخت چي دولت يا حکومت اراده کړي وي چي د ولسي جرگي نصاب بايد پوره سي ، نو په هغه وخت کي ډير وکيلان ولسي جرگي ته حاضر سوي دي ۰

## د نصاب په هکله يوه ټوکه

په ولسي جرگي کي يکشنبه ، دو شنبه او سه شنبه د عمومي مجلس ورځي وي چي په دغو ورځو کي به وکيلان د سهار پر نهو بجو د ولسي جرگي په تالار کي حاضريدل۰ کله چي به مجلس نصاب نه درلود ، حاضر وکيلان به مجبور وو چي د غرمي تر دولسو بجو پوري د ولسي جرگي په تالار کي کښيني ، چي دا دري ساعته انتظار اکثر وکيلان ستړي کړي وو او هر يوه به بي اختياره د بل څخه پوښتنه کوله چي آيا نن به د مجلس نصاب پوره سي او که يه ؟ ما به هميشه ادعا کوله چي زه په دي پوهيږم چي د مجلس نصاب پوره کيږي او که يه ؟ ما به د وکيلانو د پوښتنو په جواب کي دوی ته ويل چي تر هغه پوري چي د وکيلانو څخه پاچا ياحکومت د نصاب د پوره کيدلو غوښتنه و نه کړي وکيلان خانونه مکلف نه گڼي چي د مجلس نصاب پوره کړي۰ او د مجلس د نصاب پوره کيدل د لاندي حالاتو څخه معلوميدلای سي :

ـ د سهار له خوا چي د وکيلانو ميني بسونه ولسي جرگي ته راځي بايد وکتل سي چي دا واړه بسونه ډك دي او که خالي ۰ که بسونه خالي وو نــو معنا يي دا ده چي وکيلان په لاري کــي د بسونو څخه کښته شوي دي او پــه دغــه ورځ د مجلس نصاب نه پوره کيږي۰

ـ که د وکيلانو ميني بسونه ډك راسي ، بايد وکتل سي چي وکيلان د ولسي جرگي تالار ته ځي او که دوی په کمسيونونو ننوزي ۰ که وکيلان خپلو کمسيونونو ته ننوتل، نو دوی د خپلو مؤکلينو سره په ولسي جرگي کي يو ځای کيږي او بيرته د ولسي جرگي څخه وزي او د مجلس نصاب نه پوره کيږي ۰

ـ که ولسي جرگي ته ميني بسونه ډك راسي او وکيلان مخامخ د ولسي جرگي تالار

ته ولاړ سي ، بيا هم بايد وكتل سي چي تر حاضرې اخستلو وروسته دوى په تالار كي پاته كيږي او كه يه ؟ كه وكيلان تر حاضري وركولو وروسته بيرته د تالار څخه ووتل په دغه ورځ هم د مجلس نصاب نه پوره كيږي ٠

ـ كه د ولسي جرگي ميني بسونه يوك راسي او وكيلان په ډير تلوار سره مخامخ د ولسي جرگي تالار ته ورننوزي او هلته آرام كښيني په دغه صورت كــي د مجلس نصاب پوره كيږي ٠

وروسته ډير وكيلان په دي پوهيدل چي د مجلس نصاب پوره كيږي او كه يه ؟

## ۲۳ ـ د سپين ږرو جلبيانو موضوع

په ۱۹۷۰ كال كي حكومت اراده وكړه چي د كار د قواو په چوكاټ كي د شني قوي په نامه د كار يو يونټ جوړ كړي . ددغه كار له پاره د دفاع ، داخله او كرني د وزارتونو لوړ رتبه مامورين د لوى درستيز جنرال غلام فاروق خان تر مشري لاندي د يوه هيأت په څير و ټاكل سول ٠ دغه هيأت فيصله وكړه چي د هيواد ۲۸ كلن احتياط عسكر د شني قوي له پاره بايد جلب كړه سي ٠ حكومت نژدي څلور زره احتياط عسكر چي ډير يي ۵۰ يا ۶۰ كلن سپين ږيري خلگ وو ، چي اكثر دغه خلگ د فراه د ولايت څخه جلب كړه شوي وو ٠

دهمدغه كال په ژمي كي به هره ورځ ددغو سپين ږرو جلبانو څخه څو كسانو ما او د فراه نورو وكيلانــو تــه مراجعه كوله او موږ به يي د حكومت په دغه غير عادلانه اقدام خبرولو ٠

د يــوه زاړه جلبي ژړا او تأثر بــه هيځكله زمــا لــه ياده و نــه وزي ، دا سړي پنځوس كلن و او د بالابلوك د ولسوالي د ( زير كوه ) د كلي اوسيدونكې و ، ده ما ته وويل (( يوه ښځه او دوه كوچني اولادونه مي تر شا پري ايښي دي او هغه وخت چي زه ديخوا ته راتلم ، موږ په كور كي صرف دري منه غنم درلوده ، او موږ په خپل كور كي يو تلتك درلود چي هغه تلتك ما دخانه سره راوړى دى ، زه اوس نه يــم خبر چي زما اولادونه به ژوندي وي او كه يه ؟ ))

زما په غوښتنه د ولسي جرگې ددفاع د وزارت کمسيون فيصله وکړه چي د حکومت څوارلس کسيز هيأت د کمسيون غونډې ته ور وغواړي چي د زړو جلبيانو پر موضوع باندي ددوی څخه پوښتني وکړي ۰ هيأت پر ټاکلي وخت د کمسيون غونډې ته حاضر سو ، زما په شمول د تقنين د کمسيون څلورو غړو هم د دفاع د کمسيون په دغي غونډې کي برخه اخستي وه ۰ هر وکيل په خپل وار سره د حکومتي هيأت ددغه غير عادلانه اقدام غندنه کوله ۰ د وکيلانو څخه عبدالکريم عمرخيل او ميرزا فخرالدين خان د عسکري مکلفيت په قانون ښه پوهيدل ، دوی دواړو د حکومت دغه اجراآت د قانون خلاف و بلل چي په آخر کي حکومتي هيأت ادعا وکړه چي د وکيلانو دا خبره چي حکومت سپين ږري خلگ جلب کړي دي بي اساسه ده ۰ په هغي لحظي کي د فراه د ولايت د بکوا د ولسوالۍ وکيل محمد زمان خان هغه ۰ ۵ سپين ږري جلبيان چي د فراه د ولايت وکيلانو د شورا په محوطه کي ځای پر ځای کړي وو ، کمسيون ته راوستل ۰ دغو جلبيانو خپلي عسکري دريشۍ اغوستي وي او په کمسيون کي پر مخکه کښينستل ددوغو جلبيانو په ليدلو سره وکيلان او د هيأت غړي متأسف او متعجب سول ۰ د هيأت غړو د وکيلانو په مخ کي يوه د بل سره مناقشه پيل کړه چي د کرنې د وزارت معين ډاکټر محمد احسان رفيق په دغي غونډې کي خپل ډير تأثر ښکاره کړ ۰

لوی درستيز جنرال غلام فاروق خان د خپل ځايه څخه ولاړ سو او دغو جلبانو ته يي وويل چي تاسي ټولو ته ترخيصونه درکوم ۰ ما دغه هيأت ته وويل چي دغه سپين ږري حاضر خلگ د څلورو زرو نورو خلگو يوه نمونه ده چي ستاسي د قانوني تخلف د اثبات له پاره دغه کمسيون ته راوستل سوي دي ۰ دغه خلگ د ولسي جرگې عمومي مجلس ته هم حاضريږي ، او عمومي مجلس به ستاسي د قانوني تخلف په برخه کي تصميم و نيسي ۰ سهارنۍ غونډه پر دغه ځای پای ته ورسيده ۰ د ماپښين په غونډې کي حکومتي هيأت ، کمسيون ته خپل تأثر او معذرت وړاندي کړ ، دوی تعهد وکړ چي په لسو ورځو کي به ټولو سپين ږرو جلبانو ته ترخيصونه ورکړي ۰

حکومتي هيأت په هغه ورځ ددفاع په وزارت کي غونډه وکړه او د کار د قواو لوی قوماندان جنرال خوازك خان زلمي ته يي دنده ورکړه چي دې په خپله د شنې قوي

يونټونو ته ورسي او ټول سپين ږيري جلبيان ددفاع وزارت ته د ترخيص اخستلو له پاره معرفي کړي چي جنرال خوازك خان زلمي دغه وظيفه په ډيري چټکې سره سر ته ورسوله ، او ولسي جرگي دغي موضوع ته رسما خاتمه ورکړه ٠

## ٢٤ ـ د محمد موسي شفيق سره کتنه

ما د محمد موسي شفيق د حکومت په وخت کي دوه واره دده سره ليدلي دي په لومړي کتني کي ده زما څخه د اعتماد د رايي غوښتنه وکړه او ما ده ته د اعتماد درايي وعده ورکړه دغه ليدنه ډيره لنډه وه ٠ د محمد موسي شفيق سره زما دوهمه ليدنه د هلمند د اوبو د معاهدي په هکله د ١٩٧٣ کال د مارچ په مياشتي کي وسوه ددغي ليدني له پاره د ماپښين دري بجي ټاکلي سوي وي٠

په هغه ورځو کي د محمد موسي شفيق په امر د صدارت په قصر کي ځني تزنيني کارونه کيدل ، ده تجويز نيولې و چي د افغانستان د ټولو صدر اعظمانو عکسونه د صدارت د قصر پر ديوالونو نصب کړي ، ده د صدارت د گلخاني د ماڼي په يوي کوچنې خوني کي کار کاوه چي له هغه ځايه څخه يي د صدارت ټول مراجعين ليدل ٠

محمد موسي شفيق د خارجه وزارت د ء ستور ء په تاريخي قصر کي هم يو دفتر دلود ، ده د خارجه چارو د وزارت د مرمر د عمارت ټول دوهم منزل د خپل ملاقاتونو له پاره ټاکلې و . ده ته به د مرمر د عمارت په يوي خوني کي دشورا غړي او خانان او په بلي خوني کي قاضيان او ملايان او په بلي خوني کي ليکوالان او هنرمندان ناست وو ، او دې به ددغو مراجعينو د ليدلو له پاره د يوي خوني څخه بلي خوني ته ورتې او ددوی سره به يي لنډي خبري کولي .

صدارت ته زما د ورتگ په وخت کي پارلماني رئيس محمد ياسين نسيمي د گلخاني د ماڼي پر تخت ولاړ و ، ده ما ته وويل چي اوس محمد عزيز نعيم د صدراعظم سره ناست دې او پر دري نيمو بجو د ولسي جرگي اداري هيأت د صدر اعظم سره ويني ٠ ما پارلماني رئيس ته وويل چي ما د صدر اعظم د ليدلو غوښتنه نه ده کړي او دغه ليدنه د صدر اغظم په غوښتنه کيږي ، اوس چي دی وخت نه لري

تاسي په بل مناسب وخت کي ما ته خبر راکړي چي زه د صدر اعظم د ليدلو له پاره راسم . څو ګامه لا نه وم تللې چي پارلماني رئيس پر ما ږغ وکړ .کله چي ما تر شا وکتل ، محمد موسي شفيق د خپل دفتر په کړکۍ کي ولاړ و او زه يي هغي خوني ته وبللم چي دې او محمد عزيز نعيم ناست وو . ده محمد عزيز نعيم ته وويل چي د ولسي جرګي وکيلان ټول نا آشنا چهري دي او کومه آشنا چهره چي سړې هلته ويني ، د هغه په ليدلو خوشحاله کيږي. صدر اعظم خپلي تشريفاتي خبري لا نه وي خلاصي کړي چي د ولسي جرګي اداري هيأت صدارت ته ورسيدې او محمد موسي شفيق ما ته وويل چي زه او ته به نن شپه پر ۱۱ بجو سره وګورو .

کله چي زه د شپي پر ۱۱ بجو صدارت ته ورغلم ، محمد موسي شفيق د ګلخاني د ماڼي پر تخت ولاړ و ، زه او دی يو ځای دده په دفتر ننوتلو . ده په سر کي ما ته وويل (( زه اوس ستا د يوه هم صنفي د عدليي د وزارت معين سميع الدين ژوند سره په جنجال اخته وم ، په دي چي د عدليي وزارت د سروبي ولسوال چي د يوه معتبره سړي زوم دې پر رشوت نيولې دی . سميع الدين ژوند په دي نه قانع کيږي چي ددغه ولسوال تر جرم تير سي )) په دغه وخت کي صدر اعظم ته يو تيلفون راغې چي تيلفون کونکې د هغه ولسوال خسر و ( ۳۲ )

محمد موسي شفيق زما څخه پوښتنه وکړه چي ته بلي دوري شورا ته راځي او که يه ؟ ما ده ته وويل چي زه بل وار داسي يوي بي نظمي شورا ته نه راځم . ده زما د خبري په ارتباط وويل (( زه هم دداسي بي تحصيلو وکيلانو سره کار نه سم کولای)) ده زياته کړه (( زه به ډير تعليم يافته خلګ د شورا د غړيتوب له پاره تشويق کړم او ددوی سره به مرسته هم وکړم چي په نتيجه کي به يوه باسويه شورا منځ ته راسي )) ده داسي خبري کولي لکه چي دی د ډيرو کلونو له پاره د افغانستان صدر اعظم دی .

محمد موسي شفيق د هلمند د اوبو د معاهدي په هکله زما نظر وغوښت . ما ده ته وويل چي د هلمند رود د افغانستان يو داخلي رود دې او ايران ته بايد په هري ثانيي کي ۲۶ متر مکعب اوبه ، ور نه کړه سي ، او په دغي معاهدي کي د ديراوت شاخص

چي ایرانیانو تـه پـه مرکزي افغانستان کـي د تفتیش اجازه ورکوي ، دغـه شاخص د افغانستان پر ملي حاکمیت باندي یو ښکاره تیری دی ۰

ما د خپلو خبرو په پای کي محمد موسي شفیق ته وویل چي په افغانستان کي ډیر صدر اعظمان راغلي او تللي دي ، ولي ددوی څخه یوه هم داسي یوي لوي مسألي ته په دغه عجله لاس نه دی اچولي او تاسي ولي اوس غواړئ چي دا پیچلي مسأله داسي ژر حل کړی ؟ د اروا ښاد محمد موسي شفیق په سترګو کي اوښکي راغلي او زما په جواب کي یي وویل (( همدغه علت دی چي افغانستان دومره شاته پاتـه شـوی دی ۰ اوس ما فیصله کړي ده چي د افغانستان ټوله پرابلمو نه به حل کوم او وروسته دي تاریخ پر ما باندي قضاوت وکړي ))

ما د محمد موسي شفیق څخه پوښتنه وکړه چي ستاسي حکومت د ډیورنډ کرښه او د پښتونستان موضوع هم د پاکستان د دولت سره حل کوي ؟ ده زما په جواب کي وویل (( بلي ! زه د ډیورنډ کرښه او د پښتونستان موضوع او د افغانستان نور ټول پرابلمونه حل کوم ))

ما صدر اعظم ته وویل چي زه په دي نه یم خبر چي ستاسي حکومت د افغانستان ددغو لویو پرابلمونو د حل له پاره څومره ملي او بین المللي امکانات په خپل واك کي لري ۰ ولي چي دغه پرابلمونه مختلف پیچلي ابعاد لري چي یوازي ستاسي حکومت د افغانستان دغه پرابلمونه نه سي حل کولای ، او زما هیله داده چي تاسي په دغه کار کي ډیره عجله و نه کړئ ۰ څو دقیقي وروسته زه د صدر اعظم ددفتر څخه ووتلم د انتظار په خوني کي د تجارتي بانك رئیس جنت خان غروال او د افغان د جریدي چلونکي محمد حسن ولسمل ناست وو چي د صدر اعظم سره د خبرو له پاره صدارت ته ورغلي وو دا وخت د شپي یولس نیمي بجي وي . ( ۳ ۳ )

## ۵ ۲ ـ د سیستان د سیمي او د هلمند د اوبو تاریخي سوابق

د تاریخ په اوږدو کي ایرانیانو لومړي پر افغاني سیستان ارضي ادعا وکړه او کله چي دوی د انګریزانو په مرسته په سیستان کي د مځکي خاوندان سول نو بیایي د

هلمند د رود په اوبو كي د حق آبي خبره راپورته كړه ۰ په تيرو كلونو كي ايران څو واره د هلمند د اوبو په هكله د افغاني مقاماتو سره خبري كړي دي او څو واره يي د افغانستان سره معاهدي لاس ليك كړي دي او هر وار پر عقد سوو معاهدو باندي پښيمانه سوي دي ، او نور امتيازات يي لاس ته وروړي دي ۰

د سيستان سيمه د خپل لرغوني روښانه تاريخي سوابقو په لحاظ د افغانستان يو مهم ولايت دی ، څرنگه چي دغه سيمه د افغانستان ، ايران او بلوچستان په تقاطع كي پرته ده ، نو په نولسمي پيړي كي دغه سيمه د روسي او انگريزي استعمارگرانو د توجه وړ و گرزيده ۰ په ۱۸٦٦ كال كي ايرانيانو د سيستان ولايت ته لاس اوږد كړ چي د افغانستان او ايران تر منتځ خونړي جنگونه پيښ سول ۰

انگريزانو د هغي معاهدي مطابق چي په ۱۸۵۷ كال كي يي د ايران د دولت سره عقد كړي وه ، دوی د افغانستان او ايران تر منځ د اختلافا تو د حل له پاره خان د حكم په حيث تعين كړ ۰ انگريزانو په ۱۸۷۲ كال كي د گولد سميت په مشري يو حكم هيأت و ټاكې چي د افغانستان له خوا سيد نور محمد شاه خان او د ايران له خوا ميرزا معصوم خان د دواړو هيوادونو نماينده گي كوله ۰ گولد سميت د۱۸۷۲ كال د آگست د مياشتي پر ۱۷ نيټي خپله فيصله اعلان كړه چي يوه برخه يي داسي وه :

په دي كي شك نه سته چي په تيرو ۱۰۸ كلونو كي سيستان په ټوله معنا د افغانستان د خاوري يوه برخه وه، البته په ډيرو پخوانيو وختونو كي ، سيستان د ايران د خاوري يوه برخه هم وه ، په اوسني عصر كي بايد د دواړو هيوادونو ادعاگاني په نظر كي و نيولي سي ، او د دواړو خواو ملكيت بايد تثبيت كړل سي ، گولد سمت د سيستان هغه آباده سيمه چي درووخواو ته يي د هامون جهيل واقع دی او بلي خوا ته يي د هلمند رود بهيږي او د يوي شبه جزيري شكل لري ، او د سيستان د سيمي ډير نفوس هلته ژوند كوي ، ايران ته وركړه ۰ او د چخاسور لږ نفوسه برخه او د هلمند د پورتي غاړي مځكي او د سيستان دښتونه ، د هلمند د رود دواړي خواوي د كوهك تر بند پوري افغانستان ته پاته سوي ۰ سيد نور محمد شاه د گولد سميت پر دغي فيصلي باندي اعتراض وكړ ولي گټه يي و نه كړه ۰

د سیستان لانجه پر دغه ځای پای ته و نه رسیده ، په دي چي د هلمند رود چي پخوا د نادعلي تر څنگ تیریدې ، په ۱۸۹۶ کال کي د سختو سیلابونو په وجه ، خپله مجرا بدله کړه او د( پریانو ) په نامه په نوي مجرا کي و بهیدی ۰ چي تر دغه وروسته د اوبو ویش د افغانستان او ایران تر منځ د اختلاف ټکې سو ۰

د ایران د پاچا په غوښتنه او د افغانستان د پاچا په موافقه د انگریزانو یو بـل حکم هیأت د ( سر هنري مك مهن ) په مشري ددغه اختلاف د حـل له پـاره و ټا کل سـو۰ مك مهان د ۱۹۰۳ کال د جنوري په میاشت کي سیستان ته ورغي او په دوه کاله او دروو میاشتو کي یي د هغه ځاې ټولي مځکي مساحت کړي او نتیجه یي داسي اعلان کړه :

د سیستان اوسني مځکه (۷۰۰۰) مربع میله ده او (۲۵۰۰۰) کسان هلته ژوند کوي چي ددغي جملي څخه (۳۵۱٤) مربع میله مځکه د افغانستان په لاس کي ده او نوره پاته (۲۸٤۷) مربع میله مځکه د ایران په واك کي ده ۰ په حاضر وخت کي د هلمند رود پر دروو برخو ویشل شوی دی ۰

۱ ـ د سیستان رود چي د کوهك د بند څخه جلا کیږي او د ایران د سیستان مځکي خـړوبـه کـوي ۰

۲ ـ د هلمند لوی رود ۰

۳ ـ د نادعلي واله چي پخوا د هلمند د رود اصلي مجرا وه ۰

په ۱۸۷۲ کال کي د گولد سمیت د حکمیت په وخت کي د هلمند د رود په یوې ښاخي کي چي د سیستان د رود په نامه یادیږي ، کافي اوبه موجودي وي او د کوهك بند ته یږي اوبه رسیدلي چي دا اوبه تر نادعلي او سیخ سر تیریدلي او د هامون جهیل ته تویدلي ۰ ولي د ۱۸۹۶ کال سیلابونه ددي باعث سوه چي دغه رود ځان ته یوه بله مجرا جوړه کړي چي د پریان په نامه یادیده چي تر دغي نیټي وروسته د افغانستان او ایران تر منځ د اوبو پر ویش اختلاف پیدا سو چي دغه اختلاف همیشه د پسرلي په موسم کي چي د هلمند په رود کي د اوبو مقدار لږوي را پیدا کیږي ۰

په ۱۹۰۵ کال کي مك مهان د اوبو د ویش په برخه کي خپله فیصله صادره کړه

چي يوه برخه يي داسي وه :

د هلمند د رود هغه مقدار اوبه چي د كوهك بند ته رسيږي ، دريمه برخه يي بايد ايران ته وركړه سي . يعني كه افغانستان د هلمند د رود په پورته برخي كي د اوبو د گرزولو بندونه جوړوي ، بايد دغه حساب په نظر كي و نيسي چي د هلمند د رود د اوبو دريمه برخه بايد د كوهك بند ته ورسيږي . په دغه ترتيب د ۱۸۷۲ كال څخه بياتر ۱۹۰۵ كال پوري يعني د ۳۳ كلونو په موده كي د انگريزانو د حكميت له لاري څخه ، د هلمند د رود د اوبو څخه دريمه برخه او د سيستان د مځكو څخه تر دريمي ډيره برخه ايران ته وركړه سوى ده .

په ۱ ۹ ۳ ۸ كال د جنوري پر ۲ ۶ نيټي د ايران حكومت د افغانستان سره د هلمند د رود د اوبو پر ويش باندي نوي منازعي پيل كړي . د دواړو هيوادونو تر منځ موافقه و سوه چي يوه نوي معاهده دي لاس ليك كـړه ســي . د افغانستان لــه خــوا علي محمد خان او دايران له خوا په كابل كي د هغه هيواد سفير باقر كا ظمي و ټاكل سول . دوى فيصله وكړه چي هر مقدار اوبه چي د كمال خان بند تــه رسيږي دغــه مقدار اوبه دي دواړه هيوادونه سم نمايي ســره وويشي. دغــه معاهــده دافغـانستـان شورا رد كړه . ( ۳٤ )

په ۱ ۹ ٥ ۱ كال كي امريكا د افغانستان او ايران تر منځ د يوه منځ گړي په وسيله فيصله وكړه چي تر هغو چي د هلمند د اوبو مكمل مقدار معلوميږي ، د موقت وخت له پاره دي د هلمند د اوبو څخه ايران ته په عادي كلونو كي په هري ثانيي كي په اوسط ډول ۲۲ متره مكعب اوبــه وركړه ســي . ولــي د ايران دولت پــه دغــي فيصلي قناعت و نــه كړ .

## ۲ ۶ ـ د هلمند د اوبو معاهده په ولسي جرگي كي

محمد موسي شفيق د ۱۹۷۲ كال ددسمبر پــه مياشت كــي د افغانستان صدراعظم سو. ده څلور مياشتي وروسته د ۱۹۷۳ كال د اپريل په مياشت كي د

ایران د صدر اعظم امیر عباس هویدا سره د هلمند د اوبو معاهده لاس لیك كړه ، او د تصویب له پاره یي ولسي جرگي ته وړاندي كړه ۰ دغه معاهده د بین المللي روابطو او د زراعت په كمسیونونو كي تر غور لاندي و نیوله سوه ۰

حكومت په شورا كي د هلمند د اوبو د معاهدي د تصویب له پاره ډیر ښه وخت انتخاب كړې و ، دا وخت د ۱۹۷۳ كال د مي ( جوزا ) میاشت وه او دري میاشتي وروسته دیارلسمه تقنیني دوره ختمیدله چي په دغه وخت كي وكیلان د خپل آینده وكالت له پاره د حكومت هره خبره مني او په دغه دلیل د هلمند د اوبو معاهده په ولسي جرگي كي په لوی اكثریت تصویب سوه ۰

د ولسي جرگي پنځلسو وكیلانو تصمیم ونیوي چي د بین المللي روابطو كمسیون ته ورسي او هلته دغه معاهده د څو میاشتو له پاره وځنډوي چي په دغه حالت كي به د معاهدي تصویب د شورا بلي دوري ته پاته سي ۰ ددغو وكیلانو نومونه دادي۰

عبدالرؤف بینوا ، عزیز الله واصفي ، محمد اسحق عثمان ، یار محمد دلیلي ، عبدالكریم عمرخیل ، محمد هاشم تره كې ، حاجي عبدالوهاب ، عبدالحمید زهري ، حاجي عبدالرشید نورزې ، سید رسول فكور ، میر علم مظلومیار، عبدالغفار فراهي او دري نور وكیلان چي نومونه یي زما په یاد نه دي ۰ د ولسي جرگي د طرزالعمل مطابق د یوه كمسیون غړي باید تر ۲۹ وكیلانو ډیر نه وي چي ۱۵ وكیلان په یوه كمسیون كي اكثریت دي۰ دغو وكیلانو غوښتل چي په لومړي غونډې كـي حاجي عبدالرشید نورزې د كمسیون د رئیس پـه حیث و ټـاكي چـي دده تر ریاست لاندي بـه دا لانـدي فیصلي وكړي :

ـ د كمسیون د غړو څخه یو هیأت د هلمند ، نیمروز او اروزگان ولایتونو ته لیږل كیدي چي دغه هیأت به د خپلو مشاهداتو راپور كمسیون ته وړاندي كاوه ۰

ـ د كمسیون د غړو څخه یو بل هیأت ټاكل كیدی چي دغه هیأت به د خارجه چارو په وزارت كي د هلمند د اوبو سوابق مطالعه كول ۰

ـ دغه كمسیون به د یوي ابلاغیي په وسیله د هیوادوالو څخه غوښتنه كړې وای چي د هلمند د اوبو په برخه كي خپل نظریات د بین المللي روابطو كمسیون ته ور ولیږي۰

کله چي د کمسیون ۹ ۲ غړو خپله رسمي لومړي غونډه جوړه کړه ، د تصمیم نیولو په وخت کي زموږ یوه ملګري خپل موقف ته تغییر ورکړ او د مخالفینو ډلي ته ورغی ، چي په دغي یوي رایي سره موږ په اقلیت کي سوو چي په کمسیون کي زموږ نور پاته کیدل ګټه نه درلوده ، نو څوارلسو وکیلانو ددغه کمسیون څخه استعفا وکړه او د مستعفي وکیلانو نومونه د ولسي جرګي په عمومي مجلس کي ولوستل سول ۰

بله ورځ د کاروان جریدي ولیکل (( یو وکیل د کندهار بل د لغمان او بل هم د فراه د ولایت څخه دیوه کمسیون د اداري هیأت پر ټاکلو باندي د کمسیون څخه استعفا وکړه )) ما د وکیلانو د استعفا اصلي علت چي د هلمند د اوبو د معاهدي په ارتباط و او د څوارلسو وکیلانو نومونه ولیکل او د کاروان د جریدي مسؤول مدیر عبدالحق واله ته مي تسلیم کړه او د اطلاعاتو او کلتور د وزیر صباح الدین کشککي څخه مي غوښتنه وکړه چي د کاروان جریدي ته امر وکړي چي د وکیلانو لیکل شوي مطلب د سبا ورځي په ګڼي کي خپور کړي ۰ ده زما په جواب کي داسي وویل (( دا اوس د کاروان د جریدي مسؤول مدیر ستاسي لیك د مطبعي څخه په تیلفون کي ما ته ولوست او دوی به هغه مطلب د جریدي د سبا په ګڼي کي خپور کړي )) سبا کابل رادیو اعلان وکړ چي د کاروان جریده د یوي هفتي لــه پــاره معطله شــوه ، چــي زموږ لیك هــم د نشر څخه پاته سو۰

هغه وخت چي د هلمند د اوبو معاهده د زراعت په کمسیون کي تر بحث لاندي وه ، د کمسیون په یوي غونډي کي صدر اعظم محمد موسي شفیق هم برخه اخستي وه چي زما په شمول د ولسي جرګي ډیر وکیلان ددغي غونډي د مباحثاتو د اوریدلو له پاره د کمسیون غونـډي ته ورغلي وو ۰ تر غونډي وروسته محمد موسي شفیق د بین المللي روابطو د کمسیون څخه د څوارلسو مستعفي وکیلانو په برخه کي وویل چي دی حاضر دی چي ددغو وکیلانو سره خبري وکړي ، هلته فیصله وسوه چي سبا به په صدارت کي د ولسي جرګي د اداري هیأت په حضور کي ، څو وکیلان د صدر اعظم سره خبري وکړي ۰

د صدارت په غونډه کي صدر اعظم محمد موسي شفیق ، ډاکټر محمد عمر

وردگ ، عزيزالله واصفي ، عبدالكريم عمرخيل ، لعل گل فرياد او عبدالغفار فراهي برخه اخستي وه . په دغي غونډي كي عزيزالله واصفي ، صدر اعظم ته وويل چي د هلمند د اوبو په معاهدي كي د ايران دولت ته اجازه وركړه سوي ده چي په مركزي افغانستان كي دديراوت سيمه تفتيش كړي . دغه اجازه د افغانستان پر ملي حاكميت باندي تيرى دى . عبدالكريم عمرخيل صدر اعظم ته وويل چي د هلمند د اوبو په معاهدي كي د پسرلي په فصل كي ايران ته ډيري اوبه وركول كيږي چي دا غير عادلانه ده . صدر اعظم د دوى دواړو په جواب كي صرف دومره وويل (( د هلمند د اوبو معاهده په ښه وخت او په ښو شرايطو لاس ليك سوى ده )) وروسته د صدر اعظم د پورته خبري په ارتباط عمرخيل وويل چـي د صدر اعظم دغه خبره د بكوا د دوكاندارانـو هغـــي خبـري تــه ورتــه ده چـي دوى بـه ټولـو مسافرينو تـه چي دډوډى خوړلو له پاره هلته تميدل دا ويــل چي (( هر څه لرو او ء كروت ء لرو ))

د صدارت د غونډي ډير وخت د صدر اعظم او زما تر منځ ، حقوقي بحث ونيوى . صدراعظم ادعا كوله چي د هلمند د اوبو معاهده يوه ملي مسأله ده چي بايد وكيلان د دغي موضوع په اړه د ولسي جـرگــي څخه دباندي خبري ونه كړي او دغه مسأله د ولسي جرگي د غړو له خوا د ټرلو دروازو تر شا فيصله كړه سي . ولي ما به ويل چي ولسي جرگه دا صلاحيت نه لري چي د خاوري يا اوبو موضوع فيصله كړي . بلكه دا ډول مسايل بايد دهيواد وه لويي جرگي ته وړاندي سي . او كه ولسي جرگه په دغي برخي كي كومه فيصله كوي نو د ولسي جرگي غړي بايد تجديد صلاحيت كره سي .

هلته فيصله وسوه ، چي حاضر وكيلان به د فني اشخاصو لكه انجينر جمعه محمد محمدي او انجينر محمد اكبر رضا سره هم خبري وكړي . كه څه چي دغو وكيلانو د فني اشخاصو سره خبري وكړي ، ولي د صدراعظم سره بــله ليدنـه و نـه شوه خو دغــه وكيلان تـر پـايـه پـر خپل پخواني موقف ثابت پاته سوه .

٢٧ ـ زما د وينا متن

وکلای محترم ! امروز ولسي جرگه بر يك موضوع مهم بحث مي نمايد که فیصله همچو موضوعات از صلاحیت لویه جرگه افغانستان مي باشد ۰ ولي من به حیث يك وکیل جهت توضیح موقف خود در مورد معاهده آب از رود هلمند که در مجلس عمومي مطرح است باید نظر خود را ابراز دارم ۰

وکلای محترم ! رود هلمند دریاي داخلي افغانستان است و از آغاز تا انجام در حدود حاکمیت ملي ما جریان دارد و هیچ کشور خارجي حق ندارد که در ثروت ملي ما اشتراك داشته باشد ۰ ولي متأسفانه در طول يك قرن اخیر حکومات افغانستان مطابق به میل اجانب ، گاهي به نظر ء گولد سمیت ء و ء مك مهان ء وزماني به راپور کمسیون بي طرف ، خود را مجبور دانسته است تا در حق طبعيي مردم افغانستان اراده يك کشور اجنبي را دخیل سازد۰ و حتي طبق همین معاهده از طریق شاخص دیراوت حق کنترول را بر حاکمیت ملي افغانستان را نیز حاصل نماید۰

وکلای محترم ! حالا از محتویات این معاهده معلومات ذیل به اطلاع مجلس محترم رسانیده مي شود :

۱ ـ مطابق به ماده اول این معاهده مجموع جریان آب در يك سال نورمال در دیراوت ، چهار ملیون و پنج صد و نود هزار ایکرفت ( ۴ ۵ ۹ ۰ ۰ ۰ ۰ ) که معادل به یکصد وهشتاد متر مکعب في ثانیه است ، مي باشد ۰ و قرار جدول پروتوکول شماره يك این معاهده ، در ماهاي حوت ، حمل ، ثور و جوزا به طور اوسط يك صد و چهل متر مکعب آب في ثانیه در دریاي هلمند جریان دارد ۰ ودر هشت ماه باقیمانده سال ، طور اوسط صرف چهل متر مکعب آب في ثانیه جریان دارد ۰ که طبق این معاهده در چهار ماه آبخیزي ، طور اوسط سي و سه متر مکعب آب في ثانیه ودر هشت ماه کم آبي طور اوسط بیست و دو متر مکعب آب في ثانیه به ایران تحویل مي گردد ۰ که به این حساب در چهار ماه آبخیزي پنجم حصه و در هشت ماه کم آبي بیش از نصف مجموع آب یعني از چهل متر مکعب آب في ثانیه بیست و دو متر مکعب آب في ثانیه به ایران باید تحویل گردد ۰

۲ ـ طبق پروتوکول شماره یك این معاهده ، در ماه فبروري یعني ماه دلو در یك سال نورمال در شاخص دیراوت دولك و هشت هزار ایکر فت ( ۰ ۰ ۰ ۸ ۰ ۲ ) یعني یکصد و دو متر مکعب آب في ثانیه معیار تعیین شده ا ست که قرار شماره ١٤٤ راپور کمسیون بي طرف ، صرف پنجاه و یك متر مکعب آب ان به کوهك رسیده مي تواند ۰ که در برج دلو قرار این معاهده هفتاد و هشت متر مکعب آب في ثانیه به ایران تحویل مي گردد، که به این حساب اگر سال واقعا نورمال هم باشد ، باید بیست و هفت متر مکعب آب في ثانیه از ذخیره کجکي و یا ذخیره دیگریکه به مصرف افغانستان اعمار گردیده باشد ، به ایران تجویل گردد ۰

۳ ـ کمسیون بي طرف در شماره ٤ ۹ راپور خود نوشته است کي در دریای هلمند در سال ۱ ۷ ۸ ۱ بعد ازء چهار برجك ء برای چهل روز آب عبور نه کرده است۰ در سال ۲ ۰ ۹ ۱ در یای هلمند پایانتر از ( رود بار ) که از بند کمال خان پنجاه میل بالاتر واقع است ، براي سه ماه خشك بود ۰ در سال ٥ ۰ ۹ ۱ یعني سالیکه سیلابهای بهاري بسیار کم بود ، در وقت شدت گرما همان سال ، آب دریای هلمند از ( نهر نادعلي ) و ( رود پریان ) برای دو ماه نه گذشته است ۰ و همچنان قرار معلومات اهالي نیمروز در سال ۷ ٤ ۹ ۱ ( ۶ ۲ ۳ ۱ ) دریاي هلمند ، طوري خشك گردید که در منطقه ( میان کنگي ) مردم انجا براي آب نوشیدني در داخل دیابي هلمند چاها حفر کردند ۰ که خشك سالي ۱ ۷ ۹ ۱ به همه يي ما وشما معلوم است که با موجودیت ذخیره کجکي باز هم قلت شدید آب در منطقه سفلي هلمند محسوس بود۰

وکلای محترم ! در سالهای آینده اگر یکسال تحت نورمال باشد و شاخص دیراوت در برج دلو مقدار آب را پنجاه فیصد پایانتر از نورمال یعني بجاي یکصد و دو متر مکعب ، پنجاه و یك متر مکعب آب في ثانیه نشان دهد ، که این مقدار طبق مطالعات کمسیون بي طرف ، اگر افغانستان از ان هیچ استفاده هم نه نماید ، این مقدار آب به کوهك نه مي رسد و ضایع مي گردد ۰ ولي مطابق این معاهده حق آبه ایران هم پنجاه فیصد تقلیل مي یابد ۰ یعني از هفتاد و هشت متر مکعب به چهل متر

مکعب في ثانيه تقليل مي يابد ۰ يعني باوجود انکه در دریای هلمند آب نباشد باید چهل متر مکعب آب به ایران تحویل گردد۰ که این مقدار آب را افغانستان از کجا و چطور تهیه خواهد کرد ؟

٤ ـ مطابق به شرایط اقلیمي وادي هلمند ، مخصوصا در جوار منطقه دلتا که کمسیون بي طرف در شماره ١ ٤ ٤ راپور خود ، در امتداد دریا از بندر کمال خان تا کوهك ، مقدار ضایعات آنرا پنجاه فیصد محاسبه کرده است ۰ یعني اگراز ضایعات طول دریای هلمند و ضایعات داخل انهار ، بعد از منطقه کوهك صرف نظر هم شود ، و سیلابهاي ماهاي حوت ، حمل ، ثور وجوزا با مصارف کمر شکن قروض با مفاد دول خارجي ذخیره و کنترول هم گردد ، مقدار هفتاد متر مکعب آب باقیمانده که در شماره های ٨ ٣ ١ ، ٢ ٤ ١ ، ٣ ٤ ١ راپور درج گردیده است ، حتي برای پنجصد و پنجاه هزار ایکر زمین پروژه وادي هلمند کفایت نه خواهد کرد ۰ و افغانستان برای آبیاري صدها هزار ایکر زمین موسي قلعه ، نوزاد ، کشك نخود ، دشت ریگستان مارگو ، گودزري ، تراخو ، اراضي خاش ساحه نیمروز و دشت بکوا که قبلا جهت آبیاري آن از رود هلمند سروي هم شده است ، از کجا آب تهیه خواهد کرد ؟

٥ ـ حال از مواد ٤ ، ٨ ٢ ، ٣ ١ ، ٦ ١ ، ٨ ٣ ١ ، ٢ ٤ ١ ، ٣ ٤ ١ و ٤ ٤ ١ راپور کمسیون بي طرف به مجلس محترم معلومات تقدیم مي نمایم ۰ در مواد فوق راپور نوشته شده است که سیستان از لحاظ جغرافیایي جز خاك افغانستان است ، در منطقه دلتا در یك سال صرف چهار انچ باران مي بارد که آن هم فورا جذب و تبخیر مي گردد ۰ زراعت در آن منطقه منحصر به آبیاري مي باشد ۰ منطقه سیستان جمعا شامل پنج لك ایکر زمین است که یکصد و چهل و نه هزار ایکر آن سالانه کشت مي شود ، و طبق عرف آن منطقه یك قطعه زمین بعد از سه سال یك بار کشت مي گردد و به عوض یك ایکر فت ( ٨ ٧ ، ١ ) ایکر آب براي یك ایکر زمین سیستان تجویز شده است ، که این مقدار آب جمعا دوصد و شصت و پنج هزارایکرفت آب ( ۰۰۰ ٥ ٦ ٢ ) که معادل ( ٨ ، ۰ ١ ) متر مکعب آب في ثانیه است ، کافي دانسته شده است ۰ شش هزار ایکر فت آب دیگر براي مصرف اهالي و مواشي بر آن افزود گردیده است ۰ که

این مقدار جمعا به یازده متر مکعب آب في ثانیه رسیده است ۰

وکلای محترم ! بر علاوه بخشش چهار متر مکعب آب به نام ( حسن نیت ) از طرف پادشاه افغانستان ، یازده متر مکعب آب في ثانیه ازین جهت دو برابر شده است که از بند کمال خان تا کوهك پنجاه فیصد ضایعات ، و در داخل نهرهای منطقه سیستان نیز پنجاه فیصد ضایعات قبول و محاسبه شده است ۰ که مقدار ( ۸ ، ۱۰ ) متر مکعب آب به بیست و شش متر آب في ثانیه رسیده است ۰ یعني از بند کمال خان باید پنجاه و دو متر مکعب آب في ثانیه رها گردد تا ( ۸ ، ۱۰ ) متر مکعب آب به اراضي سیستان برسد ۰ و ایران به عوض یك و نیم لك ایکر زمین خود ، حالا تمام اراضي منطقه سیستان را که بالغ بر پنج لك ایکر زمین میگردد ، قرار عرف آن منطقه مي تواند به این مقدار آب ، آبیاري نماید ۰

من این معاهده را به ضرر مردم افغانستان مي دانم و آنرا رد مي نمایم ۰ بااحترام

تبصره : په هند کي د افغاني محصلینو اتحادیي ، د هلمند د اوبو د معاهدي د نیمگړتیاو په اړه یوه تحقیقي لیکنه ما ته رالیږلي وه . په دغي لیکني کي د برتانوي هند د سکرترجنرال ء سر بنتوم ء د قوله لیکل سوي وو چي (( باران او واوره یو خدایي رحمت دی چي د افغانستان پر خاوري باندي اوري ، او د دغه رحمت څخه باید په خپله افغانان استفاده وکړي )) ما د خپلي پارلماني وینا یو نقل د اتحادیي د مشر ذین العابدین ممتاز په ادرس په هند کي د علیگر پوهنتون د حقوقو پوهنځي ته ولیږی .

## د هلمند د اوبو د معاهدي په باب څو نوري خبري

ـ د هلمند په رود کي د حوت ، حمل ، ثور او جوزا په میاشتو کي ډیري اوبه سته ولي د کال په نورو میاشتو کي په دغه رود کي د اوبو مقدار بیخي لږ وي ۰ دو لسي جرگي د خینو وکیلانو نظر داو چي ایران ته دي د ډیرو اوبو څخه ډیري او د لږو اوبو څخه لږ اوبه ورکړل سي ۰ او ایران دي په خپله خاوره کي د اوبو د ذخیره کولو بندونه جوړ کړي ۰ ولي ایرانیان د هلمند د رود د آبخیزي د میاشتوډیري اوبه خپلي خاوري ته نه پریږدي ، په تأسف چي ددغو اوبو په وسیله د نیمروز دوي ولسوالۍ او یوه علاقه داري ، هر کال تر اوبو لاندي وي ۰ او بر عکس ایرانیان د مني په میاشتو کي چي هر

مقدار اوبه د کمال خان بند ته رسیدي ، هغه ټولي اوبه به يي د ایران له پاره غوښتي،
او د نیمروز خلګو د ایرانیانو.د شکایت په وجه اجازه نه درلوده چي د هلمند په رود
کي آبګردان بندونه جوړ کړي ۰

ـ د هلمند د اوبو د معاهدي مطابق د افغانستان په مصرف یو بند د دواړو
هیوادونو پر سرحد په لس ملیونو ډالرو جوړیږي ۰ د زراعت په کمسیون کي د
حکومت د نماینده څخه یوه وکیل داسي پوښتنه وکړه (( څرنګه چي دغه بند د ایران له
پاره جوړیږي ، نو باید ددغه بند مصرف د ایران د حکومت څخه غوښتل سوې وای ))
د حکومت نماینده په جواب کي وویل (( موږ ته افغاني غیرت اجازه رانه کړه چي د
ایران د حکومت څخه ددغه مصرف غوښتنه وکړو )) د حکومت نماینده دغه خبره هغه
وخت وکړه چي په افغانستان کي لوږه او وچ کالي وه او د افغانستان ډیر خلګ د
لوږي څخه مړه سوي وو ، او د افغانستان حکومت د سوال کچکول غاړي ته اچولې و
او د ټولي نړۍ څخه یي د مرستي غوښتنه کوله . ( ۳۵ )

ـ د هلمند د اوبو معاهده د ۱۹۷۳ کال د مي د میاشتي پر ۲۲ نیټي په لوی
اکثریت د ولسي جرګي په عمومي مجلس کي په تصویب ورسیده ، چي د ولسي جرګي
د ۲۱٦ غړو څخه، د حاضرو ۱۵۳ وکیلانو څخه ۱۲۷ وکیلانو د معاهدي په تایید رایه
ورکړه او زما په شمول ۲۵ وکیلانو مخالفي رایي او یوه ممتنیع رایه ورکړه سوي وه ۰
دغه معاهده په مشرانو جرګي کــي هــم تصویب شــوه او د افغانستان پاچا توشیح
کري ده ـ د هلمند د معاهدي مصدقه اسناد د محمد داود خان د جمهوریت په وخت
کي د ۱۹۷۷ کال د جون په میاشت کي د افغاني سفیر زلمې محمود غازي له خوا په
تهران کــي تبادلــه سوه ۰ دغــه معاهده د ایــران په غوښتنه په ملګرو ملتونو کــي
ثبت سوي هــم ده ۰

## ددغي معاهدي په هکله د محمد هاشم میوندوال د وینا یوه برخه ، د ۱۹۷۳ کال د مارچ د میاشتي ۱۳ ، د زرنګار پارک

۰۰۰ معاهده منحوس و مردود ۲۲ حوت هم از نظر سیاسي و هم از نظر حقوقي در موقعي امضا میشود و به شکلي امضا میشود که به هیچ صورت پا یه اعتبار ساسي و قانوني و ملي ندارد . از نظر سیاسي به خاطري که یك حکومت رو به زوال که به حکم قانون اساسي یك چند ماهي از عمر ان باقي مانده است و یك شوراي رو به اختتام که چند ماهي از ان باقي مانده است و همچنان یك کابینه اي  که حتي خودش نصاب ندارد نمیتواند در یك موضوع ملي متعلق به مردم افغانستان که حد اقل باید به سویه یك لویه جرگه در باره ان فیصله بعمل مي آمد تصمیم بگیرند و تصمیم نهایي اتخاذ کنند . ما همچنان مي بینیم که این معامله گري در فضاي انجام مي یابد که مکتوم ، مدفون و از اذهان پوشیده است و حتي حکومت اعتراف مي کند که درین باره اسراري موجود است که آنرا نمیتواند باطلاع مردم افغانستان برساند . ما حتي نمیتوانستیم از متن این معاهده آگاه شویم اگر این معاهده را اولاً خود منابع ایراني به جراید و مطبوعات به نشر نمي سپردند . و این معامله در عقب مردم افغانستان و بدون اطلاع مردم افغانستان و بدون صلاحیت و پشتیباني از مردم افغانستان انجام شده است و خواهد شد ولي ملت افغانستان نخواهد گذاشت که این معامله قاطعیت پیدا کند ۰۰۰۰ بما میگویند که ما یك معضله صد ساله را خاتمه داده ایم . آنها میگویند که دولت ایران پیشنهاد ما را قبول کرد . پس بیایید بیبینیم که با این معاهده آیا انها یك مسأله را که موجود نه بود خاتمه داده اند و یا هزاران مسایلي را تازه بوجود آورده اند ؟ آیا آنها یك دعواي دروغین را خاتمه داده اند و یا با ایران یك دعواي دایمي را پي ریزي کرده اند ؟  آیا آنها اختلافات را از بین برده اند و یا تازه  برای اختلافات میانجي شده اند؟ آیا آنها بررسي اختلاف صد ساله را که موجود نه بود برای آنکه هیرمند دریای افغانستان است وکسي با ما در باره آن حق اعتراض ندارد از بین برده اند ویا اینکه راه را برای این اختلافات باز کرده اند ؟ ۰۰۰ شما دریایي را که از افغانستان است وحقي را که از افغانستان است و برمال مردم افغانستان چي حق دارید که آنرا به دیگران بخشش کنید و آنرا حسن نیت نام بگذارید. آخر این شامپوی فرانسوي یا روغن بناسپني نیست و یا برنج دیره دوني نیست که آنرا به

همسایه خود بخشش بدهیم ....

## د څلورم فصل یادداشتونه

۱ ـ د نامه لیکل یي لازم نه بولم
۲ ـ د لغمان د یوه اوسیدونکي په قول
۳ ـ د کابل د یوه اوسیدونکي په قول
٤ ـ د یوه وکیل په قول
٥ ـ د یوه وکیل په قول
٦ ـ د هغه حزب د یوه غړي په قول
۷ ـ د یوه وکیل په قول
۸ ـ رشتیا ، ذکر سوی اثر ، مخ ۳۲۱
۹ ـ د یوه وکیل په قول
۱۰ ـ د مساوات جریده ، کال ۱۹٦۹
۱۱ ـ د محمد شاه رحمتیان په قول
۱۲ ـ عبدالرسول بره کي
۱۳ ـ شمس الحق پیرزاده
۱٤ ـ زما مشاهدات
۱٥ ـ زما مشاهدات
۱٦ ـ زما مشاهدات
۱۷ ـ کبیر سراج ، محمد نذیر ، رویداد هاي نیمه اخیر سده بیست در افغانستان صفحه ۱۷
۱۸ ـ زما مشاهدات
۱۹ ـ عظیمي ، محمد نبي ، اردو وسیاست در سه دهه اخیر افغانستان ، صفحه٤ ۲ ۲
۲۰ ـ زما مشاهدات
۲۱ ـ د نامه د لیکلو اجازه یي نه لرم
۲۲ ـ زما مشاهدات
۲۳ ـ زما مشاهدات
۲٤ ـ زما مشاهدات
۲٥ ـ رشتیا ذکر سوی اثر ، مخ ۲۹۰
۲۶ ـ مجله خراسان ، شماره ماه اکتوبر ۱۹۸۸ ، صفحه ٤ ۲
۲۷ ـ رشتیا ، ذکر شوې اثر مخونه ۱۸۸ ، ۱۸۹
۲۸ ـ مبارز ، ذکر شوې اثر مخ ۲۹۶
۲۹ ـ د اکونو میست مجله د ۱۹۹۸ کال د جنوري گڼه، مخ ۳۳
۳۰ ـ د گل پاچا الفت شعر
۳۱ ـ کشککي ، ذکر شوې اثر ، مخ ۱۰۸
۳۲ ـ د نامه د لیکلو اجازه یي نه لرم
۳۳ ـ زما مشاهدات
۳٤ ـ غبار ، ذکر شوې اثر ، لومړی ټوك مخ ۱۳۷

## ۱ ـ د محمد داود خان کودتا

د ۱۹۷۳ کال د جولای د میاشتي ۱۷

په دغه کال کي چې محمد داود خان کودتا وکړه په افغانستان کي د یوه تغییر او تحول ښې لیدل کیدي ۰ د ۱۹۷۳ کال د جون د میاشتي پر ۲۵ نیټي د افغانستان پاچا محمد ظاهر شاه د سترګو د علاج په نامه په یوه اوږده سفر اروپا ته تللې و ، صدراعظم محمد موسي شفیق چې تر یوه ساعت په لږ وخت کي د ولسي جرګي څخه د اعتماد رایه واخسته ، داسي ښکاره کیده چې د آګست د میاشتي تر ۱۳ نیټي وروسته چې د دیارلسمي دوري شورا د کارکولو آخري ورځ وه ، ده په افغانستان کي د یوه قوي او باثباته حکومت د راوړلو هڅي پیل کولي ۰ د بلي خوا څخه په هیواد کي د لاندي دروو کودتاګانو آوازي هم خپري شوي وي :

د محمد داود خان کودتا ، د سردار عبدالولي کودتا او د محمد هاشم میوندوال کودتا . اما محمد داود خان وار دمخه کړ او د ۱۹۷۳ کال د جولای د میاشتي پر ۱۷ نیټي یي کودتا وکړه ، چې د کودتا دیوه غړي په قول د کودتا کونکوشمیر تر سلو کسانو لږ وو ۰ محمد داود خان د کودتا په لومړي سهار د کابل رادیو له لاري څخه د شاهي نظام د ړنګیدلو او د جمهوریت د تاسیسیدلو مهم ټکي داسي څرګند کړه :

((۰۰۰ خپل وطن ته په خدمت کي ، د بیلو مسؤولیتونو د یوي اوږدي مودي په اوږدو کي ، همیشه د یوه هدف په لټه کي وم چې د افغانستان د خلګو په تیره بیا د محرومو طبقو او زمونږ د هیواد د خوان نسل له پاره یو مثبت او واقعي محیط ، مادي او معنوي وده منځ ته راسي او په هغه کي زمونږ د وطن ټول وګړي بي له توپیر او امتیازه د خپل وطن د آبادۍ او سر لوړۍ په لاري کي برخه واخلي او د مسؤولیت احساس وکړي۰۰۰ ما د خپل وطن د راتلونکي نیکمرغۍ له پاره د یوي واقعي او معقولي دیموکراسۍ ټینګیدلو څخه پرته چې اساس یي د افغانستان د ولس اکثریت ته په خدمت ټینګ وي ، بله لاره نه درلوده او نه یي لرم ۰۰۰ په هر صورت نتیجه دا سوه چې نور هغه پخواني امیدونه او ښې هیلي په یوي داسي دیموکراسي بدله سوه چې د لومړي سر څخه د هغه بنسټ په شخصي او طبقاتي عقدو او ګټو ، په تقلب او

دسیسو په دروغو او ریا او د خلگو په غولولو باندي ولاړ و ۰ خو د دروغو دغو ټولو
تبلیغاتو په همدي لسو کلونو کي و نه سوای کړای ، هغه ترخه حقایق چــي د اقتصادي
حالت د مطلقــي ورشکسگي او د مملکت د اداري ، اجتماعي او سیاسي حالت د
انحطاطونو څخه عبارت دي ، د افغانستان د ملت او خارجي نړي له سترگو څخه پټ
کړي ۰ لنډه دا چي دیموکراسي یعني د خلگو حکومت په یو انارشیزم او د مشروطه
سلطنت رژیم په یوه مطلق العنان رژیم بدل سو ، او دغو قدرتونو هر یوه د بل په غاړه
او د خلگو غاړي ته ورولویدل او تفرقه واچوي او حکمراني وکړي په فورمولونویي په
ټول هیواد کي اور بل کړ ، تر څو چي وکړای سي ددغي ملوثي او ناوړي او له بدبختي ،
فقر او فلاکت څخه ډکي فضا په سیوري کي خپل شوم مقصدونه حاصل کړي۰۰۰ د
دولت رژیم او دستگاه دومره فاسده سوه چي نور نو د هغي د اصلاح له پاره امید او
انتظار پاته نه سو۰ همدا وجه وه چي ټول وطن پالونکي په تیره بیا د افغانستان وطن
پرسته اردو تصمیم و نیوي چي نور دغه فاسد نظام پای ته ورسیږي او وطن له دغي
بدبختي څخه خلاص کړي۰۰۰ نوي نظام طبعا له خانه سره بنیادي ریفورمونه لري چي
تفصیل یي باید په راتلونکي وخت کي په تفصیلي ډول بیان سي۰۰۰ د افغانستان
خارجي سیاست به د بي طرفي ، په نظامي ډلو تپلو کي د برخه نه اخستلو ، د
افغانستان د خلگو پر آزاد قضاوت ولاړ وي د افغانستان بین المللي سیاست زموږ د
خلگو د مادي او معنوي ژوندانه ، د هیواد د ملي هیلو پر اساس طرحه سوی دی ۰
زموږ د ملي کوشش او هیلو څخه په ډاگه څرگندیږي چي زموږ د هیلو تر سره کیدل
تر ټولو زیات د نړي سولي ته اړتیا لري ۰ هیڅ یو هیواد د نړي د سولي له رڼا پرته ،
نه سي کولای چي په خپلو ملي هیلو بریالي سي۰۰۰ نو همدا وجه وه چي د افغانستان د
سیاست لومړي بنسټ د صلحي غوښتنه او د نړي د ټولو خلگو او ملتونو سره
دوستي کول دي ۰ په دي هیلي کي زموږ سره د هیڅ یو هیواد یا ولس که کوچني وي
او که لوی ، لیري وي او که نژدي هیڅ ډول توپیر نه سته۰۰۰ دغه نظام د ملگرو ملتونو
د منشور اساسات چي مقصد یي د بشري نړي نیکمرغي او آرامي ده محترم گڼي، د
پاکستان سره زموږ په روابطو کي چي یوازني هیواد دی چي د پښتونستان د قضیي په

باب د هغه سره سیاسي اختلاف لرو او تر اوسه د هغه په حل نه یو بريالي سوي ۰ د پښتونستان د قضيي د حل د لاري د پيداکولو له پاره به زموږ کوششونه دوام ولري۰۰۰ )) (۱ )

د جولای د ۱۷ په کودتا کي د کودتا د یوه غړي په قول لږ خلگ یعني اووه کسان وژل سوي دي چي دا تر ډیره حده د محمد داود خان د ښه شهرت او د کودتا کونکو د همه جانبه سنجش نتيجه وه ۰ د کودتا په هکله ځيي افغانان په دي عقيده وو چي په هيواد کي د حالاتو کنترول د افغانستان ددولت د واکه وتلي و او ددغي وضعي د بدلولو له پاره محمد داود خان د پاچا په خوښه کودتا کړي ده . ځينو افغانانو داسي فکر کاوه چي محمد داود خان د هلمند د اوبو د معاهدي پر ضد کودتا کړي ده ۰

د جولای د ۱۷ د کودتا په آسانه بريالي کيدلو کي دا موضوع هم د توجه وړ ده چي په شاهي اردو کي دداسي غير مترقبه حوادثو د مخنيوي له پاره قبلي آماده گي نه وه نیوله سوي ، چي حتي د اردو افراد د کودتا د نامه سره آشنا نه وو ۰ یوه جلبي عسکر چي په پل چرخي کي يي وظيفه درلوده ما ته وويل چي د کودتا په شپه کودتا کونکو زموږ د ټولگي سلاح کوټ مات کړ او ډير مهمات يي د هغه خايه څخه وايستل او ډير عسکر د عرادجاتو په نقل او انتقال راوبښ سول ، په دغه وخت کي یوه عسکر نورو ته وويل چي بيده سئ ، دا خپل خلگ دي ! او موږ بيرته بيده سو۰ ما ددغه عسکر څخه پوښتنه وکړه چي تاسي ولي دغه خلگ خپل و بلل ؟ ده زما په جواب کي وويل چي دوی روسي ، پاکستاني يا ايراني نه وو چي موږ ددوی سره مقابله کړي وای ( ۲ ) .

لاندي کسان د کودتا په لومړي شپه بنديان سوه او د عبدالقدير نورستاني په کور کي تر نظارت لاندي و نيول سول : ( ۳ )

د سلطنت د مقام کفيل شاهزاده احمد شاه ـ مارشال شاه ولي خان ـ دمرکزي قواوو قوماندان سردار عبدالولي ـ صدراعظم محمد موسي شفيق ـ ددفاع وزير ستر جنرال خان محمد خان ـ دهوايي او مدافع هوايي قوماندان جنرال گلبهار خان ـ دسلطنتي گارد قوماندان جنرال غلام محمد ـ د توپچي د لوا قوماندان جنرال قمرالدين ـ

دکوماندو دقوي قوماندان ډګروال رحمت الله خان ساپی ـ درشخورو دفرقي قوماندان جنرال عبدالحکیم خان کتوازی ـ دقرغي داتمي فرقي قوماندان جنرال علي نواز خان ـ دڅلورمي زرهي قوي قوماندان جنرال شیر محمد خان ـ دپنځلسمي زرهي قوي قوماندان جنرال حسین خان ـ دژاندارم او پولیسو عمومي قوماندان جنرال سید عبدالغني . د پاچا سرياور جنرال محمد عمر خان چې د کودتا په سهار د شاهزاده احمد شاه کور ته ورغلی و د هغه ځایه څخه د عبدالقدیر نورستاني کور ته یووړل سو داخله وزیر ډاکټر نعمت الله پژواک په خپل کور کي تر نظارت لاندي ونیول سول چي وروسته دمحمدداود خان په کابیني کي دپوهني وزیرسو( ٤ )

د کابل د امنیي قوماندان دګرمن عبدالحنان او د کابل سرمامور ګل نبي خان هم په دغه شپه بندیان سوي دي ۰ یو شمیر بندیان ډیر ژر خوشي سول او یو څه نور یي د دهمزنګ محبس ته انتقال کړه ۰ مارشال شاه ولي خان په خپل کور کي او سردار عبدالولي په ارګ کي تر نظارت لاندي و نیول سوو ۰ د کودتا په سهار ، ځیني وزیران چي خپلو وزارتونو ته تله ، د بریکوټ په سیمه کي توقیف سول او د لږ وخت له پاره په ژوبڼ کي تر نظارت لاندي وو ۰

د کودتا په لومړي سهار محمد داود خان په خپله کابل راديو ته ورغلی و ۰ د کابل راديو نطاق وايي (( دې د نبي عظيمي او عبدالستار په وسیله د خپل کور څخه کابل راديو ته وړل سوی دی )) دی داسي هم وايي (( د اناونس په وخت کي محمد داود خان ماته وویل چي دده د نامه سره د سردار کلمه باید یاده نه کړم ، ولي ډاکټر محمد حسن شرق ، محمد داود خان ته وویل چي ددي له پاره چي د افغانستان خلګ تاسي وپیژني ، د سردار د کلمي يادول ضروري دي )) ( ٥ )

د جولای د ١٧ کودتا دومره بې ږغه وه چي د کابل په ښار کي ډیر خلګ په کودتا نه دي خبر شوي۰ د سهار پر اوو بجو ، کله چي د کابل راديو نطاق وویل چي دادې اوس سردار محمد داود خپله وینا اوروي ، زما په شمول ډیرو افغانانو داسي فکر کاوه لکه چي بیا محمد داود خان د پاچا له خوا د حکومت په جوړولو مامور سوی دی۰ ولـي د محمد داود خان له وینـا څخه پوره څرګنده سوه چـي ده کـودتـا کـړي ده ۰

ما دکتاب په لومړي چاپ کي دمحمد داود خان دکودتا په باب ځيني مطالب چي دمختلفو آثارو څخه مي اخستي وو ، څېاره کړي دي . ولي ددغي کودتا يو مهم غړې پاچا گل خان وفادار دهغو مطالبو سره موافقه نه لري ، ما دده د اظهاراتو پر اساس دهغو مطالبو ځيني ټکي تصحيح کړي دي . پاچا گل خان وفادار دکودتا کونکو دبارزو اشخاصو په ارتباط وايي چي په کودتا کي هوايي ، کوماندو او دټانك قواوو قاطع نقش درلود چي ما ، فيض محمد او حبيب الله زرمتي ددغو قواوو رهبري پر غاړه درلودله دی وايي چي ما دمخابري آله دمحمد داود خان په کور کي فعاله کړه او ده دهغي آلي په وسيله دشپې پر يوي نيمي بجي د کودتا هدايت صادر کړ ، ولي موږ تر هغه دمخه دشپې پر ۱۲ بجو دکودتا عمليات پيل کړي وو او ډير حساس ځايونه مو تر څېل کنترول لاندي راوړي وو . دی دمحمد هاشم ميوندوال په ارتباط وايي چي زه محبس ته دڅېل يوه ملگري دليدلو له پاره چي هغه هم دميوندوال دکودتا په اتهام بندي شوی و ورغلی وم ، زما دغه ملگرې دتحقيق دغړو له خوا ډير وهل شوی و ، ما هلته ميوندوال هم وليد چي ډير ځنگر شوی و او يوه تش کالبد ته ورته و .

## ۲ ـ شورا منحله سوه

دديموکراسې دوري د شورا ختميدلو ته يوازي ۲٦ ورځي پاته وي ۰چي محمد داود خان کودتا وکړه ۰ د ولسي جرگي وکيلانو د يـوه ليك په وسيله محمد داود خان ته د نوي نظام مبارکي وويله او ځينو وکيلانو دده سره وليدل۰

زما په شمول د ولسي جرگي ټول وکيلان د محمد داود خان په کودتا خبر نه وو ، ولي د کودتا په لومړيو ورځو کي ، څلور وکيلان د حکومت په لاندي مقامونو کي مقرر سول : عزيز الله واصفي د ننگرهار والي ، عبدالکريم عمرخيل د پروان والي ، حاجي محمد آصف پاس يوسفي د بغلان والي او عبدالغفار فراهي د خارجه وزارت سياسي مدير ۰ ددغو وکيلانو په مقرريدلو سره ځينو خلگو داسي فکر کاوه چي وکيلانو هم د محمد داود خان په کودتا کي برخه درلوده ۰

د شورا غړو د سرطان د مياشتي معاش ددغي مياشتي پر ۲٥ نيټي اخستې و ، جمهوري نظام ټولو ولايتونو ته امر وکړ چي د سرطان د مياشتي د پنځو ورځو معاش

بیرته د شورا د غړو څخه تحصیل کړي ، او امنیتي مقاماتو په ډیر شدت سره دغه زر افغاني د شورا د غړو څخه واخستي چي دشورا غړو د جمهوریت دغه اقدام یو انتقام جویانه عمل و باله او ډیر وکیلان د جمهوري نظام څخه خوابدي سول ۰

## ۳ ـ پاچا ژر استعفا وکړه

په هغه ورځ چي محمد داود خان کودتا وکړه ، د افغانستان پاچا په ایتالیا کي و ، دې ډیر ژر په روم کي افغاني سفارت ته ورغی چي د افغاني سفیرنور احمد اعتمادي او د سلطنتي کورنۍ د نورو غړو سره مشوره وکړي ۰

نور احمد اعتمادي تر دي دمخه هم د پاچا او محمد داود خان تر منځ د اختلافاتو د رفع کولو هڅي کړي وي ۰ د ه د اساسي قانون په مشورتي کمسیون او لوي جرگي کي د اساسي قانون د ٢٤ مي مادي سره مخالفت کړی و ۰ دی په دي پوهیدي چي ددغي مادي په تصوییبدلو سره محمد داود خان د پاچا سره ډیر خوابدی کیږي ۰ ولي هلته هیچا د نور احمد اعتمادي خبرو ته توجه و نه کړه ، او د اساسي قانون ٢٤ مه ماده یي په لوي جرگي کي لا پراخه کړه چي ددغه اقدام په نتیجه کي د محمد داود خان او پاچا خوابدې د دښمنۍ سرحد ته ورسیده

په روم کي پاچا د خپلو مشاورینو سره څو ورځي خبري وکړي چي په نتیجه کي پاچا په دي قانع سو چي د محمد داود خان سره د نور مخالفت څخه لاس واخلي او جمهوري نظام و مني او د سلطنت څخه استعفا وکړي ۰

د محمد ظاهر شاه استعفا نامه

بسم الله الرحمن الرحیم

ورور جلالتمآب جمهور رئیس !

د هغه وخت څخه چي ما د وروستیو جریاناتو خبر واوریدې ، تر اوسه زما فکر هیواد ته متوجه و ، او د هیواد راتلونکي ته نگران وم ۰ ولي کله چي پوه سوم چي د افغانستان خلگو د خپلو ملي کارونو د راتلونکي اداري له پاره په لوی اکثریت د جمهوریت استقبال کړې دی ، نو د خپلو خلگو د رایي په احترام خان د افغانستان د

سلطنت څخه مستعفي شميرم او په دي وسيله خپل تصميم تاسي ته ابلاغوم ۰ په داسي حال کي چي زما هيله د هيواد سعادت او لوړوالې دی ، خان د يوه افغاني فرد په حيث د افغانستان د بيرغ تر سيوري لاندي راولم ۰ زما دعا داده چي لوی او غښتلې خدای دي د وطن د حامي او وطنوالو مل وي ۰

محمد ظاهر شاه د افغانستان پخوانې پاچا

د ۲ ۵ ۳ ۱ کال د اسد د مياشتي ۱ ۲ نيټه ( ۶ )

رشتيا ليکي چي( ( په ۱۹۷۵ کال کي محمد ظاهر شاه په خپل لومړي او يوازنې مصاحبي کي چي د يوه امرکايي ليکوال Ralph Magnus سره يي کړي وه ، ده ويلي و چي محمد داود خان تر فشار لاندي د مجبوريت څخه کودتا کړي وه .)) ( ۷ )

## ٤ ـ آيا سلطنتي کورني د کودتاکونکو په هوويت خبر وو ؟

کبير سراج په خپل اثر کي ليکي چي سردار عبدالولي ده ته ويلي و (( ما د جمهوري ارگ د قوامانداان صاحب جان خان او دوو نورو صاحب منصبانو په وسيله چي ما د محمد داود خان په ړلي کي د اشتراك له پاره گمارلي وو ، موثق اطلاعات او تاتيپ شوي خبري برابري کړي وي ، او پاچا هغه اوريدلي دي ۰ ولـي پاچا ما ته امر وکړ چي په محمد داود خان کار و نه لرم )) ( ۸ )

محمد عزيز نعيم ليکي (( کله چي ما په ۹ ۶ ۹ ۱ کال کي د پوهنتون د معضلي په هکله د پاچا سره وليدل، ده ماته وويل ، چي څو کمونيستو صاحب منصبانو په اردو کي آشوب جوړ کړی دی او دوی د محمد داود خـان د نـا مــه څخه نـاوړه استفاده کوي )) ( ۹ ) دی په دغه ارتباط بل ځای ليکي (( کله چي په ۵ ۷ ۹ ۱ کال کي ما په روم کي پاچا وليد ، ده ما ته وويل چي زه د محمد داود خان په کودتا يو کال دمخه خبر وم خو د کودتا د تطبيق وخت د۳ ۷ ۹ ۱ کال دمني په ورځو کي پيشبيني کيدی چي تر هغه دمخه ما غوښتل چي په هيواد کي داضطراري حالت اعلام وکړم )) (۰ ۱ ) دې بل ځای ليکي چي (( په ۶ ۷ ۹ ۱ کال کي محمد داود خان زما د يوي پوښتني په جواب کي وويل چي د ۱۹۷۳ د پاځون په برخه کي د شوروي اتحاد يا

نورو کمونستانو سره کوم تفاهم نه دی سوی )) دی لیکي (( د ۱۹۷۳ کال د کودتا د کمونستي افسرانو ماهیت د محمد داود خان څخه پټ ساتل سوی و )) ( ۱۱ )

ډاکټر محمد حسن شرق په دغه ارتباط لیکـي (( موږ په ۱۹۶۹ کال کـي د کودتا په فکر کي نه و )) دی لیکي (( د سردار عبدالولي د کور ضابط او خورد ضابط هم زموږ د کودتا ملګري وو )) ( ۱۲ ) دی بل ځای لیکي (( که محمد داود خان د خپلي کودتا د ملګرو په هویت خبر نه و ، نو زموږ د دښمنانو دا خبره رشتیا ده چي محمد داود خان په کودتا کي سهم نه درلود ، بلکه دی یو روپوش و )) ( ۱۳ )

اوس افشا سوي ده چي د محمد داود خان تر کودتا څو میاشتي وروسته ، داخله وزیر فیض محمد په پکتیا کي د ذوالفقار علي بوتو د یوه نماینده سره لیدلي و او هغه ته یي ویلي وه چي (( موږ د محمد داود خان پر ضد کودتا کوو چي که د پاکستان حکومت موږ په رسمیت وه پیژني )) ولي ذوالفقار علي بوتو د خپل نماینده په جواب کي ویلي وو چي (( موږ دغه خلګ نه پیژنو او پر دوی باندي اعتماد نه سو کولای ، او محمد داود خان موږ پیژنو او دده سره معامله کولای سو )) ( ۱۵ )

دلته دا مطلب د یادولو وړ بولم چي د ۱۹۷۳ کال تر کودتا یو کال وروسته ، د کودتا ځیني غړي د محمد داود خان له نظره ولویدل او په جمهوري دولت کي یي خپلي حساسي چوکۍ له لاسه ورکړي ، او دغه اشخاصو د جمهوري دولت څخه د انتقام اخستلو په وجه ، په اردو کي د بلي کودتا په لټه کي سول ، لکه ډګروال عبدالقادر ، محمد اسلم وطنجار او اسدالله سروري چي دغو اشخاصو په لاندي ډول د ۱۹۷۸ کال د اپریل د ۲۷نیټي په کودتا کي فعاله برخه اخستي وه :

ـ د ټانك لومړي مرمي د محمد اسلم وطنجار له خوا ددفاع پر وزارت فیر سوي وه او ده د ثور د نظامي کودتا خبر په کابل رادیو کي په پښتو ژبي لوستی دی۰

ـ پر شاهي ارګ باندي هوایي حملي د عبدالقادر او دده د ملګرو له خوا شوي دي او ده د نظامي کودتا خبر په کابل رادیو کي په دري ژبي لوستی دی۰

ـ د ثور د کودتا په ورځ اسدالله سروري د ارګ د خولي څخه محمد داود خان ته په لوړ سپیکر کي ویلي و چي زه اسدالله یم خان تسلیم کړه . ( ١٤ )

٥ ـ مرکزي کمیټه

د ۱۹۷۳ کال د کودتا په لومړیو ورځو کي د هیواد په ورځپاڼو کي یو عکس خپور سو چي څوارلس کسان د یوه میز پر څلورو خواوو ناست وو ، فیض محمد چي د کوماندو دریشي اغوستي وه د خبرو په حالت کي لیدل کیدی ، د محمد داود خان پر دواړو اړخونو ډاکټر محمد حسن شرق او سید عبدالاله ناست وو ۰ د مرکزي کمیټي رئیس محمد داود خان او منشي یي ډاکټر محمد حسن شرق و ۰ او د کمیټي غړي دا لاندي کسان وو :

فیض محمد ، سید عبدالاله ، پاچا ګل وفادار ، عبدالحمید محتاط ، غلام حیدر رسولي ، عبدالقدیر نورستاني ، غوث الدین فایق ، احمد ضیأ مجید ، محمد سرور نورستاني ، مولاداد او محمد یوسف ۰ په دغه عکس کي خلیل الله بابکرخیل هم لیدل کیدی ولي دی د مرکزي کمیټي غړی نه و ۰

ما په ۱۹۷٤ کال کي په خارجه وزارت کي د سید وحید عبدالله پر میز باندي د جمهوریت ددوري د عکسونو یو ټوك کتاب ولیدی چي په دغه کتاب کي د مرکزي کمیټي عکس نه و چاپ سوی ، ما دده څخه ددغه کار د علت پوښتنه وکړه ، ده زما په جواب کي وویل چي تر دي وروسته به مرکزي کمیته موجوده نه وي .

کله چي په ۱۹۷۷ کال کي د لوي جرګي له خوا د جمهوریت اساسي قانون تصویب سو ، نو د جمهوري ریاست له خوا د مرکزي کمیټي انحلال اعلان سو ۰ ډاکټر محمد حسن شرق په خپل اثر کي لیکي چي د مرکزي کمیټي غړو ته ددغه انحلال اطلاع نه وه ورکړه شوي (۱۶)

---

## د جمهوریت لومړني کابینه

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | محمد داود خان | ۱۹۷۳ـ۱۹۷۸ |
| مرستیال | ډاکټر محمد حسن شرق | ۱۹۷۳ـ۱۹۷٥ |
| | سید عبدالاله | ۱۹۷٥ـ۱۹۷۸ |

| | | |
|---|---|---|
| ددفاع وزير | محمد داود خان | ۱۹۷۷ـ۱۹۷۳ |
| | غلام حيدر رسولي | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۷ |
| خارجه وزير | محمد داودخان | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۳ |
| داخله وزير | فيض محمد | ۱۹۷۵ـ۱۹۷۳ |
| | عبدالقدير نورستاني | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۵ |
| د عدليي وزير | عبدالمجيد خان | ۱۹۷۷ـ۱۹۷۳ |
| | وفي الله سميعي | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۷ |
| د ماليي وزير | سيد عبداله | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۳ |
| د پوهني وزير | ډاکټر نعمت الله پژواک | ۱۹۷٤ـ۱۹۷۳ |
| | پوهاند عبدالقيوم وردگ | ۱۹۷۷ـ۱۹۷٤ |
| | ډاکټر محمد ابراهم مجيد سراج | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۷ |
| د لوړو تحصيلاتو وزير | پوهاند غلام صديق محبي | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۵ |
| د تجارت وزير | محمد خان جلالر | ۱۹۷۸ـ۱.۹۷٤ |
| د مخابراتو وزير | عبدالحميد محتاط | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۳ |
| | عبدالکريم عطايي | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۵ |
| د کانو وزير | پوهاند عبدالقيوم وردگ | ۱۹۷۵ـ۱۹۷۳ |
| | انجينر عبدالتواب آصفي | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۵ |
| د زراعت وزير | غلام جيلاني باختري | ۱۹۷۵ـ۱۹۷۳ |
| | عزيز الله واصفي | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۵ |
| د اطلاعاتو او کلتور وزير | ډاکټر عبدالرحيم نوين | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۳ |
| د فوايد عامي وزير | غوث الدين فايق | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۳ |
| د روغتيا وزير | ډاکټر نظر محمد سکندر | ۱۹۷۶ـ۱۹۷۳ |
| | ډاکټر عبدالله عمر | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۶ |
| د پلان وزير | علي احمد خرم | ۱۹۷۷ـ۱۹۷٤ |
| د قبايلو وزير | پاچا گل وفادار | ۱۹۷٤ـ۱۹۷۳ |

| | | |
|---|---|---|
| | فیض محمد | ۱۹۷۷ـ۱۹۷۵ |
| | پوهاند عبدالقیوم وردگ | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۷ |
| د اوبو او برق وزیر | جمعه محمد محمدي | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۶ |
| د دولت وزیر | ډاکټر عبدالمجید خان | ۱۹۷۸ـ۱۹۷۷ |

( ۱۷ )

## ۶ ـ د جمهوري نظام مؤثر اشخاص

د جمهوریت په لومړي کال کي د محمد داود خان تر څنګ ډاکټر محمد حسن شرق او فیض محمد هم په دولتي چارو کي د ډېرصلاحیت خاوندان وو ، خو ډېر ژر د دوی ځای سردار محمد نعیم خان او سید وحید عبدالله ونیوي ۰ چي دلته ددوی په برخه کي دا لاندي مطالب لیکل کیږي :

۱ ـ ډاکټر محمد حسن شرق چي د محمد داود خان ۲۵ کلن دوست او نژدي همکار و ، ده د جولای د ۱۷ نیټي په کودتا کي عمده رول درلود ۰ ده د خان د معرفي په هکله په ( کرباس پوشهاي برهنه پا ) کي مفصله لیکنه کړي ده ۰ د ډاکټر شرق سره په دولت کي د سید وحید عبدالله په وسیله مخالفت او کارشکني ډېر ژر پیل سو ۰ د مثال په توګه :

ـ د جمهوریت یه لومړیو میاشتو کي د هند د جمهور رئیس مرستیال سوارن سنګهه کابل ته سفر کړی و ، ده د صدارت په ماڼي کي د محمد حسن شرق سره رسمي لیدنه کوله ، خو سید وحید عبدالله ددغي لیدني له پاره هیڅوك د ترجمان په حیث نه و استولي چي په پای کي د عدلیي وزیر ډاکټر عبدالمجید خان مجبور سو چي ددوی تر منځ ترجماني وکړي ۰ په هغه شپه د ډاکټر محمد حسن شرق له خوا هندي میلمانه ته په خارجه وزارت کي یوه میلمستیا شوی وه ، څرنګه چي میلمه استالف تــه تللي و او پر خپل وخت کابل ته نه سو راتلای ، نو د میلمستیا وخت د یوه ساعت له پاره شاته ولویدي چي ددغه ځنډ اطلاع ټولو میلمنو ته ورکړه سوه ، ولي

ډاکټر محمد حسن شرق ته ددغه خنډ اطلاع سید وحید عبدالله نه وه ورکړې ۰

ـ یوه ورځ سید وحید عبدالله د محمد هاشم میوندوال د کودتا د اتهام د ملګرو د خبرو ټیپونه په خپل دفتر کي د هغه وزارت مامورینو ته اورول ، ده هلته وویل چي ددغو ټیپونو مطالب نن شپه د کابل راډیو له لاري څخه د خلګو په اطلاع رسول کیږي کله چي ډاکټر محمد حسن شرق په دغي موضوع خبر سو، نو ده د اطلاعاتو او کلتور وزارت ته امر وکړ چي ددغو ټیپونو خپریدل دي د څه مودي له پاره وځنډول سي۰

ـ ډاکټر محمد حسن شرق لیکي چي جمهوري دولت اراده کړې وه چي (( زما پر ځای نور احمد اعتمادي د افغانستان ددولت د رئیس د مرستیال په حیث مقرر کړي او ددغه کار دعملي کولو له پاره د سید وحید عبدالله تر رهبري لاندي زموږ د مرکزي کمیتي ملګري زما پر ضد لمسول کیدل )) ( ۱۸ )

ـ د نړۍ او مخصوصا زموږ د منطقي په هیوادونو کي چي نظامي کودتاګاني شوي دي ، د کودتا لومړۍ او دوهم مقام همیشه یوه د بل سره مقابله کړې ده ، په دې چي د کودتا دغه دوه کسان که یو د بل سره د عقیدې اختلاف و نه لري ، دوی حتما د سلیقي اختلاف سره لري ، چي ددې متل مطابق چي ( دوه سره په یوه دیګ کي نه ځایږي ) چي حتما یو سر به دمنځه وړل کیږي ۰ په مصر کي جنرال نجیب او جمال عبدالناصر په عراق کي عبدالسلام عارف او عبدالکریم قاسم او په پاکستان کي جنرال اعظم خان او جنرال ایوب خان ددې مطلب غټ مثالونه دي ۰

۲ ـ فیض محمد په قوم مسعود دی ، او دی د کوماندو د قطعې صاحب منصب و، ده د جولای د ۱۷ نیټې په کودتا کي ډیره فعاله برخه اخستې وه ، دی د محمد داود خان په لومړي کابیني کي داخله وزیر و ۰ د جمهوریت په لومړیو میاشتو کي د محمد داود خان سره دولایاتو دخلګو د لیدلو اجازه د فیض محمد له خوا ورکول کیده۰ ده د خپل حزبي تمایلاتو په وجه ډیر ژر خپل موقف د لاسه ورکړ چي لومړۍ د سرحداتو وزیر سو او وروسته په اندونیزیا کي د افغاني سفیر په حیث وټاکل سو ۰

ـ د جمهوریت په لومړیو میاشتو کي په جمهوري ارګ کي څه ترمیمات کیدل او د

يوي هفتي له پاره د محمد داود خان دفتر ، خارجه وزارت ته انتقال سو ، يوه ورځ د جمهوريت ددفتر رئيس محمد اكبر ما ته وويــل (( محمد نعيم خان ته اطلاع رسيدلي ده چي فيض محمد د پوهني د وزارت څخه دري سوه پرچميان غوښتي دي چي داخله وزارت ته يي وركړي ٠ چې دغه پرچميان د داخله وزارت له خوا په ولسواليو كي ددي له پاره مقررېږي چې لوي جرگي ته د پرچم غړي راولي )) ده دا هم وويــل (( د خارجه چارو د وزارت ددوهمي سياسي څانگي مدير محمد حكيم اريوبي ما ته وعده راكړي ده چي ددغو اشخاصو نومونه پيدا كوي ) ) ما د هغه وخت د پوهني د وزير ډاكټر نعمت الله پژواك څخه ددغي موضوع پوښتنه وكړه، ده ما ته وويل چي داخله وزارت د هغه وزارت ددفتر د رئيس په وسيله دري واره جمعا نژدي اتيا عادي ددولت مامورين د پوهني د وزارت څخه غوښتي وو ( ۱۹ )

ـ په هغو ورځو كي چي پاچا گل وفادار په بلغاريا كي د افغاني سفير په حيث وټاكل سو ، دى د خپلو كارونو د اجرا كولو له پاره به په خارجه وزارت كي زما په دفتر كي كښېنستې ٠ يوه ورځ د خارجه وزارت اداري مدير عبدالغني كريمي ما ته په تيلفون كي وويل چي د وفادار سره ددولت يوه تفنگچه سته چي هغه تفنگچه بايد داخله وزارت ته تسليم كړي٠ ما دغه مطلب وفادار ته ووايه ، ده زما په جواب كي وويل چي دغه تفنگچه د كودتا په شپه ما د سردار عبدالولي د لاسه څخه اخستي ده او زه دا تفنگچه هيچا ته نه وركوم ، وروسته پاچا گل وفادار د سردار عبدالولي د نيولو جريان داسي تشريح كړ ، ده وويــل (( زه او فيض محمد دواړه د سردار عبدالولي د نيولو له پاره دده كور ته ورغلو )) ده دا هم وويــل (( فيض محمد د پرچم غړى دى او زه دده د عقيدي سره مخالف يم ولي دى ډير زړه ور سړى دى ، هغه وخت چي دى د سردار عبدالولي كور ته ننوتى ، ده كلشنكوف چپه غاړي ته اچولي و او ده پر سردار عبدالولي باندي ږغ وكړ چي ټك و نه كړي چي وژل كيږي او سردار عبدالولي هم ټك و نه كړ او ما دده د لاسه څخه تفنگچه واخسته ، ولي اوس عبدالقدير نورستانى او غلام حيدر رسولي غواړي چي زه دغه تفنگچه دوى ته وركړم )) ما په هغه ورځ د وفادار څخه پوښتنه و نه كړه چــي دى كوم سياسي جريان ته منسوب دى ؟

محمد عزيز نعيم ليکــي (( په ۱۹۷۵  کال کي محمد داود خان ماته وويل چي په دولت کي د فيض محمد په حمايه ، يو تعداد کمونستان تخريبي کارونه  کوي او ډير ژر په په دولت کي تصفيه پيل سي  )) ( ۲۰ )

۳ ـ سردار محمد نعيم خان د محمد داود خان ورور دی  په  ۱۹۱۱  کال کي زيږيدلی دی ۰ ده د حبيبي او استقلال په ليسو کي زده کړه کړي ده ۰ د خارجه وزارت په مختلوفو څانگو کي يي کار کړی دی ۰

په ۱ ۹ ۳ ۷ کال کي د پوهني وزير سو،

په  ۱ ۹ ۳ ۹ کال کي د صدارت مرستيال او د پوهني وزير و۰

په ۱ ۹ ٤ ۶ کال کي په لندن کي  شارژدافير سو۰

په ۱ ۹ ۵ ۰ کال کي په واشنگتن کي سفير سو۰

د ۱ ۹ ۵ ۳ کال څخه تر ۱ ۹ ۶ ۳ کال پوري د صدر اعظم مرستيال او خارجه وزير و۰ دې د عدم انسلاك د نهضت طرفدارا و ، ده په ۱ ۹ ۵ ۵ کال کي د باندونگ په کنفرانس کي د افغاني هيأت مشري پر غاړه درلوده ۰ دی د شوروي اتحاد سره د افغانستان د ښو اړيکو غوښتونکی و ( ۲۱ )

رشتيا ليکي ، ده ته محمد نعيم خان ويلي دي چي دې د کودتا په شپه نه دمخه د محمد داود خان په کودتا خبر سوی دی  ( ۲۲ )

سردار محمد نعيم خان د جمهوريت په وخت کي تر محمد داود خان وروسته تر ټولو لوړ مقام درلود۰

د مثال په توگه :

د جمهوريت په لومړيو مياشتو کي د هند ديوه نظامي هيأت په وياړ په خارجه وزارت کي يوه ميلمستيا شوي وه چي زه هم هلته حاضروم، په دغي ميلمستيا کي محمد داود خان هم برخه اخستي وه ۰ کله چي سردار محمد نعيم خان دغي ميلمستيا ته راغي ، نو د محمد داود خان او د ټولو دولتي اشخاصو لـه خوا د ميلمستون پـه مدخل کي دده ډيره توده پذيرايي و سوه  ( ۲۳ )

سردار محمد نعيم خان به هره چهار شنبه ددولت څخه شاکي اشخاص په خپل

کور کي لیدل او ده به ددغو اشخاصو دوسیي د جمهوري ریاست ددفتر د رئیس محمد اکبر په وسیله غوښتلې او لازم هدایتونه به یي ورکول۰ ده په خارجه وزارت کي د خارجي سفیرانو سره هم ملاقاتونه کول ۰ سردار محمد نعیم خان د جمهور رئیس د خاص نماینده په حیث ایران ، هند ، شوروي اتحاد ، امریکا او ځینو عربي هیوادونو ته سفرونه کړي وو . ( ٢٤ )

٤ ـ سید وحید عبدالله د خارجه وزارت مامور و، دې د محمد داود خان د کودتا په وخت کي په لندن کي د افغاني سفارت سرکاتب و ۰ سید وحید عبدالله د کودتا په لومړي هفتي کي راوغوښتل سو، ځرنګه چي د کابل بین المللي هوایي میدان ته‌رلې و ، نو دی د اسلام کلا له لاري کابل ته راغی ۰ په سر کي دی د خارجه وزارت معین سو او وروسته د هغه وزارت د مرستیال په توګه و ټاکل سو ۰ دی د وزیرانو د مجلس منشي هم و ۰ سید وحید عبدالله د محمد داود خان او سردار محمد نعیم خان دواړو د اعتماد وړ سړی و ، دی په جمهوري دولت کي د ډیر قدرت خاوند و ، ده په دولت کي د وزارت تر مقام پوري ډیر اشخاص عزل او نصب کړي دي . ( ٢٥ )

سید وحید عبدالله په خارجي سیاست کي ډیري اشتباه ګاني هم کړي دي ۰ د مثال په توګه۰ د ١٩٧٥ کال د اپریل په میاشت کي جمهور رئیس محمد داود خان تهران ته رسمي سفر وکړ . زه ددغه سفر په وخت کي په تهران کي وم ۰ سید وحید عبدالله د پښتونستان د موضوع په هکله د اطلاعاتو د اخبار د مدیر سره د یوي مرکي په ترڅ کي وویـل ( دافغانستان دولت د پښتونستان د موضوع د حل له پاره د پاکستان ددولت څخه یوازي د هغه هیواد د اساسي قانون د تطبیق غوښتونکې دی ) کله چي دغه مطلب د اطلاعاتو په اخبار کي خپور سو ، محمد داود خان او دده د سفر ملګري په اصفهان کي وو ۰ د افغاني سفارت یوه غړي د اطلاعاتو د اخبار نشر سوی مطلب د تیلفون په وسیله د سید وحید عبدالله په اطلاع ورساوه۰ ولي سید وحید عبدالله پر خپلي خبري منکر سو او د اطلاعاتو د اخبار د بلي ورځي په ګڼي کي د سید وحید عبدالله له خوا د پورته مطلب رد ولیکل سو ۰ سید وحید عبدالله د خپل شخصي تمایلاتو پر بنا په جمهوري دولت کي تصفیه کوله ۰ ده د خارجه وزارت یو

شمیر مامورین په دي وجه د هغه وزارت څخه وایستل ، چي پخوا یي ده ته اعتنا نه وه کړي. کله چي محمد داود خان د ملي انقلاب د حزب په مرکزي کمیټي کي د سید وحید عبدالله ډلي ته ځای ور نه کړ ، نو ده د اعتراض په توګه خپل او پنځو نورو وزیرانو استعفي لیك محمد داود خان ته وړاندي کړ چي د سردار محمد نعیم خان د میانځګړیتوب په وجه ، دغه استعفي عملي نه سوه ( ۲۶ )

په وران کارو چي کارونه جوړوي

حقیقت کي جوړ کارونه ورانوي ( ۲۷ )

## ۷ ـ د محمد هاشم میوندوال د کودتا اتهام

دوې میاشتي او اووه ورځي وروسته تر هغه چې محمد داود خان کودتا وکړه ، یعني د ۱۹۷۳ کال د سبتمبر د میاشتي پر ۲۲ نیټې کابل رادیو اعلان وکړ چي پخواني صدراعظم محمد هاشم میوندوال او دده ملګرو د یوه خارجي هیواد په مرسته کودتا کوله او ونیول سول . لاندي اشخاص د کودتا کوونکو په نامه بندیان سول .

محمد هاشم میوندوال ، د ننګرهار پخواني والي خان محمد خان ، د هوایي قواوو پخواني قوماندان جنرال عبدالرزاق خان ، د هوایي قواوو قوماندان سید امیر ، جنرال عبدالجبار ملکیار ، جنرال عبدالسلام ملکیار ، ډګروال زرغون شاه ، ډګروال کوهاټ خان ، ډګروال شیر افضل افریدي ، ډګروال شیر افضل مومند ، محمد عارف شینوارې ، د ولسي جرګي ځیني غړي او څو نور کسان چي شمیر یي پنځه څلویښتو تنو ته رسیدې .

محمد هاشم میوندوال چي د محمد داود خان د کودتا په وخت کي په فرانسي کي و ده د پاریس څخه د یوه تلګرام په وسیله محمد داود خان ته د جمهوري نظام مبارکي ویلي وه او کله چي محمد هاشم میوندوال د بغداد د لاري څخه کابل ته ورسید نو یي د محمد داود خان او سردار محمد نعیم خان سره ولیدل ، او په هغو ورځو کي په کابل کي ویل کیدل چې محمد هاشم میوندوال د کانتیننتل په هوټل کي دفتر لري او د

جمهوري نظام له پاره اساسي قانون جوړوي . ( ۲ ۸ )

عبدالصمد غوث په خپل اثر کي د سردار محمد نعيم خان د قوله ليکي چي جمهوري دولت اراده درلودله چي محمد هاشم ميوندوال په واشنگتن کي د افغاني سفير په حيث مقرر کړي . ( ۲ ۹ )

محمد هاشم ميوندوال د خپل تحقيق په وخت کي ليکلي و چي زه منتظر وم چي جمهوري دولت به زما له پاره کومه وظيفه وټاکي (۳ ۰ )

د جنرال عبدالرزاق خان په هکله ما اوريدلي و چي د جمهوريت په لومړيو ورځو کي ډير هوايي صاحب منصبان په دي تصور چي ښايي دی به بيرته د هوايي قواو قوماندان سي نو څکه دده کور ته ور تلل ٠

د محمد هاشم ميوندوال د کودتا په اتهام د ولسي جرگي څيني غړي لکه د ننگرهار د کوچيانو وکيل حاجي الله نظر ، د جلال آباد د ښار وکيل حاجي فقير محمد ، د مومند دري وکيل سعدالله کمالي ، د نازيانو وکيل مولوي سيف الرحمن او داسي نور وکيلان بنديان سوي وو ٠ دغه وکيلان د خان محمد خان د دفاع د وزارت د مبارکي له پاره دده کور ته ورغلي وو ٠ څرنگه چي په هغه لحظي کي خان محمد خان په خپل کور کي نه و ، نو وکيلانو دده په کور کي خپل کاردونه پري ايښي وو ، چي د خان محمد خان د کور د تلاشي په وخت کي د وکيلانو کاردونه پيدا سوه او دغه کاردونه ددغو وکيلانو د کودتا د اثبات دليل و بلل سوه . ( ۳ ۱ )

کبير سراج په خپل اثر کي ليکي (( خان محمد خان ماته وويل چي زه د محمد داود خان په امر ددفاع وزارت ته ورغلې وم )) ( ۳ ۲ )

غوث الدين فايق چې د محمد داود خان په کودتا کي يي فعاله برخه اخستي وه او تر کودتا و روسته د مرکزي کميټي غړې او د فوايد عامي وزير سو ، په خپل اثر رازي را که نمي خواستم افشا گردد ، چي مفهوم يي داسي دې ليکي ( د کودتا په دوهمه ورځ جنرال مستغني ، جنرال سيد حسن خان او مرستيال خان محمد خان ، محمد داود خان ته ورغلي وو ، محمد داود خان ددوی څخه غوښتنه وکړه چي ستاسي څخه يو کس بايد ددفاع وزارت د کارونو دسمبالولو له پاره ، هغه وزارت ته ولاړ سي

، خان محمد خان تلوار وکړ او سمدلاسه ددفاع  وزارت ته ولاړ ، زه ء فایق ء محمد داود خان د خان محمد خان د مراقبت له پاره دده سره ولیږلم . خان محمد خان ددفاع د وزارت چوکي اشغال کړه . دوه ساعته وروسته چا ما ته خبر راکړ چي جنرال مستغني د لوی درستیز په حیث ټاکل شوی او خپله چوکي يي اشغال کړي ده . وروسته  محمد داود خان ، خان محمد خان وروغوښت او دده څخه يي غوښتنه وکړه چي خپل کور ته ولاړشي )( ۵ ۰ ۱ مخ )

د اطلاعاتو او کلتور وزیر ډاکټر عبدالرحیم نوین ما (فراهي )ته وویل (( د علي آباد روغتون ته د خان محمد خان په لاس لیك هدایت ورسیدی چي د وینو د ذخیري څخه ددفاع د وزارت له اجازي پرته باید استفاده و نه سي  ))

دلته دا مطلب د لیکلو وړ بولم چي  د  ۱۹۷۳ کال د اکتوبر په میاشت کي په پیښور کي د ملي عوامي حزب پر مشر خان عبدالولي خان باندي فیرونه و سوه چي په دغي پیښي کي دده موټروان ووژل سو او خان عبدالولي خان ته کومه صدمه و نه رسیده ۰ ما ددغي پیښي له کبله عبدالولي خان ته ددولت د رئیس محمد داود خان د همدردي پیغام چار سدي ته یووړ  ،  د عبدالولي خان تر لیدلو وروسته زه د اسلام آباد په افغاني سفارت کي وم ،  چي د ۱۹۷۳ کال د اکتوبر د میاشتي پر ۲۰ نیټي کابل رادیو اعلام وکړ چي پخواني صدر اعظم محمد هاشم میوندوال په محبس کي ځان وژلی دی ۰ یوه ورځ وروسته چي زه بیرته کابل ته راغلم ، ما د خارجه وزارت د معین سید وحید عبدالله پر میز باندي د محمد هاشم میوندوال د مړي هغه عکس ولیدی چي نیکټایي يي په غاړي کي اچول شوی وه ، دا عکس د خارجي سفیرانو د لیدلو له پاره د سید وحید عبدالله پر میز ایښوول سوی و  .

په افغانستان کي هیچا دا نه منله چي محمد هاشم میوندوال په خپله ځان وژلی وي غوث الدین فایق په خپل اثر،کي لیکي (( زه د محمد هاشم میوندوال تر وژل کیدلو یوه ورځ دمخه د محمد داود خان په هدایت د محمد هاشم میوندوال د لیدلو له پاره دده د تحقیق ځای ، داخله وزارت ته ورغلم . محمد هاشم میوندوال په دغه ورځ کمیس او پرتوگ اغوستی و ،  یوه ورځ وروسته اعلان و سو چي میوندوال په خپلي

نکتایي خان وژلی دی . ولي وروسته معلومه سوه چي محمد هاشم میوندوال په وهلو او ټکولو وژل سوی دی )) غوث الدین فایق په خپل اثر کي عبدالصمد ازهر د محمد هاشم میوندوال قاتل بللی دی ( ۹۵ تر ۱۰۰ مخونه ) (( ازهر وایي ، ددي امکان سته چي میوندوال په محبس کي د امنیتي مقاماتو له خوا وژل سوی وي ، هلته یو مقتدر دولت موجود و او ما دومره صلاحیت نه درلود چي پر خپل سر یو پخواني صدر اعظم ووژنم )) د محمد هاشم میوندوال د حکومت یوه وزیر ما ته وویل چي (( د تحقیق یوه غړي محمد هاشم میوندوال پر خوله او په نس کي په لغتو وهلي و او دده څخه یي پوښتنه کړي وه چي د شوروي اتحاد طبابت ښه دی او که د امریکا ؟ )) محمد هاشم میوندوال غا ښونه په مسکو کي ایښي وو او د کولمو عملیات یي په امریکا کي کړی وو ( ۳۳ )

محمد ابراهم خواخوږي د محمد هاشم میوندوال د میرمني د قوله ما تــه وویــل (( هغه وخت چي د محمد هاشم میوندوال مړی یي د کابل په ولایت کي په موټر کي دننه ما ته ښکاره کړ ، ما د محمد هاشم میوندوال د بدن پر کینې اړخ یو لوی ټپ ولید او زه ددولت د مؤظفو کسانو له خوا د محمد هاشم میوندوال د نور بدن د لیدلو څخه منع کړه سوم ))

د محمد هاشم میوندوال مړی دده فامیل ته نه دی سپارل سوی . ما اوریدلي دي چي په سر کي د محمد هاشم میوندوال مړی یي په بریکوټ کي د ژاندارم او پولیسو د قوماندانې د سکرو د ذخیري په خای کي تر خاورو لاندي کړی و چي وروسته د شهدایي صالحینو په نامعلوم خای کي د دوو زړو قبرونو تر منځ ښخ کړ سوی و.

د محمد داود خان د کابیني یوه غړي ما ته وویل چي د محمد هاشم میوندوال د مړیني په سبا د وزیرانو په مجلس کي محمد داود خان په خپله د محمد هاشم میوندوال د مړیني خبــر پــه هغه کلماتو چــي پــه مطبوعاتو کي خپور شوې و د وزیرانو مجلس ته ووایــه .

عبدالستار شالیزي چي د محمد هاشم میوندوال په حکومت کي د صدر اعظم مرستیال او داخله وزیر و ، دی د داخله وزیر فیض محمد په امر د شیر افضل

افريدي سره يو ځای د محمد هاشم ميوندوال د کودتا په اتهام د غزني څخه بنديان راوړل سول په داخله وزارت کي عبدالستار شاليزي ته د کور د تګ اجازه ورکړه سوه ، عبدالستار شاليزي ډير ژر د هيواد څخه ووت او د جمهوريت په ټولي دوري کي يي بيرته کابل ته سفر نه دی کړی ۰

## د محمد هاشم ميوندوال په باب څو نوري خبري

۱ ـ د خارجه چارو په وزارت کي د محمد هاشم ميوندوال يوه همکار سيد تاج الدين خان ما ته وويل (( کله چي صلاح الدين خان سلجوقي د اول وار له پاره محمد هاشم ميوندوال ، صدر اعظم محمد هاشم خان ته معرفي کاوه ده د محمد هاشم ميوندوال په هکله داسي ويلي و چي : دا هغه سيد جمال الدين افغاني دی چي ږيره نه لري ) ) په هغه وخت کي محمد هاشم ميوندوال پرديس تخلص کاوه ۰

۲ ـ په ۱۹٦۳ کال کي چي محمد هاشم ميوندوال په کراچي کي افغاني سفير و ، ده د پښتني سيمو د ليدلو له پاره پيښور ته سفر وکړ او د قونسلګري په اقامتګاه کي اوسيدی او زه دده سره د پاره چنار، ابت آباد ، سوات ، مردان ، چارسدي او د ورڅك د بند د سفر ملګرې وم ۰ ما پخوا د ميوندوال سياسي نظريات نه وه اوريدلي او ما فکر کاوه چي محمد هاشم ميوندوال په خاصو ملحوظاتو په دولت کي جګو مقامونو ته رسيدلی دی ۰ ولي په دغه سفر کي ما د افغانستان د ډيرو مغلقو پرابلمونو د حل له پاره د محمد هاشم ميوندوال نظريات واوريدل او هلته زه پوه سوم چي دی د افغانستان يو عادي مامور نه دی ، بلکه دی د يوه خارق العاده استعداد خاوند دی۰ په دغه سفر کي محمد هاشم ميوندوال دديموکراسۍ دوري پر اساسي قانون باندي د تبصري په ترځ کي وويل چي د نوي اساسي قانون په تدوين کي ډير شخصي ملحوظات په نظر کي نيول سوي دي ۰ ده د پاچا د فصل د ځينو ټکو سره موافقه نه درلوده ، ده د شورا او حکومت په فصلونو کي بيل نظريات درلودل ۰ دی د سياسي احزابو د ژر جوړولو جدي طرفدار و ۰ محمد هاشم ميوندوال وويل چي ده د اساسي قانون په هکله خپل نظريات پاچا ته وړاندي کړي دي۰

۳ ـ محمد هاشم ميوندوال د صدارت تر دوري وروسته په سياسي او حزبي چارو

مصروف سو . ده د مساوات په جريدي كي ډيري تحليلي مقالي ليكلي ، ده د زرنگار د پارك په مظاهراتو كي فعاله برخه اخسته . د زرنگار په پارك كي محمد هاشم ميوندوال يوه مهمه وينا وكړه چي محمد هاشم ميوندوال دغه وينا په پښتو او كله په دري ژبو كوله ، په دغه وخت كي د ټولو سياسي ډلو مظاهره كونكي ، عامه كتابخاي ته نژدي د پارك په هغي برخي كي چي محمد هاشم ميوندوال وينا كوله راټول سوي وو . گل پاچا الفت ، حشمت خليل غبار او زه د محمد هاشم ميوندوال ددغي وينا د اوريدلو له پاره د پارك په يوي برخي كي يو ځاى ولاړ و . محمد هاشم ميوندوال په خپلي وينا كي څو واره په لاس ارگ ته اشاره وكړه او دا شعر يي ووايه :

به كار مملكت قفلي نهادند          كليدش را به دست ما نه دادند

په ١٩٦٤ كال كي چي په پاكستان كي د جنرال محمد ايوب خان په مقابل كي د پاكستان د ټولو مخالفو احزابو له خوا د محمد علي جناح خور ، فاطمه جناح كانديده سوي وه ، په دغه كال كي ما په پيښور كي د پاكستان د مشهورو سياست پوهانو لكه د شرقي پاكستان مولينا بها شاني ، مولينا ابوالاعلا مودودي ، خان عبدالولي خان ، جنرال محمد ايوب خان ، جنرال اعظم خان ، ذوالفقار علي بوتو ، عثماني ، قصوري او داسي نورو خبري اوريدلي دي . خو دوى يوه هم د محمد هاشم ميوندوال په شان جامع وينا نه ده كړي . زما په عقيده د محمد هاشم ميوندوال دغه وينا د افغانستان ټولو سياسي احرابو ته د خطر يو زنگ و چي د ډيرو سياسي احزابو حسادت يي راوپاراوه ، او زه فكر كوم چي د محمد هاشم ميوندوال دغه وينا دده د وژلو سبب سوي ده ( ٣٤ )

د مترقي ديموكرات د حزب له خوا د محمد هاشم ميوندوال دغه وينا په فيتي كي ثبت سوي ده او يوه برخه يي د مساوات د جريدي په څو گڼو كي چاپ سوه ولي د مساوات د جريدي د مصادره كيدلو په وجه ددغي وينا ډيره برخه نه ده چاپ سوي .

٤ ـ محمد هاشم ميوندوال په ١٩٦٥ كال كي د خپل حكومت د كړنلاري د وړاندي كولو په وخت كي د ولسي جرگي په عمومي مجلس كي د رحمن بابا دا شعر ولوست :          لكه ونه مستقيم پر خپل مقام يم

که خزان راباندي راسي که بهار

محمد هاشم ميوندوال د خپل ژوند په وروستيو ورځو کي پورته خبره په اثبات ورسوله او د خپل ملي موقف څخه يي هيڅ راز عدول و نه کړ او د شهادت تر مرحلي پوري پر خپل ځای ثابت پاته سو ۰ روح دي ښاد وي ۰

دلته دا مطلب د ليکلو وړ بولم چي ډير هغه اشخاص چي د محمد هاشم ميوندوال د کودتا په اتهام بنديان سوي وو ، دوی د محمد داود خان پخواني اخلاصمندان هم وو او د محمد هاشم ميوندوال سره يي ښه روابط نه درلوده ۰ او د محمد هاشم ميوندوال د سياسي مبارزو او ويناگانو څخه ښکاره کيده چي دې په آخر کي د پاچا سره مخالف سوې و  او ددي امکان موجود و چي ده به د سلطنت پر ضد کودتا کړي وای  خو دی د جمهوري نظام سره مخالف نه و۰

## ۸ ـ د جمهوري دولت اصلاحي پروگرام

د ۱۹۷۳ کال تر کودتا څو ورځي وروسته ، مرکزي کميټي محمد داود خان ددولت د رئيس ، صدراعظم ، خارجه وزير او ددفاع د وزير په حيث وټاکې او د کودتاچيانو امتيازات او کابينه يي په تصويب ورسولي . د محمد داود خان  په فرمان د ۱۹٦٤ کال اساسي قانون لغوه سو . ددولت رئيس محمد داود خان د ۱۹۷۳ کال د آگست د مياشتي پر ۲۳ نيټي خلگو ته د خطاب په وينا کي په اقتصادي او اجتماعي چارو کي د يو لړ بدلونونو وعده ورکړه ۰ په دغه اساس د مځکو اصلاحاتو ته توجه و سوه . په دغه ساحه کي جمهوري دولت دوه قانونه تصويب کړل . ددغو قوانينو پر اساس د شخصي مالکيت اندازه په اوبه لرونکو مځکوکي سل جريبه او په للمي مځکو کي دوه سوه جريبه وټاکل سوه او دا هم پيشبيني سوي وه چي د خلگو اضافي مځکي به د  ۲۵ کلونو په قسط پر بي مځکو خلگو باندي خرڅيږي ۰ د جمهوري دولت له خوا د مـدنـي او جزايي قوانين تدوين سول  . ددغو قوانينو په وسيله د افغاني جامعي دوي مهمي ساحي په قانوني شکل تنظيمي کړه سوي ، چي ددغو قوانينو تدوين د جمهوري دولت د ښو کارونو څخه شميرل کيږي  ( ٤ ۳ )

د افغانستان د جمهوري دولت يو مهم اقدام ددولت اوه كلن اقتصادي پلان جوړول و . دغه پلان په ۱۹۷۶ كال كي پيل سو او په ۱۹۸۳ كال كي پای ته رسيدې.
په دغه پلان كي (۰ ۰ ۶ ٤ ) مليونه دالره سرمايه گذاري په نظر كي نيول سوي وه چي د پلان په پای كي يي (۰ ۰ ۵ ۲ ) مليونه دالره عايد هيواد ته عرضه كولای سو . لاندي هيوادونو په دغه پلان كي د افغانستان سره مرسته كوله ۰

- ايران ( ۱ ٤ ۱ ۱ ) مليونه دالره ۰
- شوروي اتحاد ( ۰ ۷ ۵ ) مليونه دالره ۰
- سعودي عربستان ( ۳ ۶ ) مليونه دالره۰

خينو نورو هيوادونو هم د افغانستان سره د مرستو ژمنه كړي وه ( ۵ ۳ )

د جمهوريت په وخت كي د كار د قواو يونټونه بيرته فعال سول او د سړكونو ترميم او مراقبت په ټول هيواد كي پيل سو ۰ د هيواد په مختلفو سيمو كي د سړكونو اسفالت ته اقدام و سو ، د مزار شريف ، شبرغان ، ميمني او هرات د سړكونو د جوړولو كار پيل سو۰ يو بل سړك چي د لښكرگاه څخه دوشي ، چاربرجكي او د ايران سرحد ته رسيدې كار يي پيل سو ۰ د وسپني د پټلي سروي چي د هرات څخه تر كندهار او كابل پوري او د لښكرگاه څخه د ايران تر سرحد پوري او د كندهار څخه تر سپين بولدك پوري او د كابل څخه د لوگر د عينك د ميسو تر كانه پوري او د كابل څخه د حاجي گك د وسپني تر كان پوري غزول كيدی او دا ټول ( ۱۸۱۰ )كيلو متر كيدی ، تكميله سوي وه او هغه سړك چي كابل يي د هزاره جات له لاري څخه د هرات سره وصل كاوه ، كار يي پيل سوی و۰ او د اوه كلن اقتصادي پلان په پای كي ۸۳ زره هكتاره نوي مځكه د زراعت له پاره آماده كيده ۰ د هيواد د هوايي ترانسپورت په برخه كي د لوگر پر بين المللي هوايي ميدان علاوه لس نور واړه هوايي ميدانونه جوړيدل ۰ د تعليم او تربيي ، عامه روغتيا او د ژوند په نورو برخو كي د توجه وړ بدلونونه راتلل . ( ۶ ۳ )

په ٤ ۷ ۹ ۱ كال كي سردار محمد نعيم خان شوروي اتحاد ته سفر وكړ چي ددغه سفر په نتيجه كي ، شوروي اتحاد د افغانستان سره د نورو مرستو وعده وكړه۰

د ۱۹۷٤ کال د نومبر په میاشت کي د امریکا خارجه وزیر هنري کسنجر کابل ته سفر وکړ او امریکا هم د محمد داود خان د جمهوري دولت سره دديموکراسي تر دوري ډیره مرسته وکړه . (۳۷)

د ۱۹۷۶ کال د جون په میاشت کي د پاکستان صدراعظم ذوالفقار علي بوتو کابل ته سفر وکړ او دري میاشتي وروسته محمد داود خان د پاکستان د جمهور رئیس په بلنه هغه هیواد ته رسمي سفر وکړ چي ددواړو سفرونو نتایج د توجه وړ وو او داسي تصور کیدی چي په نژدي راتلونکي کي به ددواړو هیوادونو مناسبات ډیر ښه سي ، خو د ۱۹۷۷ کال د جون د میاشتي پر پنځمه نیټه د جنرال ضیأ الحق له خوا په پاکستان کي نظامي کودتا وسوه او ددواړو هیوادونو تماسونه یو څه وځنډیدل.

د ۱۹۷۷ کال د اپریل په میاشت کي محمد داود خان شوروي اتحاد ته سفر وکړ ددغه سفر تفصیل د کتاب په بلي برخي کي لیکل سوی دی.

د ۱۹۷۸ کال په سر کي جمهور رئیس محمد داود خان د لیبیا ، یوګوسلاویا ، هند ، پاکستان ، کویت ، سعودي عربستان او مصر هیوادونو ته سفرونه وکړل چي په هر هیواد کي یي د مرستو غوښتنه منله کیده.

## ۹ ـ اساسي قانون

په ۱۹۷۶ کال کي د اساسي قانون د تسوید له پاره دا لاندي یو څلویښت کسان وټاکل سول .

ډاکټر محمد حسن شرق ، سید عبدالاله ، عبدالقدیر نورستاني ، ډاکټر عبدالمجید خان ، انجینر عبدالتواب آصفي ، غوث الدین فایق ، محمد خان جلالر ، ډاکټر عبدالله عمر ، عبدالکریم عطایي ، پوهاند عبدالقیوم وردګ ، ډاکټر عبدالرحیم نوین ، عزیز الله واصفي ، فیض محمد ، انجینر جمعه محمد محمدي ، علي احمد خرم ، سید وحید عبدالله ، غلام حیدر رسولي ، محمد سرور ، مولاداد ، محمد یوسف ، مولانا عنایت الله ابلاغ ، ډاکټر سعید افغاني ، عبدالهادي هدایت ، ډاکټر محمد آصف سهیل ، پوهاند وفي الله سمیعي ، خلیل الله خلیلي ، مولوي عبدالبصیر ، غلام علي

کريمي ، ډاکټر غلام صديق محبي ، جنرال شاه پور خان ، جنرال محمد يحيي نوروز ، محمد اکبر عبقري ، محمد اسمعيل قاسميار ، ډاکټر ضامن علي ، يار محمد دليلي ، سيد مخدوم رهين ، ډاکټر محمد بشير وهابزاده ، عاليه حفيظ ، فاطمه کيفي ، محمد اعظم وهابزاده او محمد ناصر ۰

د ۱۹۷۷ کال د جنوري د مياشتي پر ۲٦ نيټي د اساسي قانون مسوده د عامو خلګو د خبرتيا له پاره د هيواد په جرايدو کي نشر سوه۰ د جمهوري دولت اساسي قانون ۱۳٦ مادي درلودي ۰ ددغه قانون ډير مواد مخصوصا د شخصي مصونيت احکام دديموکراسۍ دوري د اساسي قانون موادو ته ورته دي ، چي ځيني ليکوالان دغه ورته والې داسي تعبيروي چي د جمهوريت د وخت د اساسي قانون دغه احکام دديموکراسي دوري د اساسي قانون څخه اخستل سوي دي۰ اما واقعيت دادې چي محمد داود خان دديموکراسۍ دوري د اساسي قانون د څو مادو سره مخالف و او ده د ديموکراسۍ دوري د اساسي قانون نور متن لا ېخوا منلی و ۰

د افغانستان دجمهوري دولت اساسي قانون ، د سياسي احزابو په برخه کي د افغاني جامعي عيني شرايط په نظر کي نه وو نيولي ۰ ددغه اساسي قانون څلويښتمه ماده داسي حکم کوي چي (( د افغانستان د خلګو د سياسي روزني او اجتماعي غوښتنو د څرګندولو په منظور ، تر هغه وخته چي دا آرزو تر سره کيږي او طبيعي ودي ته رسيږي ، په هيواد کي د ملي انقلاب د ګوند په لارښوونه کوم چي د افغانستان د خلګو د ۱۳٥۲ کال د چنګاښ د ۲٦ نيټي د مترقي او ولسي انقلاب بنسټ ايښودونکی او مخکښی ګوند دی ، يوازي يو ګونديز سيستم ټينګ دی )) ( ۳ ۸ )

څرنګه چي په دغه کتاب کي به يي وروسته ولولې د اساسي قانون دغي مادي په هيواد کي ډيري ستونزي را پيدا کړي ۰

## ۱۰ ـ لويه جرګه

د اساسي قانون د تصويب له پاره د ۱ ۹ ۷ ۷ کال د فبروري د مياشتي پر ۱۹ نيټي په کابل کي يوه لويه جرګه جوړه سوه ۰ ددغي جرګي ټول غړي ( ۹ ٤ ۳ ) تنه وو

دديموكراسۍ ددورې پر خلاف ددغې جرگې ( ۲۱۹ ) غړي د افغانستان د لويو جرگو په عنعنوي طريقې د خلگوله خوا په جرگو کې وټاکل سول او (۱۳۰) تنه ددولت د رئيس محمد داود خان له خوا لوی جرگې ته معرفي سول ۰ دغه لويه جرگه د پنځلسو ورځو له پاره په کابل کې دايره وه ۰ دغې جرگې د ۱۹۷۷ کال د مارچ د مياشتې پر څلورمې نېټې اساسي قانون تصويب کړ او محمد داود خان يې د شپږو کلونو له پاره د جمهور رئيس په حيث وټاکې ۰ نوې اساسي قانون د ۱۹۷۷ کال د مارچ د مياشتې پر ۱٤ نېټې د محمد داود خان له خوا توشيح او نافذ سو۰ ددغې لوی جرگې رئيس عزيزالله واصفي و ۰

## ۱۱ ـ د ملي انقلاب گوند

جمهوري دولت اراده وکړه چې د څه مودې له پاره به يوازې دولتي حزب په افغانستان کې د سياسي فعاليت اجازه ولري او دغه موضوع يې د ۱۹۷۷ کال په اساسي قانون کې تسجيل کړه ۰ د جمهوري دولت دغه اقدام د هيواد د ځوان نسل د شديد عکس العمل سره مخا مخ سو ۰

په ۱۹٦۳ کال کې محمد داود خان پاچا ته د دوه حزبي سيستم ديموکراسي پيشنهاد کړی و چې دغه پيشنهاد د افغانستان د هغه وخت د شرايطو سره برابر يو پيشنهاد و او د افغانستان ډيرو منورينو به په دغو احزابو کې برخه اخستې وای۰ ولي دديموكراسۍ په لسو كلونو كې چې په افغانستان كې مختلفو ايدولوژيگانو لاره پيدا كړه او په هيواد كې ښې او كيڼ اړخ لوی سياسي ډلي جوړې سوې او د افغانستان اکثر منورين په دغو ډلو کې جذب سول ، نو د جمهوريت په وخت کې ددې امکان موجود نه و چې ددغو ډلو غړي په آسانه د خپلې عقيدې څخه انحراف وکړي او يا د سياسي فعاليت څخه لاس واخلي ۰

د ملي انقلاب حزب په افغانستان کې ډير تعميم نه سو ، يوازې په داخله ، خارجه او سرحداتو په وزارتونو کې ددغه گوند له پاره څو غونډې و شوې او ډيرو محدودو اشخاصو ددغه حزب له پاره فعاليت کاوه ۰ په جمهوري دولت کې دملي انقلاب حزب

عملاً دري اړخونه درلودل چي حکومت هم پر دغو دروو اړخونو ویشل سوې و ٠

- د سید عبدالاله ، عبدالقدیر نورستاني او غلام حیدر رسولي ډله٠
- د پوهاند عبدالقیوم وردگ او ډاکټر عبدالمجید خان ډله ٠
- د سید وحید عبدالله او عزیزالله واصفي ډله ٠

د یوي ډلي مشر عزیزالله واصفي د حزبي جلب او جذب له پاره د افغانستان شمالي او غربي ولایتونو ته یو سفر وکړ ٠ کله چي واصفي د ارزگان په ولایت کي و کابل رادیو د ملي انقلاب د حزب د مرکزي کمیټي د پنځه غړو لکه ډاکټر عبدالمجید خان ، پوهاند عبدالقیوم وردگ ، سید عبدالاله ، غلام حیدر رسولي او عبدالقدیر نورستاني نومونه اعلام کړل ، چي د واصفي او سید وحید عبدالله ډلي ته يي په مرکزي کمیټي کي ځای ور نه کړ ٠ سید وحید عبدالله او پنځو وزیرانو ، عزیزالله واصفي ، وفي الله سمیعي ، عبدالکریم عطایي ، تواب آصفي او عبدالله عمرد محمد داود خان ددغه اقدام په مقابل کي استعفا وکړه ، بله ورځ سردار محمد نعیم خان د جمهور رئیس او مستعفي وزیرانو تر منځ وساطت وکړ او وزیران بیرته خپلو وظایفو ته ولاړل ( ۳۹ )

څرنگه چي د ملي انقلاب حزب د ایران د رستاخیز د حزب لاره تعقیبوله ، نو ښه داده چي دلته د ایران د رستاخیز حزب په یو څه تفصیل سره ولیکل سي ٠

د ۱۹۷۵ کال د مارچ په میاشت کي د ایران پاچا د خپل هیواد د ملکي او نظامي لویو اشخاصو په یوي غونډي کي د ( ایران نوین ) او ( مردم ) په شمول د ایران ټول سیاسي احزاب منحل کړه او ددغو احزابو پر ځایي دامیر عباس هویدا په مشري د رستاخیز په نامه د یوه نوي حزب جوړول اعلان کړه ٠ ده په دغي غونډیکي وویل چي د ایران پیشرفت ډیر سریع دی چي پر دغو انکشافاتو باندي د انتقاد گنجایش نه سته نو د مخالف حزب جوړول بي لزومه دي ٠ ده ټولو ایرانیانو ته امر وکړ چي په دغه نوي حزب کي شامل سي٠ ده وویل چي ، که کوم ایراني ادعا وکړي چي د سیاست سره علاقه نه لري ، دغه ایراني باید خپله دغه ادعا په اثبات ورسوي او د ایران ددولت څخه دي هم څه شي و نه غواړي ٠ د ایران پاچا د تودي د حزب په ارتباط وویل چي دغه خلگ بي وطنه دي چي تر دي وروسته په ایران کي ددوی ځای زندان دی او یا

پاسپورتونه به اخلي او د ایران څخه به وزي ( ٤٠ )

د رستاخیز دحزب د ( جناح سازنده ) د اړخ مشر امیر عباس هویدا او د ( جناح پیشرو ) د اړخ مشر آموزگار و ۰

ایرانې لیکوال ابراهمیان په خپل اثر کي لیکــي ( د رستاخیز حزب د دوو متفاوتو ډلو په مشوره طرحه او جوړ سوې و ۰ یوه ډله هغه ایرانیان وو چي د امریکا په یونورستیو کي یي تحصیل کړې وو ۰ دغه ډله د امریکا د هاروډ د پوهنتون د سیاسي علومو د استاد Huntington د فلسفي پیروان وو ۰ دغه امریکایي استاد عقیده لري چي ، په مخ پر انکشافو هیوادونو کي د ثبات او استحکام یوازني لاره داده چي په دغو هیوادونو کي یو قوي او باانضباطه حکومتي حزب جوړ سي او دغه قوي حزب کولای سي چي په هغه هیواد کي د دولت او جامعي تر منځ عملي رابطه ټینګه کړي۰ او ددغه حزب په وسیله دولت کولای سي چي عام ولس متحد او بسیج کړي ۰ او هم ددغه حزب په وسیله دولت کولای سي چي د مخالفینو د تخریب مخه و نیسي۰ ولي دغو ایرانیاتو د هنتنګتون د افکارو دغه برخه د نظره غورځولي وه چي ، په نني عصر کي سلطنتي نظام بي لزومه دی ، او په یوه هیواد کي یو حزب باید د حکومت د لاس آله نه وي چي د هغه په وسیله خلګ تر خپل کنترول لاندي راولي ، بلکه دولت او جامعه باید یو پر بل باندي متقابل تاثیرات ولري .

د مشاورینو دوهمه ډله د شیراز د ولایت پخواني کمونستان وو چي د ١٩٥٠ کال په لسیزي کي د تودي د حزب څخه جلا سوي وو او اوس د اسدالله علم له لاري څخه دغي وظیفي ته ګمارل سوي وو ۰ دغي ډلي ادعا کوله چي په ایران کي یوازي دلیننستي ډلي په شکل یو حزب کولای سي چي د ایران ولس متحد او بسیج کړي ۰ او د ایران دولت باید خپله عنعنوي لاره پریږدي او د یوي عصري جامعي د جوړولو له پاره نوي لاره غوره کړي ) دغه لیکوال دا هم لیکــي ( د رستاخیز د حزب هدف داو چي د زړي طریقي نظامي دکتاتوري په یوي حزبي دکتاتوري بدله کړي۰ دوی به ویل چي موږ د سوسیالیزم او سرمایه داري نظامونو څخه ټول ښه شیان اخلو ، او موږ یوه منطقي رابطه ددولت او خلګو تر منځ جوړوو ، او دغه کار به د لوی لیدر یعني د ایران د پاچا

سره مرسته وکړي چې خپل سپین انقلاب سر ته ورسوي او ایران لوی تمدن ته ورسوي . د رستاخیز حزب مرکزي کمیته او سیاسي بیورو درلوده ٠ دغه حزب د مې د میاشتي لومړي ورځ د کارگرانو د ورځي په نامه نمانځله ٠په دغه حزب کي د ایران ١٦ ملیونه خلگ شامل سول ، او د ایران هغه ناراضي خلگ چې ډیر کلونه ددي له پاره منتظر وو چي یو وخت به د ایران د مسلط نظام سره خپله مبارزه پیل کړي ، دغه خلگ مجبور سول چي د رستاخیز په حزب کي شامل سي او حتي د ایران په بازارونو او کوخوکي د ( ٠ ٠ ٥ ٢ ) کالونو د شهنشاهیت سندري ووایي٠

د رستاخیز حزب د مذهب په شمول د ایراني جامعي په ټولو امورو کي مداخله وکړه چي حتي اسلامي تقویم یي واړاوه او د هغه پر ځای یي د شهنشاهیت جنتري جوړه کړه ، چي ددوی‌په عقیده ایران په یوه ورځ د ٥ ٥ ٣ ١کال څخه ٥ ٣ ٥ ٢ کلونو ته ورسیدې ٠ چي په نتیجه کي د رستاخیز حزب د ایران ټول رژیم کمزوره کړ او د ایران پاچا یي د ایراني جامعي څخه تجرید کړ٠

پخوا به د ایران دولت داسي ویل چي، هغه کسان چي زموږ پر ضد نه دي هغه کسان زموږ ملگري دي٠ ولي د رستاخیز حزب داسي خطرناکه شعارونه ورکول چي ، هغه کسان چي زموږ له پاره فعالیت نه کوي ، دوی زموږ پر ضد دي ٠ )

وروسته آیت الله خمیني د خپل تبعیدگاه یعني عراق څخه داسي فتوا صادره کړه چي ، د رستاخیز حزب غیر ملي او غیر اسلامي دی ٠ ده د خپلو پیروانو څخه وغوښتل چي په دغه حزب کي شامل نه سي ٠ چي په آخر کي په ٧ ٧ ٩ ١ کال کي په ایران کي اسلامي انقلاب پیل سو او تر ۶ ١ میاشتو مبارزو وروسته د ٩ ٧ ٩ ١ کال د فبروري په میاشت کي دغه انقلاب ثمر ته ورسیدې . ( ١ ٤ )

څرگه چي دمخه اشاره ورته وسوه د افغانستان په دیموکراسي دوري کي گڼ شمیر حزبونه په افغانستان کي جوړ سوي وو ، چي جمهوري دولت ته گرانه وه چي پر دغو ټولو احزابو باندي د بطلان لیکه کش کړي او یوازي یو دولتي حزب چي د پاسه څخه راغلې وي پر افغاني جامعي باندي مسلط کړي ٠ جمهوري دولت مجبور و چي د نورو احزابو په مقابل کي د ایران د پاچا روش انتخاب کړي او بیرته په افغاني جامعي کي

سياسي اختناق راولي چي په دغه صورت کي نورو احزابو ته پرته تر مځکي لاندي فعاليت او نظامي کودتا څخه بله لاره نه پاته کيده ۰ د بلي خوا څخه جمهوري دولت فيصله وکړه چي د ملي انقلاب حزب د رستاخيز د حزب په شان دوه اړخونه او مرکزي کميته ولري ، او ددو اړو اړخونو مشران يي د مرکزي کميټي د غړو په حيث و ټاکل ۰ د محمد داود خان د اعتماد وړ سړي سيد وحيد عبدالله د جمهور رئيس پر دغي فيصلي باندي اعتراض وکړ ۰ دغه حادثه دا ثابتوي چي محمد داود خان په دغه وخت کي د خپل حکومت پر غړو باندي هم کنترول د لاسه ورکړې و ۰ تر څو چي په افغانستان کي د ثور کودتا و سوه ۰

## ۱۲ ـ په ايران کي افغاني کارگران

د۰ ۱۹۷ په لسيزه کي چي په بين المللي بازارونو کي د تيلو بيه لوړه سوه او دتيلو د هر بيرل بيه د ۱۲ دالرو څخه ۳٦ دالرو ته ورسيده ، نو د خليج ټول هيوادونه د باد راوړو بي حسابه دالرو نو خاوندان سوه ۰ په ايران ، سعودي عربستان ، کويت او متحده اماراتو کي ډيري صنعتي او عمراني پروژي تر کار لاندي ونيولي سوي ، چي د پاکستان ، بنگله ديش او هند ډيرو ماهرو او غير ماهرو کارگرانو دغو هيوادونو ته د کار له پاره ورتلل۰

ما په مشهد کي د يوه پاکستاني متقاعد جگړن څخه چي په کويت کي يي کار کاوه پوښتنه وکړه چي څه تعداد نظامي پاکستانيان د کويت ددفاع په وزارت کي کار کوي ؟ ده زما په جواب کي وويـل (( هلته زموږ تعداد دومره ډير دی چي که موږ وغواړو په هغه هيواد کي کودتا کولای سو )) د ۰ ۱۹۷ په لسيزي کي د پاکستاني کارگرانو دلاس مزد په هر کال کي ديرش مليونو دالرو ته رسيدې ، او په دغو دالرو به په پاکستان کي کارخاني جوړيدلي ۰

افغاني کارگرانو هم د خليج هيوادونو ته د کار پيداکولو هڅي پيل کړي څرنگه چي ډيرو افغانانو ته د پاسپورت اخستل مشکل کار و ، نو څکه دوی غير مجاز د افغاني

سرحد څخه تیریدل او د ایران په کارخانو او زراعتي پروژو کي یي په لږ اجرت کار کاوه ۰ ایرانیانو چي د خپلو عمراني پروژو له پاره د کوریا او فلپین څخه عادي کارگران استخدامول ، دوی ته افغاني ارزانه بشري قوه چي نه یي د خوب ځای غوښت او نه یي ددوی سره د کار د ساعتونو حساب کاوه او په صحي بیمي هم نه پوهیدل ، یو لوي نعمت و۰ څرنگه چي افغاني کارگران د غیر قانوني لارو څخه د ایران خاوري ته ننوتل او د ایران په کلیو کي به یي په پټه کار کاوه ، دوی د خپل اجرت د خوندي ساتلو له پاره مطمنین ځای هم نه درلود ۰ دوی مجبور وو چي د کارخانو د مالکانو څخه غوښتنه وکړي چي ددوی اجرت په کارخانو کي وساتي او کله چي دوی افغانستان ته ځي خپلي پیسي به د کارخانو څخه واخلي ۰ د ایران د ډیرو کارخانو مالکان به د افغاني کارگرانو پر اجرت باندي منکر کیدل او افغاني ډیر کارگران به یي تر څو میاشتو کارکولو وروسته تش لاسونه د خپلي کارخاني څخه شړل۰ هره ورځ به ډیرو افغاني کارگرانو افغاني جنرال قونسلگري ته مراجعه کوله ، چي په لکونو ایراني ریال د جنرال قونسلگري په مرسته د ایران د کارخانو د مالکانو څخه تحصیل شوي دي ۰

ډیرو افغاني کارگرانو به صرف څو میاشتي په ایران کي کار کاوه او بیا به بیرته افغانستان ته تلل ۰ په دغو کلونو کي نژدي اته لکه افغانان په ایران کي په کار بوخت وو چي ددوی ډیر وخت به د افغانستان او ایران تر منځ په تگ او راتگ کي تیریدې ، ډیر خطرونه به هم دغو کارگرانو ته متوجه وو ۰ په سرحدي سیمو کي به غلو د افغاني کارگرانو مخه نیوله او ددوی پیسي به یي ددوی څخه اخستي او کله کله به د سر تاوانونه هم دوی ته رسیده ۰په دغو کلونو کي ډیر خارجي اسعار افغانستان ته راوړل سول چي د یوه امریکایي دالر بیه ٣٦ افغانیو ته را ټیټه سوه۰ دغه ډیر شمیر کارگران چي په ایران کي په کار بوخت وو ، په افغانستان کي یي صنعت او زراعت ته ډیر تاوان ورسوی ۰ د افغانستان په غربي سیمو کي د بزگرانو د کمبود په وجه د زراعتي محصولاتو مقدار ډیر لږ سو ۰

په ١٩٧٥ کال کي د ایران دولت د افغانستان څخه د ٣٠ زرو عادي کارگرانو د استخدام غوښتنه وکړه ، د ایراني مقاماتو پیشنهاد دا و چي د افغانستان دولت دي دغو

کارگرانو ته د هویت یوه مخصوصه پاڼه ورکړي او دغه کارګران به د اسلام قلعه او تایباد د لاري څخه به ایران ته ورځي او د ایران لویو ښارونو ته انتقالیږي او ،هلته به ددغو کارګرانو له پاره د اوسیدلو ځایونه او بانکي حسابونه آماده کیږي ۰ ولي افغاني مقاماتو په دغي برخي کي کوم اقدام و نه کړ ۰ چي په پای کي ایراني سرحدي مقاماتو په خصوصي توګه یو زر افغاني کارګرانو ته اجازه ورکړه چي د اسلام قلعه او تایباد له لاري څخه د ایران خاوري ته داخل سي د تهران د کارخانو له خوا ددغو کارګرانو د انتقال له پاره تایباد ته سرویسونه راستول سوي وو ، دوی یو تعداد افغاني کارګران په سرویسونو کي سپاره کړل ، ولي ددغو کارګرانو څخه حتي یو سړی هم دتهران ښار ته و نه رسید ، په دي چي افغاني کارګران په لاري کي د سرویسونو څخه پلي سول او د ایران په کلیوکي په کارونو بوخت سول (۴۲)

## ۱۳ ـ پر جمهوري نظام ولي کودتا وسوه ؟

محمد داودخان تر خپل صدارت لس کاله وروسته کودتا وکړه چي په دغو کلونو کي زموږ په سیمي او نوري نړي کي لوی بدلونونه راغلي وو ۰ په افغانستان کي د لسو کلونو له پاره دیموکراسي وه ، نوې اساسي قانون نافذسوې و ، په هیواد کي د دو تقنیني دورو د شورا د غړو د ټاکلو له پاره آزاد انتخابات سوي وو ۰ قضائیه قوه د حکومت څخه جلا سوي وه ، د کابل په ښار کي آزادي جریدي خپریدي ، او په هیواد کي ډیر احزاب جوړ سوي وو ، او د نړي متضادو ایدلوژیګانو په هیواد کي نفوذ کړې و او د نړي ډیر هیوادونه په افغانستان کي دخپلو مفکوروي تسلط په لټه کي وو ۰

د محمد موسي شفیق حکومت د ایران او ځینو عربي هیوادونو سره اقتصادي او کلتوري اړیکي ټنګي کړي ، د ایران سره یي د هلمند د اوبو معاهده لاس لیك کړه ، د تهران د رادیو څخه د پښتوژبي خپروني پیل سوي ۰ او د پاکستان د هیواد سره هم د افغانستان عادي مناسباتو ادامه درلوده ۰

د ۱۹۷۰ په لسیزي کي چي د تیلو بیه ډیره لوړه سوه ، د خلیج بډایو هیوادونو مخصوصا ایران زموږ په سیمي کي د امریکا په ګټه او د شوروي اتحاد پر ضد څه

اقدامات پیل کړه ٠

پاکستان چي د خپلي شرقي برخي ( اوسني بنگله دیش ) دروند پیټې د خپلو اوږو څخه غورځولې و ، نو په ډیر اطمینان سره یي د اوسني پاکسنان په آبادولو پیل وکړ ځرنگه چي مرکزي او د آسیا د جنوب ختیز نظامي اتحادیي چي پاکستان په هغوي کي غړیتوب درلود ، د منځه تللي وي ، نو پاکستان د هغه سیاسي او اقتصادي فشاره څخه خلاص سو چي د شوروي اتحاد له خوا دغه هیواد ته متوجه و ٠

امریکا او نورو غربي هیوادونو د ٠ ٥ ٩ ١ او ٠ ٦ ٩ ١ په لسیزه کي د شوروي اتحاد د نفوذ د مخنیوي په غرض په منځني ختیز او د آسیا په جنوب کي نظامي اتحادیي جوړي کړي ٠ دغي اتحادیي په عمل کي ناکامي سوي ، او د ١٩٧٠ په لسیزي کي ددغو اتحادیو پر ځای د امریکا په لارښونه د ایران او د خلیج د بډایو هیوادونو په وسیله په منځني ختیز او د آسیا په جنوب کي جاسوسي فعالیتونه پیل سول چي د ایران جاسوسي دستگاه ساواك او سي آی ای او د سعودي عربستان د جاسوسي دستگاه په افغانستان او د منطقي په نورو هیوادونو کي د شوروي اتحاد د نفوذ د کمولو له پاره اقدامات پیل کړه ، چي په افغانستان کي ددغو تخریبي عملیاتو مقدماتي مراحل د افغانستان ددیموکراسۍ په دوري کي شروع شوي وو ( ٤٣ )

د عدم انسلاك په نهضت کي هم څه بدلونونه راغلي وو ٠ دغه نهضت چي د باندونگ په کنفرانس کي یي ٢٧ غړي درلودل ، د ٠ ٧ ٩ ١ په لسیزي کي یي د غړو شمیر دري برابره سو ، او ځینو انقلابي هیوادونو لکه کیوبا ، زمبابوې ، د فلسطین د آزادۍ نهضت او داسي نور هیوادونه ددغه جنبش په غړیتوب و منل سول ، چي ددغو انقلابي غړو په ورتگ سره دغه جنبش خپله عنعنوي د منځ لیکه پریښووله او د شوروي اتحاد سیاست ته یي میلان پیدا کړ ٠د مثال په توگه ٠ په ٩ ٧ ٩ ١ کال کي ددغه نهضت د کنفرانس په پریکړه لیك کي چي په هاوانا کي یي صادر کړی و ، تر شل واره ډیر یي د امریکا امپریالیزم غندلې و ، ولي په دغه پریکړه لیك کي حتي یوواري هم د شوروي اتحاد سیاست نه و غندل سوی . ( ٤٤ )

محمد داود خان په دغو کلونو کي کودتا وکړه او په دغي پیچلي او ماین گذاري

شوي سياسي مرحلي کي يي د افغانستان ددولت واگي په لاس کي واخستي ٠

## ١٤ ـ کورني ستونزي

ډاکټر محمد حسن شرق ليکي چي (( موږ په ١٩٧٠ کال کي تصميم ونيو چي په افغانستان کي به د کودتا د لاري څخه سلطنتي نظام ته خاتمه ورکوو ، او دري کاله وروسته موږ کاميابه کودتا وکړه ٠ ولي ډير ژر د کودتا ملگري او مخصوصا د مرکزي کميټي اوه غړي د محمد داود خان د نظره ولويدل او د حساسو مقامونو څخه ليري کړل سول ، او محمد داود خان پر هغو اشخاصو تکيه پاته سو چي موږ د هغو پر ضد کودتا کړي وه )) ( ٤٥ )

Selig Harison ليکـي (( تر کودتا يو کال وروسته محمد داود خان په دولت کي تصفيه پيل کړه ، ده د ١٩٧٤ کال د جولای په مياشت کي دوه سوه د اردو هغه نظامي افسران ليري کړل چي په شوروي اتحاد کي يي تحصيل کړی و ٠ ده د ١٩٧٥ کال د اکتوبر په مياشت کي څلويښت نور همدغه ډول صاحب منصبان د اردو څخه وايستل ٠ ده شوروي اتحاد ته د نظامي افسرانو ليږل محدود کړل او ځيني عسکري صاحب منصبان يي هند ، مصر ، ترکيي او امريکا ته و ليږل )) دی ليکي (( د محمد داود خان بل مهم اقدام د ملي انقلاب د حزب جوړول وو چي په اساسي قانون کي يي د نورو سياسي ډلو فعاليت منع کړ، نورو سياسي گوندونو د محمد داود خان ددغه تصميم سره مخالفت وکړ او دجمهوري نظام پرضديي وسيع تبليغات کول )) دی ليکي (( ډيره مهمه حادثه د ١٩٧٥ کال د نومبر په مياشت کي پيښه سوه چي په دغي مياشت کي جمهوري نظام پر دو مهمو او حساسو مسايلو باندي لکه د هلمند د اوبو معاهده او د پښتونستان پر موضوع باندي عقب نشيني وکړه ٠ يعني محمد داود خان تر کودتا دوه کاله وروسته حاضر سو چي د هلمند د اوبو معاهده د ايران سره ومني کله چي محمد داود خان د ١٩٧٨ کال د مارچ د مياشتي پر پنځمي نيټي د پاکستان د سفر څخه بيرته کابل ته راغي ، هغه وخت د کابل په سياسي حلقو کي ويل کيدل چي محمد داود خان د ډيورنډ کرښه په رسميت پيژندلي ده ٠ دغي آوازي هغه

وخت لا ډيري تودي سوي چي جمهور رئيس محمد داود خان د پښتنو او بلوڅو مشرانو او اته زره مهاجرو بلوڅو ته وويل چي د ۱۹۷۸ كال د اپريل د مياشتي تر ۳۰ نيټي پوري بايد د افغانستان د خاوري څخه ووزي )) ( ٤۶ )

ـ دی د اجمل خټك د قوله ليكي چي (( محمد داود خان مور ته وويل چي جنرال ضيأالحق هغه پښتانه او بلوڅ چي د ذوالفقار علي بوتو په وخت كي بنديان شوي وو آزاد كړي دي او تاسي د ضيأ الحق تر رهبري لاندي خپل حقوق تر لاسه كولای سي ، او ما د محمد داود خان ددغه تصميم سره مخالفت وكړ )) ( ٤٧ )

ـ نبي عظمي په خپل اثر كي ليكي چي (( كله چي محمد داود خان ، جمهوري اردو د اسلامي تندروانو ، ماويستانو او د محمد هاشم ميوندوال د پلويانو څخه پاك كړ ، نو بيا وار د پرچميانو تصفيي ته ورسيد چي دوی د اردو څخه و باســـي ۰ محمد داود خان زما ء عظيمي ء په شمول ډير پرچميان د دولت د حساسو خايونو څخه ليري كړل ۰ او ده په واضح ډول پر ټولو چپو جرياناتو باندي د بطلان ليكه كش كړه ۰ د خارجه وزارت د معين سيد وحيد عبدالله په تحريك ، په مركزي كميټي كي انشعاب راغی او مركزي كميته پر دوو برخو ويشله سوه چي يوي خوا ته محمد داود خان ، عبدالاله ، عبدالقدير نورستاني، غلام حيدر رسولي ، سرور نورستاني او غوث الدين فايق وو او بلي خوا ته ډاكټر محمد حسن شرق ، فيض محمد ، جگړن ضيأ مجيد ، ډگرمن محمد يوسف او جگړن مولاداد واقع سوي وو ۰ كله چي ډاكټر محمد حسن شرق په جاپان كي او فيض محمد په اندونيزيا كي دسفيرانو په حيث و ټاكل سول او جگړن ضيأ مجيد هند ته د نظامي آتشه په حيث وليږل سو ، نو د جمهوريت مركزي كميته د منځه ولاړه او محمد داود خان او دده ډلي ددولت ټول واك په لاس كي واخست )) ( ٤٨ )

ـ د جولای د مياشتي د ۱۷ نيټي تر كودتا وروسته د جمهوري دولت په مركزي كميټي او كابيني كي ډير ژر كشمكش او اختلافات پيل سوه چي ډيرو دغو اختلافاتو ته سيد وحيد عبدالله لمنه وهله . په سر كي پاچا گل وفادار او عبدالحميد محتاط خپل مقامونه د لاسه وركړه او بيا ډاكټر محمد حسن شرق ، فيض محمد او احمد ضيا مجيد په ترتيب جاپان ، اندونيزيا او هند ته وليږل سوه . تر دغو تغييراتو وروسته د سيد وحيد

عبدالله او عزيزالله واصفي د ډلي او سيد عبدلاله ، عبدالقدير نورستاني او غلام حيدر رسولي د ډلي تر منځ اختلافاتو بروز وکړ چي د ثور تر کوتا پوري يي ادامه درلودله .

ـ د جمهوريت په وروستي کال کي سردار محمد نعيم خان او محمد عمر داود د محمد داود خان د اداري روش سره موافق نه وو ، څرنګه چي پاچا ګل وفادار وايي چي محمد نعيم خان د نظام د تغيير په برخه کي دده سره اوړدي خبري کړي وي او غوث الدين فايق هم په خپل اثر ( رازي را که نمي خواستم افشا ګردد ـ ١٤٢ مخ ) کي د سردار محمد نعيم خان د قوله دغي موضوع ته په تفصيل اشاره کړي ده .

ـ ډيرو افغانانو د جمهوري دولت سره مخالفت پيل کړ . په پای کي خبره دي ځای ته ورسيده چي د جمهوري نظام د پلان وزير علي احمد خرم په سپينه ورځ د جاپاني يوه هيأت سره د ليدلو په وخت کي د خپل دفتر څخه و ايستل سو او د پلان د وزارت په مخ کي ووژل سو او قاتل هم وتښتيدی .

## ١٥ ـ د ايران سره د افغانستان مناسبات

د ١٩٧٠ په لسيزي کي ايران د خپلو سرشارو دالرو په وسيله د منځني آسيا او ليري ختيز په هيوادونو کي بيل بيل فعاليتونه پيل کړل ۰ د ايران دولت د افغانستان سره خپل پخواني ساړه مناسبات تاوده کړه ، او د محمد موسي شفيق د حکومت په وخت کي ددواړو هيوادونو تر منځ د هلمند د اوبو معاهده لاس ليك سوه ، ددغي معاهدي مصدقه اسناد لا نه وه تبادله سوي چي محمد داود خان کودتا وکړه ۰ دوه کاله وروسته جمهوري دولت هم حاضر سو چي د هلمند د اوبو معاهده ومني او د محمد داود خان خاص نماينده سردار نحمد نعيم خان په تهران کي وويـل (( د هلمند د اوبو معاهده د افغانستان او ايران ددوستي په بحر کي يو ځاځکې دی )) چي وروسته ددغي معاهدي مصدقه اسناد د زلمي محمود غازي له خوا په تهران کي تبادله سوه۰ او هم د ١٩٧٠ په لسيزي کي د ايران پاچا د امريکا او پاکستان په مرسته غوښتل چي په افغانستان کي د شوروي اتحاد نفوذ ته خاتمه ورکړي۰

مروت په خپل اثر کي ليکي چي (( په ۱۹۷۶ کال کي د امريکا د ملي امنيت رئيس Brezezinski دامريکا په خارجي سياست کي د ء منطقوي نفوذ ء مفهوم طرح او اختراع کړ ۰ ده ددغي مفکوري د عملي کولو له پاره د ايران پاچا دي ته و هڅاوه چي په آسيايي هيوادونو کي خپل رول و لوبوي ، او په دغه وخت کي د ايران پاچا په خپله هم علاقه درلوده چي د خليج او جنوبي آسيا په هيوادونو کي لاس وهنه وکړي ۰ امريکايانو د ايران پاچا دي ته هم تشويق کړ چي د خپلو همسايه هيوادونو سره مالي مرستي وکړي د امريکا ددغي توصيي پر اساس د ايران دولت د پاکستان سره ۷۵۰مليونه دالره مرسته وکړه ۰ او د ۱۹۷۳ کال څخه بيا تر ۱۹۷۵ کال پوري د ايران دولت د افغانستان سره ۵۰ مليونه دالره مرسته کړي ده۰ واشنگتن د سعودي عربستان ، کويت او جاپان هيوادونه هم تشويق کړل چي د افغانستان سره مالي مرستي وکړي۰ په کابل کي د امريکا سفير Theodore Elliot محمد داود خان دي ته تشويق کړ چي د واقعي بي طرفي پيروي وکړي ۰ او ده د افغانستان جمهوري دولت دي ته و هڅاوه چي د پښتونستان موضوع چي ډير يي افغانستان پر شوروي اتحاد بانـدي تکيه کړی دی ، پريږدي )) ( ۴۹ )

سلك هريسن ليکـي (( په ۱۹۷۴ کال کي د ايران دولت په آسانه شرايطو څلويښت مليونه دالره پور د افغانستان دولت ته ورکړ چي دا د هغه دوه مليارده دالرو پيش پرداخت و چي د لسو کلونو په موده کي د ايران ددولت له خوا افغانستان ته ورکول کيدل ۰ ايرانيانو غوښتل چي د مرستو په برخي کي په افغانستان کي د شوروي اتحاد ځای و نيسي ، او په افغانستان کي د اورگاډي او لويو لارو پروژي په کار واچوي ، چي په دغه طريقه به افغانستان د شوروي اتحاد څخه بي نيازه کړي۰ افغاني کارگران په آزاد ډول د دواړو هيوادونو تر منځ تگ او راتگ کاوه ، چي دغه افغاني کارگران د ايران په اقتصادي او عمراني پروژو کي په کار بوخت وو ۰

په افغانستان کي د ايران د جاسوسي دستگاه ساواك د پخوا څخه ځای پر ځای سوي K.G.B. پر ضد اقدامات پيل کړل ۰ د سعودي عربستان ، پاکستان ، هند او چين جاسوس فعاليتونه هم په افغانستان کي پيل سوي وو ۰ ساواك او سي .آی .ای په

افغانستان کي په ګډه فعاليت کاوه ، دواړو شبکو په افغانستان کي د بنيادګرا ګروپونو سره هم يوه اندازه همکاري درلوده . دغو ټولو جاسوسي دستګاوو په افغانستان کي داسي با معلوماته خلګ استخدام کړل چي دوی ته يي د افغانستان په اردو او دولت کي هغه کسان معرفي کول چي د کمونستانو سره همدردي لرل .

د ايران دولت امريکايي اسلحه ، د مخابري آلات او ځني نوري مرستي د محمد داود خان هغو مخالفينو ته ورکړي چي د افغانستان په غربي سيمو کي يي ژوند کاوه . د ايران ځيني مرستي د پاکستان حکومت ته ورکړه سوي چي افغاني بنيادګرا ګروپونو ته يي ورکړي ، چي د ايران دغي مرستي دصوبه سرحد د ګورنر نصيرالله بابر په وسيله افغاني بنيادګرا ګروپونو ته ورکړه سوي چي ددغو مرستو په نتيجه کي د پنجشير پر امنيتي پوستي باندي يو څه عمليات و سول )) ( ٥٠ )

په ١٩٧٤ کال کي چي د افغانستان او ايران تر منځ د تيلو د قر ار داد نيټه پای ته رسيدلې وه ، د ايران دولت افغانستان ته پيشنهاد وکړ چي که افغانستان د شوروي اتحاد سره د تيلو تر خپل قرار داد تير سي ، نو د ايران دولت به د پخواني قرار داد مطابق افغانستان ته هر يو تن تيل په شل دالره ورکړي . او که افغانستان د شوروي اتحاد څخه د تيلو رانيولو ته ادامه ورکوي ، نو بيا د افغانستان سره د تيلو نوې قرار داد د خليج د بيي مطابق هر يو تن به په ١٢٠ دالره لاس ليك سي. ولي د افغانستان دولت د ايران دغه پيشنهاد و نه مانه او نوې قرار داد د خليج د بيي مطابق د دواړو هيوادونو تر منځ لاس ليك سو . ( ٥١ )

د ١٩٧٥ کال د اپريل په مياشت کي جمهور رئيس محمد داود خان تهران ته رسمي سفر وکړ . زه ددغه سفر په وخت کي په تهران کي وم . په بين المللي روابطو کي ددي اصل ټينګ رعايت کيږي ، چي کله چي د يوه هيواد مشر بل هيواد ته په رسمي سفر بلل سوې وي ، نو د کوربه هيواد مشر د خپل ميلمه د اقامت په ورځو کي د خپل هيواد څخه د باندي سفر نه کوي . ولي د ايران پاچا د افغانستان د جمهور رئيس محمد داود خان د مسافرت په وخت کي ددغه اصل مراعات و نه کړ ، او کله چي محمد داود خان په اصفهان کي و ، د ايران پاچا د خپل هيواد څخه ووت او د

سلطان قابوس د ليدلو له پاره يي عمان ته سفر وکړ . ( ۵۲ )

محمد داود خان د خپل حيثيت او ملي ګټو د ساتلو په خاطر د خپل صدارت په وخت کي د غربي نړۍ او په سر کي د امريکا غوښتنو ته سر ټيټ نه کړ ، او ،محمد داود خان د جمهوريت په وخت کي د شوروي اتحاد مشر برژينف ته مخامخ کلك جواب ورکړ ۰ ولي ده د ايران د پاچا پر دغه نامناسب عمل باندي اعتراض و نه کړ، که دغه نه اعتراض د ايران د څو دالرو مرستي له پاره وي ، نو د شاعر په قول :

احـتـيـاج د زمـانـي هسـي بـلا ده

و دلاك ته پاچا کښينوي سر تور ( ۵۳ )

د ايران دولت افغانستان ته اقتصادي مرستي ددي له پاره ور کړي دي چي جمهور رئيس محمد داود خان به په خپل دولت کي کمونستي عناصر تصفيه کړي. سلك هريسن ليکي (( په تهران کي ء جعفر نديم ء چي د ايران په خارجه وزارت کي دريم سړی دی ما ته په ډير اطمينان سره وويل چي د ايران جاسوسي دستګاه ساواك د محمد داود خان په جمهوري رژيم کي کار کوي او افغانستان ته د ايران اقتصادي مرستي مشروطي دي او شرطونه يي دادي چي د محمد داود خان جمهوري دولت بايد د خلق او پرچم حزبونه د منځه يوسي ، افغانستان بايد د پاکستان سره ددوستي تړون لاس ليك کړي ، افغانستان خپلو ټولو تخريبي عملياتو ته چي د پښتنو او بلوڅو په قبايلو کي يي لري خاتمه ورکړي )) دی زياتـوي (( د پورتني مسايلو په هکله په کابل کي د انګريزانو سفير Roy Crook چي د افغانستان د مسايلو متخصص دی ده ما ته وويل چي که د ايران دغه ديپلوماسي په افغانستان کي په بيړه لا نوره پر مخ ولاړه سي ، نو د شوروي اتحاد د عکس العمل سره بـه مخا مخ سي )) دی ليکـي (( په راتلونکو کلونو کي د محمد داود خان جمهوري دولت خپله داخلي او خارجي پالسي ښې خوا ته واړوله او د ۱۹۷۷ کال د فبروري په مياشت کي يي نوې اساسي قانون نافذ کړ او په دغه اساسي قانون کي يي يوازي خپل ملي انقلاب حزب ته د فعاليت اجازه ورکړي وه او په اساسي قانون کي يي داخله وزارت ته واك ورکړې و چي د جمهوري دولت ټول مخالفين وزپي )) دی زياتـوي (( د شوروي اتحاد پخواني سفير Pozanov اوس

افشا کړي ده چي په افغانستان کي د محمد داود خان اقداماتو حفيظ الله امين خوابدې کړې و او ده غوښتل چي د ۱۹۷۷ کال په سر کي د محمد داود خان دولت ته خاتمه ورکړي ، ولي د شوروي اتحاد دولت په هغه وخت کي حفيظ الله امين ددغه اقدام څخه منع کړی و )) دی ليکــي (( د افغانستان سره د شوروي اتحاد مناسبات په ظاهره عادي وو ولي د دواړو هيوادونو مناسبات هغه وخت خراب سول چي محمد داود خان د بريژينف سره مستقيم برخورد وکړ )) ( ٥٤ )

سلك هريسن د واشنگتن پست د۱۹۷۹ کال د مي د مياشتي د ۱۳ نيټي په گڼې کي داسي ليکلي دي (( دا د ايران پاچا و نه بريژينف ، چي په افغانستان کي يي د حوادثو څنځير تر پايه کش کړ او د محمد داود خان نظام ته يي سقوط ورکړ )) (٥٥)

## ۱۶ ـ د محمد داود خان او برژنيف لفظي ټکر

عبدالصمد غوث چي د محمد داود خان او برژنيف د لفظي تصادم د پيښي شاهد و په خپل اثر کي ليکي چي (( د ۱۹۷۷ کال په سر کي شوروي اتحاد په پټه د خلق او پرچم ډلي بيرته سره متحدي کړي ۰ د شوروي اتحاد رسمي مقاماتو د افغانستان په خارجي او داخلي سياست کي د نويو تحولاتو په برخه کي خاموشي اختيار کړي وه ، او په معمولي طور به يي د افغانستان او شوروي اتحاد ددوستانه علايقو يادونه کوله. هرڅومره ورځي چي به تيريدلي محمد داود خان د شوروي اتحاد د پټو لاس وهنو څخه چي مخ پر زياتيدو وي ، ناراحته کيدې ۰ يوه ورځ وروسته تر هغه چي محمد داود خان د لوي جرگي له خوا د جمهور رئيس په حيث وټاکل سو ، د ۱۹۷۷ کال د فبروري د مياشتي ۱۶ نيټه ، نو يي وويل چي اوس ددي وخت رارسيدلې دې چي دې شخصا د لينويد برژنيف څخه د هغو تخريبي عملياتو پــه برخــه کــي چــي پــه افغانستان کي کيږي پوښتنه وکړي ۰

محمد داود خان د شوروي اتحاد په بلنه د اپريل د مياشتي د ۱۲ څخه تر ۱۵ نيټي پوري هغه هيواد ته رسمي سفر وکړ ۰ او د جمهور رئيس محمد داود خان او برژنيف ترمنځ د يــوه خصوصي ملاقات غوښتنه هــم د شوروي اتحاد د مقاماتــو

ځخه سوي وه ۰ د لومړي ورځي مذاکرات د کرملين په ماڼي کي د اپريل د مياشتي پر ۱۲ نيټي د ماپښين له خوا وسوه ۰ په دغه ورځ محمد داود خان د افغانستان د گازو د بيي د لوړيدلو غوښتنه وکړه ، ده د غير منسلکو هيوادونو د نهضت په برخي کي وويل چي افغانستان ددي غوښتونکې دی چي ددغه نهضت غړي هيوادونه بايد ددغه نهضت د اصولو کلك مراعات وکړي ، دوی بايد په جهاني مشاجراتو کي برخه وانه خلي ))

دی ليکي (( شورويان په دي پوه سول چي ددغو خبرو ځخه د محمد داود خان هدف د کيوبا هيواد دی ۰ ددوهمي ورځي په مذاکراتو کي د شوروي اتحاد د هيأت مشر برژنيف د خپلو خبرو په ترځ کي ، مخامخ محمد داود خان ته وکتل او وي ويل چي د ناتو د پکت د هيوادونو ډير متخصصين د افغانستان د شمالي سيمو په پروژو کي کار کوي او دوی هلته په جاسوسي اخته دي ، چي بايد دوی د افغانستان ددغو سيمو ځخه و ايستل سي ۰ جمهور رئيس محمد داود خان ده ته په جواب کي وويل چي د شوروي اتحاد د رهبر دغي خبري د افغانستان په کورنيو چارو کي صريح مداخله ده او موږ تاسي ته هيځکله اجازه نه درکوو چي موږ ته لارښوونه وکړي چــي موږ خپل هيواد ځنگه اداره کړو ۰ تر دغو خبرو وروسته محمد داود خان د مجلس ځخه ولاړ سو چي فورا برژينف ده ته ويل چي تاسي د يوه خصوصي ملاقات غوښتنه کــړي وه ، محمد داود خان ده تــه پــه جــواب کي وويـل چـي اوس هغه خصوصي مــلاقات تــه هــم ضرورت نه ستــه )) ( ۵۶ )

د محمد داود خان د سفر يوه بل ملگري وويل چي ( د پروگرام مطابق د جمهور رئيس محمد داود خان ددغه سفر وروستۍ شپه په تاشکند کي وه ، چي د محمد داود خان الوتکه په تاشکند کي کښته نه سوه او مخامخ کابل ته راغله ) ) ( ۵۷ )

سلك هريسن ليکــي (( د محمد داود خان تر دغه سفرځو مياشتي وروسته د خارجه وزارت مرستيال سيد وحيد عبدالله ما ته د عبدالصمد غوث د ليکني مشابه معلومات راکړه او سيد وحيد عبدالله دا هم وويل چي برژنيف په خپلو خبرو کي په افغانستان کي د امريکا د ستلايت او زلزله سنج ددستگاو د متخصصينو پر موجوديت بــانــدي اعتراض وکړ او دوی يــي د امريکا جاسوسان وبلل ۰ او برژنيف پــه خـپـلـو

خبرو کي دا هم وویـل چـي د افغانستان د جمهوریت د کابیني څني غړي د امریکا ایجنټان دي )) ( ۵ ۸ )

هندي لیکوال Nayar Kuldip لیکـي (( په ۷ ۷ ۹ ۱ کال کي افغانستان د اقتصادي او نظامي مرستو له پلوه پر شوروي اتحاد باندي ډیر متکي و ، او افغانستان داسي ښکاره کیدي چي د شوروي اتحاد د نفوذ په ساحه کي واقع وي ۰ محمد داود خان یوازي غوښتل چي د افغانستان مناسبات د شوروي اتحاد سره تر یوه حده محدود کړي په دي چي محمد داود خان یو وطن پالونکي و او ده غوښتل چي افغانستان خپله عنعنوي بي طرفي وساتي۰ کوم شي چي شوروي اتحاد یي نا آرامه کړي و ، هغه د محمد داود خان هغه تلاشونه وو چي د څینو سرمایه دارو هیوادونو څخه یي د مرستو غوښتنه کوله۰ د محمد داود خان خاص نماینده سردار محمد نعیم خان ایران او امریکا ته سفرونه وکړل ، او کله چي ده د واشنگتن څخه د متخصصینو او مشاورینو غوښتنه وکړه ، پـه دغـه وخت کـي د شــوروي اتحاد بـدگـمـانـي پر افغانستان باندي لا ډیره سوه۰

کله چي په ۷ ۷ ۹ ۱ کال کي محمد داود خان مسکو ته سفر وکړ ، په یوي غونډي کي برژنیف د محمد داود خان څخه پوښتنه وکړه چي آیا دا حقیقت لري چي تاسي د امریکا څخه مشاورین غوښتي دي ؟ )) دی د محمد داود خان د ورسره هیأت د یوه غړي د قوله لیکــي (( محمد داود خان د غونډي څخه ولاړ سو او په متأثر او لوړ آواز یي برژنیف ته وویل چي زه د یوه آزاد هیواد جمهور رئیس یم او هیڅوك دا حق نه لري چي زما څخه داسي یوه پوښتنه وکړي ۰ محمد داود خان خپل سفر لنډ کړ او برژنیف د محمد داود خان د مخه ښه له پاره هوایي میدان ته ورغلی و او ده غوښتل چي خپله خبره بیرته ترمیم کړي ، ولي دغه لیدنه یوازي د پنځو دقیقو له پاره وه او هلته مهمي خبري ونه سوي۰

تر دغي حادثي وروسته ددواړو هیوادونو په مناسباتو کي سوړوالي راغی ، کله چي محمد داود خان کابل ته ورسید ، ده هدایت ورکړ چي تر دي وروسته دي افغاني نظامي افسران په هند یا مصر کي تحصیل وکړي ۰ دی د اقتصادي مرستو له پاره د

نورو منابعو په لټه کي سو. مسکو خلق او پرچم ته هدايت ورکړ چي بيرته سره متحد سي ، چي دغه اتحاد ددي له پاره و چي که محمد داود خان د مسکو سره مخالفت پيل کړ ، نو دغه حزب به د يوه مخالف قوت په حيث د محمد داود خان د رژيم په مقابل کي مقاومت وکړي .

محمد داود خان مسايل سړيدلو ته پري نه ښوول ، ده سعودي عربستان او مصر ته سفرونه وکړل . سعودي عربستان افغانستان ته د ډيرو مرستو وعده ورکړه ، او شوروي اتحاد په دغه موضوع ډير ژر خبر سو ، په دي چي رحيم رفعت چي د محمد داود خان ترجمان و ، ده د محمد داود خان د مذاکراتو متن چي ۱۶ پاڼي کيدلي د ببرك کارمل په وسيله شورويانو ته ورسوي .

په ۱۹۷۶ کال کي محمد داود خان د ايران سره د اقتصادي همکاريو څو معاهدي لاس ليك کړي ، چي يوه يي د اورګاډي د پټلۍ وه چي کابل يي د بندر عباس سره وصل کاوه . چي دا ، په وچه کي د محصور افغانستان له پاره دوهمه لاره کيدله )) دی زياتـوي (( ما په ۱۹۷٤ کال د جون په مياشت کي په نهران کي د ايران د پاچا سره وليدل ، ده ما ته وويل چي بايد افغانستان بحر ته لاره ولري او زه په دغي برخي کي د افغانستان سره مرسته کوم. د ايران پاچا افغانستان ته د دوو ملياردو دالرو مرستو وعده ورکړه ، چي په دغو مرستو سره د افغانستان اتکأ پر شوروي اتحاد باندي کميدله. کويت هم محمد داود خان ته پيغام وليږي چي د کويت دولت حاضر دی چي د افغانستان دولت ته يو سپين چك ورکړي ، په هغه صورت کي چي محمد داود خان په ښکاره ډول د شوروي اتحاد سره مخالفت وکړي . ولي محمد داود خان نه غوښتل چي د شوروي اتحاد پر ضد په کوم بلاك کي شامل سي ، ده يوازي غوښتل چي افغانستان پر شوروي اتحاد باندي د ډيري اتکا څخه خلاص کړي . ولي مسکو تر دي وروسته پر ده باندي اعتماد نه کاوه او شورويانو داسي تصور کاوه چي محمد داود خان ددوی مخالف سوی دی )) ( ۵۹ )

سعودي عربستان ۵۰۰ مليونه دالره د اوبو لګولو په ساحه کي د افغانستان سره مرسته وکړه ، افغانستان د چين او کويت سره هم اقتصادي قراردادونه لاس ليك کړل

OPEC او اسلامي بانك هم د افغانستان سره د اقتصادي مرستو وعده وكړه ٠ محمد داود خان په واضح ډول د عدم انسلاك په نهضت كي د افراطي اړخ څخه چي كيوبا يي رهبري كوله ، ځان ليري كړ٠ محمد داود خان ځو واره كيوبا وغندله او ده وويل چي افغانستان د هغي معتدلي واقعي بي طرفي پلوي كوي چي رهبري يي د هند او يوګوسلاويا په لاس كي ده ، وروسته تر هغه چي محمد داود خان بلګراد او نوي ډهلي ته سفرونه وكړل ، نو بيا فيصله وسوه چي د ۱۹۷۸ كال د مې په مياشت كي به د عدم انسلاك د خارجه وزيرانو غونډه په كابل كي كيږي . ( ۶۰ )

د محمد داود خان او برژنيف د لفظي تصادم په هكله ، مروت د سردار محمد نعيم خان د قوله په خپل اثر كي داسي ليكلي دي (( د برژنيف دغه غير مترقبه پيشنهاد چي محمد داود خان بايد ټول امپريالستي مشاورين د خپل هيواد څخه و باسي ، صرف يو تيپيك د شوروي د شطرنج د لوبي Gambit ته ورته دی چي برژنيف غوښتل چي محمد داود خان په دغه طريقه په دفاعي حالت كي واقع كړي )) ( ۶۱ )

## ۱۷ ـ د عدم انسلاك د نهضت څخه د كيوبا د ايستلو پيشنهاد

د جمهور رئيس محمد داود خان مناسبات د شوروي اتحاد سره هغه وخت لا ډير خراب سول چي د افغانستان جمهوري دولت اراده وكړه چي د عدم انسلاك د خارجه وزيرانو غونډي ته ددغه نهضت څخه د كيوبا د ايستلو پيشنهاد وړاندي كړي٠ د خارجه وزارت يوه مامور ما ته وويل چي جمهور رئيس محمد داود خان په هغه ملاقات كي چي په بلګراد كي يي د مارشال تيتو سره كړي و ، ده ته يي ويلي وه چي د كيوبا هيواد د شوروي اتحاد د اقمارو څخه دی او د شوروي اتحاد په غوښتنه يي انګولا ته نظامي قطعات استولي دي ، اوس بايد د كيوبا هيواد د عدم انسلاك د نهضت څخه و ايستل سي ٠ مارشال تيتو د محمد داود خان څخه پوښتنه كړي وه چي دغه كار به څرنګه عملي سي ؟ سيد وحيد عبدالله چي په دغه ملاقات كي حاضر و د مارشال تيتو په جواب كي وويل چي د عدم انسلاك د خارجه وزيرانو غونډه چي په كابل كي جوړيږي او زه ددغي غونډي رئيس يم ، زه به ددغه نهضت څخه د كيوبا د ايستلو

پیشنهاد دغي غونډي ته وړاندي کړم . ( ۶۲ )

سید وحید عبدالله په دغه ارتباط مصر اندونیزیا او هند ته هم سفرونه وکړه ۰ د خارجه وزارت یوه بل مامور ما ته وویل چي په دهلي کي سید وحید عبدالله د عدم انسلاك د نهضت څخه د کیوبا د ایستلو موضوع د هند صدر اعظم موراجي دیساي ته یاده کړه ، هغه په جواب کي سید وحید عبدالله ته وویل چي افغانستان دا حق نه لري چي ددغه نهضت د خارجه وزیرانو غونډي ته د کیوبا د ایستلو پیشنهاد وړاندي کړي ۰ په دي چي د عدم انسلاك نهضت یوه نظامي اتحادیه نه ده چي یو غړي هیواد په داسي بهانو ددغه نهضت څخه و ایستل سي ۰ بلکه دا د آزادو هیوادونو یو جنبش دې چي د ګډ ژوند پنځه اصلونه لري چي د کیوبا هیواد د دغه اصلونو رعایت کړی دی ۰

سید وحید عبدالله د هند د صدر اعظم توصیي ته توجه و نه کړه او په یوي لیدني کي یي د کیوبا سفیر ته چي په عین حال کي په کابل کي هم د هغه هیواد سفیر و په تنده لهجه وویل چي د عدم انسلاك د خارجه وزیرانو غونډي ته چي په کابل کي جوړیږي ، دی باید رانه سي ۰ او کــه دی پــه دغه وخت کــي کابل تــه راسي نــو دده استقبال به و نــه ســي . ( ۶۳ )

د مخه تر هغه چي د عدم انسلاك غونډه په کابل کي جوړه سي ، د ثور کودتا وسوه ۰ او د دغه غونډه د کابل پر ځای په بلګراد کي وسوه چي د بلګراد په غونډي کي پاکستان ددغه نهضت په غړیتوب و منل سو۰ او دغه نهضت د مشرانو غونډه په هوانا کي جوړه سوه ۰

سلك هریسن لیکي چي (( د محمد داود خان هغه سفر شورویان لا وار خطا کړل چي محمد داود خان مصر ته د سفر په لاري کي په ترکیي کي هم توقف وکړ او په دغه سفر کي محمد داود خان د سعودي عربستان او کویت څخه هم لیدنه وکړه ) ) ۶٤

دی لیکــي (( مصر ته د محمد داود خان دغه سفر هغه وخت وشو چي د مصر جمهور رئیس انورالسادات تازه د اسرایلو د سفر څخه راغلی و ۰ انورالسادات په هغي میلمستیا کي چي د محمد داود خان په ویاړ جوړه کړي وه ، د شوروي اتحاد د

سفير په مخ کي محمد داود خان ته وويل چي ستاسي معقوله او ملي پالسي چي پر آزاد قضاوت او ملي گټو ولاړه ده او د ډلو ټپلو او د دنباله روي د سياست څخه کرکه کوی زمونږ د تاييد وړ ده )) ( ۶ ۵ )

مصر ته د محمد داود خان د سفر په هکله ما اوريدلي دي چي په هغه ورځ چي جمهور رئيس محمد داود خان مصر ته سفر کاوه په هغه ورځ انورالسادات ته بل مصرفيت پيدا سوې و ، محمد داود خان دوي ورځي په استامبول کي توقف وکړ . د انورالسادات سره د محمد داود د ليدلو يو هدف داو چي دی د مصر څخه د شوروي اتحاد د متخصصينو د ايستلو داستان د انورالسادات د خولي څخه واوري .

عبدالصمد غوث ليکي چي محمد داود خان د انورالسادات څخه د شوروي اتحاد د ماهرانو د ايستلو موضوع چي په ۱ ۹ ۷ ۲ کال کي پيښه سوه ، و پوښتله . ( ۶ ۶ )

د ۱ ۹ ۷ ۸ کال د جون په مياشت کي د ايران پاچا محمد رضا شاه پهلوي کابل ته سفر درلود ۰ د ۱ ۹ ۷ ۸ کال د آگست په مياشت کي د پاکستان جمهور رئيس جنرال ضيأ الحق کابل ته مسافرت کاوه ۰ د ۲ ۰ ۰ ۰ کال د اکتوبر د مياشتي پر شل نيټي د صوبه سرحد پخواني گورنر نصيرالله بابر د پيام افغان د راديو سره په يوي مرکي کي وويل ، په ۱ ۹ ۷ ۶ کال کي محمد داود خان او ذوالفقار علي بوتو دډيورنډ د کرښي په باب يوي موافقي ته رسيدلي وو ، په دغه ارتباط ددواړو رهبرانو تر منځ د يوي موافقتنامي متن هم په نښه سوی و ، ولي د جنرال ضيأالحق د کودتا په وجه دغه موافقتنامه و ځنډيدله . د ۱ ۹ ۷ ۸ کال دسپتمبر په مياشت کي جمهور رئيس محمد داود خان د امريکا د جمهور رئيس ( جمي کارتر ) په بلنه امريکا ته مسافرت درلود ۰ ولي د ۱ ۹ ۷ ۸ کال د اپريل په مياشت کي په افغانستان کي کودتا وسوه او د محمد داود خان جمهوري نظام د منځه ولاړ ۰

## ۱ ۸ ـ د پاکستان سره د افغانستان مناسبات

په ۱ ۹ ۷ ٤ کال کي د پاکستان صدر اعظم ذوالفقار علي بوتو د بلوڅو مشران بنديان کړل او په بلوچستان کي يي نظامي عمليات پيل کړل ۰ په دغه وخت کي د ايران

دولت پاکستان ته پر ۳۰۰ مليونو دالرو علاوه ديرش امريکايي کبرا هليکوپترونه ددي له پاره ورکړي وو چي د بلوڅو پر ضد يي استعمال کړي. ايرنيان په دي عقيده وو چي د بلوڅو سره کمونستان مرسته کوي او دمخه تر دي چي دا جنګونه د ايران خاوري ته وغزيږي بايد د هغو مخه ونيوله سي.

د ايران پاچا د افغانانو څخه هميشه غوښتنه کوله چي د پاکستان سره خپلو اختلافاتو ته ژر دحل يوه لاره پيدا کړي ، په دي چي شوروي اتحاد ددغو اختلافاتو څخه ګټه اخلي. د ۱۹۷٤ کال د آګست په مياشت کي د ايران خارجه وزير عباس علي خلعتبري کابل ته سفر وکړ ، ده د افغاني مقاماتو څخه غوښتنه وکړه چي د پاکستان سره په کښته سويه خبري پيل کړي . افغانستان د ايران دغه پيشنهاد و مانه ( ۶۷ )

په ۱۹۷۵ کال د مارچ په مياشت کي د افغانستان د خارجه وزارت د معين سيد وحيد عبدالله او د پاکستان د خارجه وزارت د معين عزيز احمد تر منځ په کابل کي لومړي مذاکرات پيل سول .په دغه کال کي دامريکاد سناتور Charles Percy په وساطت په کتمندو کي د سردار محمد نعيم خان او عزيز احمد تر منځ چي دواړه د نيپال د پاچا د جنازي په مراسمو کي د ګډون له پاره هغه هيواد ته تللي وو ، دوستانه خبري وسوي ، دوی فيصله وکړه چي دواړه هيوادونه بايد يو د بل پرضد راديويي تبليغات بند کړي . ولي د ۱۹۷۵ کال د فبروري پر ۸ نيټي حيات محمد شيرپاو د اتلسو نورو کسانو سره د يوه بم په چاودلو کي د پيښور په يونورستي کي ووژل سوه او د ذوالفقار علي بوتو په امر خان عبدالغفار خان ، خان عبدالولي خان او د ملي عوامي حزب ډير نور غړي بنديان سول . ددغو حوادثو په نتيجه کي د افغانستان او پاکستان مناسبات تر پخوا لا ډير خراب سوه .

د ۱۹۷۶ کال د اپريل په مياشت کي ذوالقفار علي بوتو د افغانستان د زلزله ځپلو خلګو سره د مرستو يو پيشنهاد وړاندي کړ چي دغه مرستي د افغانستان له خوا ومنلي سوي . او د محمد داود خان له خوا بوتو ته د کابل د سفر بلنه ورکړه سوه ، چي ده د ۱۹۷۶ کال د جون د مياشتي د ۷ څخه تر۱۰ نيټي پوري کابل ته سفر وکړ او بوتو تر خپل سفر دمخه خان عبدالغفار خان د حبس څخه آزاد کړ . ( ۶۸ )

عبدالصمد غوث چي د محمد داود خان او ذوالفقار علي بوتو په مذاکراتو کي حاضر و ليکي ((  محمد داود خان بوتو ته وويل چي ځيني هيوادونه د افغانستان او پاکستان په دوستي خوشحاله نه دي )) که څه چي محمد داود خان د کوم هيواد نوم وانه خيست ولي دده هدف شوروي اتحاد و ۰ محمد داود خان دا هم وويل چي ((ځيني پاکستانيان په دي عقيده دي چي موږ د پاکستان ورانول غواړو ، چي دا حقيقت نه لري ولي چي موږ په خپل ځنگ کي يو قوي پاکستان غواړو )) محمد داود خان وويل (( د خان عبدالولي خان په شمول د صوبه سرحد ټول پښتانه نه غواړي چي ددوی سيمي دي د پاکستان څخه بيلي سي ۰ دوی د پاکستان اساسي قانون ومانه او د پاکستان په انتخاباتو کي يي برخه واخسته  او موږ ددوی دغه عمل تاييدوو ))

د پاکستان صدر اعظم ذوالفقار علي بوتو محمد داود خان ته وويل چي (( زه په دي خوشحاله يم چي د افغانستان مشر په خپلو خبرو کي پر پاکستان باندي د ارضي ادعا خبـره ياده نـه کـړه ))

د ذوالفقار علي بوتو د سفر په پای کي د دواړو هيوادونو تر منځ يوه گډه اعلاميه لاس ليك سوه ۰ په دغي اعلاميي کي د دواړو هيوادونو د اختلافونو حل د باندونگ د کنفرانس د گډ ژوند د پنځه اصلونو پر بنا غوښت سوي و ۰

محمد داود خان د ۱۹۷۶ کال د آگست د مياشتي د ۲۰ تر ۲٤ نيټي پوري پاکستان ته سفر وکړ ۰ په هغو مذاکراتو کي چي د سيد وحيد عبدالله او عزيز احمد تر منځ وسوي ، عزيز احمد داسي پيشنهاد کړي و چي که پاکستان د پښتنو او بلوڅو مشران د حبس څخه آزاد کړي  آيا د هغه په مقابل کي افغانستان دډيورنډ کرښه په رسميت  پيژني او د پښتونستان تر موضوع تير يږي ؟ په پای کي داسي فيصله وسوه چي په اوسني گډي اعلامي کي دي د کابل د اعلامي تاييد و سي ۰   ( ۶۹ )

د ۱۹۷۷ کال د جولای د مياشتي پر پنځمي نيټي جنرال ضيأ الحق په پاکستان کي کودتا وکړه او ده د افغانستان په بلنه ددغه کال د اکتوبر په مياشت کي کابل ته سفر وکړ ۰ ده محمد داود خان ته د پاکستان د سفر بلنه ورکړه ۰ په دغه وخت کي د بلوچستان جنگونه پای ته رسيدلي وو او ضيأ الحق پښتانه او بلوڅ ټول بنديان آزاد

کړي وو  جمهور رئيس محمد داود خان د ۱۹۷۸ کال د مارچ د مياشتي پر پنځمي نيټي پاکستان ته سفر وکړ ۰ محمد داود خان د پښتنو او بلوڅو د مشرانو لکه خان عبدالولي خان ، غوث بخش بيزنجو ، عطا الله منګل او خير بجش مري سره د ضياًالحق  په مخ کي ليدنه وکړه ۰ د محمد داود خان د سفر په وروستۍ ورځ د پاکستان خارجه وزير آغا شاهي ، افغاني هيأت ته يو ليکلې متن د امضا له پاره وړاندي کړ چي په هغه کي ليکل سوي و چي افغانستان دډيورنډ کرښه په رسميت پيژني ، افغانستان د پښتونستان تر ادعا تيريږي ، دواړه هيوادونه يو د بل پر ضد پروپاګند نه کوي ، دواړه هيوادونه يو د بل سره اقتصادي مرستي کوي ۰ سيد وحيد عبدالله د دغو مطالبو په هکله آغا شاهي ته وويل چي (( افغانستان ددغه ليك نور مطالب مني ولي ددغه ليك لومړي دوه ټکي بايد د افغانستان د لوي جرګي له خوا تصويب سي )) په پای کي د محمد داود خان او جنرال ضيأ الحق تر منځ داسي موافقه وسوه چي د اعلاميو پر ځای بايد دواړه هيوادونه يو پر بل باندي اعتماد وکړي ۰

د مارچ د مياشتي پر اتمي نيټي محمد داود خان په يوه مطبوعاتي کنفرانس کي برخه واخسته ، ده د يوه خبريال ددي پوښتني په جواب کي چي آيا دده او جنرال ضيأالحق  تر منځ دډيورنډ د کرښي په هکله خبري سوي دي او که يه ؟ ده داسي وويل چي  (( ما او جنرال ضيأ الجق پر ذيعلاقه ټولو موضوعاتو باندي خبري کړي دي چي هره موضوع به په خپل وخت کي ددواړو هيوادونو تر منځ حل سي  ))  ( ۷۰ )

ښه سړې چي د بدانو سره مل سي<br>دده فکر د هغو فکر کي حل سي ( ۷۱ )

## د پای خبري

د ۱۹۶۰ په لسيزي کي  خيني افغاني سياست پوهان په دي عقيده وو چي د وروسته پاته هيوادونو پر مختګ ، يوازي د خارجي هيوادونو د مرستو په وسيله

تامینیدلای سي . څرنګه چي په دغه وخت کي امریکا د پاکستان سره ددوستي په وجه ، د افغانستان سره مرستي نه کولي ۰ نو دغه سیاست پوهان دي نتیجي ته سیدلي وو چي افغانستان باید شوروي اتحاد ته ددي له پاره ډیر نژدي سي او ددغه هیواد څخه مرستي واخلي چي د امریکا خوف او حسادت راوپاروي ، او بیا هر کله چي امریکا دي ته حاضر سو چي د افغانستان سره لازمي مرستي وکړي ، په هغه وخت کي به افغانستان بیرته پر خپل خارجي سیاست تجدید نظر وکړي اوخپل سیاست به د منځ لیکي ته راوړي او ددواړو جهاني لویو قدرتونو څخه به د بي قید او شرطونو مرستو غوښتنه وکړي ( ٢ ٧ )

د پورته سیاسي ستراتیژي پر اساس د محمد داود خان د صدارت په لسو کلونو کي د افغانستان حکومت ، شوروي اتحاد ته ډیر ور نژدي سو او د هغه هیواد څخه یي ډیري اقتصادي او تخنیکي مرستي واخستي ولي امریکایانو د افغانستان سره خپلي مرستي پیل نه کړي ۰ د محمد داود خان تر استعفا وروسته ددیموکراسۍ په لسو کلونو کي د افغانستان سره د شوروي اتحاد اقتصادي او نظامي مرستي تر پخوا لا ډیري پراخي سوي ، ولي د امریکا خوف او حسادت یي راونه پاراوه ۰

داسي ښکاري چي د ١٩٧٠ په لسیزي کي امریکا او د هغه هیواد متحدینو د افغانستان سره د مرستو له پاره دري عمده شرطونه وړاندي کړي وو :

- د ایران سره د هلمند د اوبو د معاهدي لاس لیك
- د پښتونستان د قضیي خاتمه او دډیورنډ د کرښي په رسمیت پیژندل
- د شوروي اتحاد سره د اقتصادي او نظامي اړیکو ډیر کمول

څرنګه چي د کتاب په نورو برخو کي به مو لوستي وي د محمد موسي شفیق حکومت د افغانستان ددغو معضلو دحل په لاري کي مؤثر اقدامات پیل کړل ۰ دده حکومت د ایران د حکومت سره د هلمند د اوبو معاهده لاس لیك کړه ، په دغه وخت کي محمد داود خان کودتا وکړه ۰ حمهوریت دولت تر یوه کال وقفي وروسته بیرته د سلطنت د وخت خارجي سیاست چي د محمد موسي شفیق له خوا عملي کیدی ، تعقیب کړ۰ د جمهوریت په وخت کي د افغانستان خارجي سیاست د سردار محمد

نعيم خان له خوا رهبري کيدی جمهوري دولت د پښتونستان د موضوع او دډيورنډ د کرښي په برخي کي د ذوالفقار علي بوتو او جنرال ضيأ الحق سره پراخي خبري پيل کړي ولي د شوروي اتحاد سره د افغانستان د اړيکو ډير سريع تغيير چي د جمهوريت په وخت کي عملي کيدی ، ددواړو هيوادونو په مناسباتو کي يي ډير مشکلات ايجاد کړه هغه خارق العاده اقدام چي په مصر کي جمهور رئيس انورالسادات کړي و ، دده د موفقيت يو مهم دليل داو چي د مصر هيواد د شوروي اتحاد سره ګډ سرحد نه درلود په داسي حال کي چي افغانستان د هغه هيواد سره ۱۴۸۱ميله اوږد سرحد لري او افغانستان تــه آسانــه نــه وه چي د شوروي اتحاد سره خپلي اړيکي داسي ژر پريکړي . د جمهوريت په وروستيو کلونو کي د افغانستان په خارجي سياست کي ډير سريع بدلونونه را منځ ته سول . د مثال په توګه ، په ۱۹۷۷ کال کي افغانستان د جنوبي افريقا د نژاد پرست رژيم سره د ښو اړيکو اساس کښيښود ، په دغه کال کي په تهران کي د جنوبي افريقا جنرال قونسل د مځکي له لاري ، افغانستان ته سفر وکړ . په تهران کي افغاني سفير زلمي محمود غازي ، په مشهد کي افغاني جنرال قونسلګري ته چي زه هلته جنرال قونسل وم ، لار ښوونه وکړه چي د جنوبي افريقا د جنرال قونسل سره چي افغانستان ته د سفر په لاري يي په مشهد کي توقف درلود ليدنه وکړي . افغاني جنرال قونسلګري د افغاني سفارت دغه لار ښوونه پر ځای کړه . د جنوبي افريقا جنرال قو.نسل د اسلام کلا له لاري افغانستان ته سفر وکړ چي د کابل په شمول د افغانستان په نورو ښارونو کي به ده ته هرکلي ويل سوی وي . دغه خبر په مطبوعاتو کي نه دي خپور سوی .

په پای کي د موضوع د روښانه کولو له پاره د لاندي مطالبو ليکل ضروري دي :

ـ اوس چي څوك د جولای د مياشتي د ۱۷ نيټي د کودتا د برخه والو لکه ( ډاکټر محمد حسن شرق ، غوث الدين فايق ، پاچا ګل وفادار او نبي عظيمي او نورو ) آثار لولي ، ددوی تفصيلات يو د بل سره ډير توپير لري ، داسي ښکاري چي د کودتا هر غړي د خپل ګروپ فعاليت ليکلی دی او د بل ګروپ په اجراآتو خبر نه دی .

ـ د محمد داود خان د کودتا په لومړي کال کي په جمهوري دولت کي ډير واك د هغو

کودتا کونکو په لاس کي و چي د شوروي اتحاد پلوي يي کوله ، ولي کله چي د کودتا په دوهم کال کي دوی د جمهوري دولت د حساسو ځایونوځخه لیري کړل سول نو ددوی ځایونه د دوی مخالفینو یعني د امریکا او د هغه هیواد د متحدینو د پلویانو له خوا اشغال کړ سول۰ چي ددغه تحول په نتیجه کي افغانستان د نړي د متضادو قوتونو د مبارزي میدان وګرځیدې ۰

ـ جمهور رئیس محمد داود خان د جمهوریت په ورستي کال کي د خپلو همکارانو له خوا د افغاني جامعي او حتي ددولت د مامورینو څخه لیري ساتل کیدی ۰ د مثال په توګه :

۱ ـ په ۱۹۷۷ کال کي په کراچي کي افغاني جنرال قونسل محمد حکیم اریوبي کابل ته سفر کړې و ، ده ته سید وحید عبدالله ویلي و ، هر وخت چي دی د جمهور رئیس محمد داود خان سره ویني باید دغه لیدنه دده په حضور کي وسي ۰

۲ ـ په ۱۹۷۷ کال کي چي جمهور رئیس محمد داود خان تهران ته سفر کړې و ما ته هم سید وحید عبدالله وویل ( کله چي د جمهور رئیس محمد داود خان سره خصوصي لیدنه کوي په دغي لیدني کي باید زه هم حاضر وسم ) چي زه د محمد داود خان سره د خصوصي لیدني څخه منصرف سوم .

ـ د خارجه وزارت یوه مامور ما ته وویل چي د ثور د کودتا په ورځ چي جمهوري ارګ د کودتا کونکو له خوا محاصره سوې و ، سید وحید عبدالله د ارګ د شا د لاري څخه په دي قصد وتلې و چي خارجه وزارت ته ځان ورسوي او د هغه وزارت د مخابري پــه وسیله د ایران د پاچا څخه د مرستي غوښتنه وکړي ، کله چي دی خارجه وزارت ته ورسیدې ، هغه وزارت هم د کودتا کونکو له خوا محاصره و ۰ دی د خپل عزم څخه منصرف سو ، او خپله لور یي په کلوله پښته کي د سید قاسم رشتیا کور ته ورسوله او ده په خپله د نوي ښار د انصاري په څلور لاري کي د خپل یوه همکار په کور کي شپه تیره کړه . ( ۷۳ )

ـ ددیموکراسي دوري په لسو کلونو کـــي پــه هیواد کـــي د ښـــي او کیڼ اړخ ایدولوژیګانو ډیره وده کړي وه ، چي د هغو په څنګ کي د ملي مفکوري ، وده او

بریالیتوب ډیر مشکل کار و ۰ ددغه حالت په نتیجه کي به حتما په افغانستان کي د امریکا یا شوروي اتحاد په ګټه یو نظام راتی ، چي د شوروي اتحاد پلویانو وار د مخه کړ او په افغانستان کي یي د ثور کودتا وکړه۰

د ثور کودتا داسي پیل سوه ـ د ۱۹۷۸ کال د اپریل د میاشتي پر ۱۷ نیټي د پرچم د ډلي یو مشر میر اکبر خیبر په کابل کي ووژل سو . د خلق او پرچم ډلـي چـي د۱۹۷۷ کال د جولای په میاشت کي بیرتــه سره یو ځای سوي وي ، دوی د خیبر جنازه د یوه مارش په شکل تجلیل کړه او د خیبر پر قبر باندي یــي تندي خبري وکړي او جمهوري دولت یي ددغي پیښي مسؤول وباله . نو جمهوري دولت د خلق او پرچم دغه مارش او د قدرت نمایش د اساسي قانون مخالف وباله او لس ورځي وروسته یي د نور محمد تره کي او ببرك کارمل په شمول د خلق او پرچم اوه مشران بندیان کره . حفیظ الله امین چي په نامعلوم علت په دغه ورځ نه و بندي سوې ، یوه ورځ وروسته دده په قومانده په اردو کي د خلق او پرچم غړو کودتا وکړه او جمهوري نظام د منځه ولاړ . د محمد داود خان د جمهوریت دوره چي څلور کاله او نــه میاشتي او نولس ورځي وو پای ته ورسیده ، اروا ښاد محمد داود خان او دده ورور سردار محمد نعیم خان د خپل فامیل د شپاړسو غړو سره په شهادت ورسید او د ۱۹۷۸ کال د اپریل د میاشتي پر ۲۷ نیټي د خلق دیموکراتیك ګوند قدرت ته ورسید .

---

حقیقت په دنیا هومره سو نایابه چي سند نه سي پیژندلی له سرابه

سیاست او ریا دواړه سوه ملګري حقیقت ته یي پیدا کړه څو حجابه

دکتاب پای ( ۷٤ )

## د پنځم فصل یادداشتونه

۱ ـ خلمې ، ذکر شوې اثر، مخ ۶۶

۲ ـ د نور محمد په قول

۳ ـ عظیمي ، ذکر شوې اثر ، مخ ۹ ۸

٤ ـ د نعمت الله پژواك په قول

۵ ـ د ډاکټر محمد حسن شیرزي په قول

۶ ـ عظیمي ، ذکر شوې اثر ، مخ ۶ ۹

۷ ـ رشتیا ، ذکر شوې اثر، مخ

۸ ـ کبیر سراج ، ذکر شوې اثر ، مخ ۵ ۷

۹ ـ د محمد عزیز نعیم په قول

۱ ۰ ـ همدغه مرجع

۱ ۱ ـ نعیم ، مجاهد ولس ، د۸ ۹ ۹ ۱ کال د سبتمبر د میاشتي گڼه

۱ ۲ ـ شرق ، مجاهد ولس ، د ۸ ۹ ۹ ۱ کال د آگست د میاشتي گڼه

۱ ۳ ـ همدا اثر

۱ ٤ ـ د جمعه بارگزې په قول

۱ ۵ ـ محمد حکیم اریوبي ، د پاکستان د آی . اس . آی د یوه مقام د قوله

۱ ۶ ـ شرق ، داکتر محمد حسن، کرباس پوشهای برهنه پا ، صفحه ۳ ٤ ۱

۱ ۷ ـ فرهنگ ، ذکر شوې اثر ، مخ ۷

۱ ۸ ـ شرق ، مجاهد ولس ، د ۸ ۹ ۹ ۱ کال د آگست د میاشتي گڼه

۱ ۹ ـ زما مشاهدات

۲ ۰ ـ د محمد عزیز نعیم په قول

۲ ۱ ـ ادمك ، لیدویگ ، په افغانستان کي څوك څوك دې ، مخ ۲ ۵

۲ ۲ ـ رشتیا ، ذکر شوې اثر ، مخ ۰ ۸ ۳

۲ ۳ ـ زما مشاهدات

۲ ٤ ـ زما مشاهدات

۲ ۵ ـ زما مشاهدات

۲ ۶ ـ زما مشاهدات

۲۷ ـ د گل پاچا الفت شعر

۲۸ ـ زما مشاهدات

۲۹ ـ غوث ، ذکر شوې اثر ، مخ ۲۰۸

۳۰ ـ همدا اثر ، مخ ۱۸۸

۳۱ ـ د سعدالله کمالي په قول

۳۲ ـ کبیر سراج ، ذکر سوې اثر ، مخ ۷۵

۳۳ ـ د نامه د لیکلو اجازه یې نه لرم

۳٤ ـ فرهنگ ، ذکر شوی اثر، مخ ۱۲

۳٥ ـ فرهنگ ، ذکر شوې اثر ، مخ ۱۳

۳۶ ـ شرق ، ذکر شوې اثر ، مخونه ۱۲۱ تر ۱۲۷

۳۷ ـ فرهنگ ، ذکر شوې اثر ، مخ ۳۸

۳۸ ـ د جمهوریت د وخت اساسي قانون

۳۹ ـ د عزیز الله واصفي په قول

٤۰ ـ زما مشاهدات

٤۱ ـ ابراهمیان ، ذکر سوې اثر، مخ ٤٤۱

٤۲ ـ زما مشاهدات

٤۳ ـ هریسن ، سلك ، د افغانستان څخه د باندي ، مخ ۱٥

٤٤ ـ زما مشاهدات

٤٥ ـ شرق ، مجاهد ولس ، د ۱۹۹۸ کال د آگست د میاشتي گڼه

٤۶ ـ هریسن ، ذکر شوې اثر ، مخ ۲۲

٤۷ ـ همدا اثر ، مخ ۲۲

٤۸ ـ عظیمي ، ذکر شوې اثر، مخونه ۱۱۷ ، ۱۱۸

٤۹ ـ مروت ، ذکر شوې اثر، مخونه ۳٤۸ ، ۳٤۹

٥۰ ـ هریسن، ذکر شوې اثر ، مخ ۱۶

٥۱ ـ زما مشاهدات

۵۲ ـ زما مشاهدات

۵۳ ـ د میرزا حنان شعر

۵٤ ـ هریسن ، ذکر شوې اثر ، مخ ۲۰

۵۵ ـ مروت ، ذکر شوې اثر ، مخ ٤۶۳

۵۶ ـ غوث ، ذکر شوې اثر، مخونه ۱۷٤ تر ۱۸۱

۵۷ ـ د محمد خان جلالر په قول

۵۸ ـ هریسن ، ذکر شوې اثر ، مخ ۲۱

۵۹ ـ کلدیپ ، نیار ، پر افغانستان باندي یو راپور ، مخونه ۱۳ تر ۱۵

۶۰ ـ هریسن ، ذکر شوې اثر ، مخ ۲۱

۶۱ ـ مروت ، ذکر شوې اثر ، مخ ۵۶۳

۶۲ ـ د نامه د لیکلو اجازه یي نه لرم

۶۳ ـ د نامه د لیکلو اجازه یي نه لرم

۶٤ ـ هریسن ، ذکر شوې اثر ، مخ ۲۱

۶۵ ـ همدا اثر ، مخ ۲۱

۶۶ ـ غوث ، ذکر شوې اثر ، مخونه ۱۵۱ ، ۱۵۲

۶۷ ـ همدا اثر ، مخ ۱۲۱

۶۸ ـ همدا اثر ، مخ ۲۷!

۶۹ ـ همدا اثر، مخ ۱٤۶

۷۰ ـ همدا اثر ، مخ ۱٤۶

۷۱ ـ د گل پاچا الفت شعر

۷۲ ـ فرهنگ ، ذکر شوې اثر، مخ ۲۲

۷۳ ـ د نامه د لیکلو اجازه یي نه لرم۰

۷٤ ـ د گل پاچا الفت شعر

# ضميمي

## مهمي نيټي

ـ د ميرويس نيکه پا څون په ۱۷۰۹ کال

ـ د احمد شاه بابا پا چهي ۱۷٤۷ ــ ۱۷۷۳

ـ د زمان شاه پاچهي ۱۷۹۳ ــ ۱۸۰۱

ـ پـه ۱۷۹۹ کـال کـي رنجت سنګه د زمان شاه له خـوا د پنجاب د والـــي پــه حيث و ټاکل سو

ـ په ۱۸۱۲ کال کي د اټك کلا د پنجاب سيکانو ونيوى

ـ په ۱۸۱۸ کال کي د ملتان ولايت د پنجاب سيکانو ونيوى

ـ په ۱۸۱۸ کال کي د کشمير ولايت د پنجاب سيکانو ونيوى

ـ په ۱۸۲۱ کال کي ديره اسماعيل خان او ديره غازي خان سيکانو ونيوى

ـ په ۱۸۳۳ کال کي پيښور د پنجاب سيکانو ونيوى

ـ د شاه شجاع او رنجت سنګ تر منځ د شکارپور معاهده په ۱۸۳۲ کال کي

ـ د افغان او انګليس لومړي جنګ د ۱۸۳۸ کال څخه تر ۱۸٤۲ کال پوري

ـ د ۱۸۳۸ کال د جون د مياشتي پر ۲۶ نيټي د لاهور معاهده د شاه شجاع ، رنجت سنګ او انګريزانو تر منځ لاس ليك سوه

ـ په ۳ ٤ ۸ ۱ کال کې د سند ولايت انگريزانو اشغال کړ

ـ دبلوچستان ولايت د ٤ ٥ ۸ ۱ کال څخه تر ۶ ۷ ۸ ۱ کال پورې په تدريجي ډول د افغانستان څخه بيل کړ سو

ـ په ۲ ۷ ۸ ۱ کال کې انگريزي حکم د سيستان يوه برخه ايران ته ورکړه

ـ د گندمك د هعاهدي لاس ليك ، د ۸ ۷ ۸ ۱ کال د مې د ماشتې په ۶ ۲

ـ د افغان او انگليس دوهم جنگ د ۸ ۷ ۸ ۱ کال د نومبر د مياشتې په ۰ ۲

ـ د امير عبدالرحمن خان سلطنت د۰ ۸ ۸ ۱ کال د جولای د مياشتي د ۲ ۲ نيټې څخه تر۱ ۰ ۹ ۱ کال د اکتوبر د مياشتې تر لمړي ورځې پورې

ـ د ميوند جنگ د۰ ۸ ۸ ۱ کال د جولای د مياشتې پر ۷ ۲

ـ په ٤ ۸ ۸ ۱ کال کې د ( مرو ) ولايت تزاري روس ونيوی

ـ په ٥ ۸ ۸ ۱ کال کې د پنجده علاقه تزاري روسيي ونيوی

ـ دډيورنډ د معاهدي لاس ليك د ۳ ۹ ۸ ۱ کال دنومبر د مياشتې پر۲ ۱

ـ د امير حبيب الله خان پاچهي د ۱ ۰ ۹ ۱ کال د اکتوبر د مياشتې د دريمي نيټې څخه ـ د ۹ ۱ ۹ ۱ کال د جنوري د مياشتې تر ۰ ۲ نيټې پورې

ـ د افغان او انگليس دريم جنگ ، د ۹ ۱ ۹ ۱ کال د مې د مياشتې پر ٤

ـ د امان الله خان پاچهي د ۹ ۱ ۹ ۱ کال د فبروري د مياشتې د ۱ ۲ څخه د۱۹۲۹ کال د جنوري د مياشتې تر ٤ ۱ نيټې پورې

ـ د افغانستان استقلال ، د ۹ ۱ ۹ ۱ کال د اپريل د مياشتې پر ۳ ۱

ـ د افغانستان او انگريزانو تر منځ په راولپنډي کې د سولې معاهده د ۹ ۱ ۹ ۱ کال د آگست د مياشتې پر ۸ ۱

ـ د افغانستان او انگريزانو تر منځ د ميسوري کنفرانې د۰ ۲ ۹ ۱ کال د اپريل د مياشتې د۷ ۱ نيټې څخه دجولای د مياشتې تر٤ ۲ نيټې پورې

ـ د افغانستان د لومړي اساسي قانون تسويد د ۳ ۲ ۹ ۱ کال د اپريل د مياشتې لسمه

ـ د امان الله خان د وخت د کابل لويه جرگه په ٤ ۲ ۹ ۱ کال کې

ـ د پغمان لويه جرگه د ۸ ۲ ۹ ۱ کال د آگست د مياشتې پر ۹ ۲

ـ د اساسي قانون تصویب ، د ۱۹۲۸ کال د سبتمبر د میاشتي پر دوهمه

ـ د امان الله خان استعفا ، د ۱۹۲۹ کال د جنوري د میاشتي پر ۱٤

ـ دامیرحبیب الله کلکاني پاچهي د ۱۹۲۹ کال د جنوري د میاشتي د۰ ۲ څخه د اکتوبرد میاشتي تر۵ ۱ نیټي پوري

ـ افغانستان ته د محمد نادر خان راتگ ، د ۱۹۲۹ کال د مارچ د میاشتي پر ۸

ـ محمد نادر خان پاچهي د ۱۹۲۹ کال د اکتوبر د میاشتي د ۱۵ څخه د ۱۹۳۳ کال د نومبر د میاشتي تر ۸ نیټي پوري

ـ دسردار محمد هاشم خان حکومت د ۱۹۳۱ کال د اکتوبر څخه د ۱۹٤۶ کال د مې د میاشتي تر ۹ نیټي پوري

ـ د محمد نادر خان د وخت داساسي قانون تصویب د ۱۹۳۱ کال د اکتوبر میاشت

ـ د ملي شورا پرانستل د ۱۹۳۲ کال د جولای د میاشتي پر ۱۶

ـ د محمد نادر خان مړینه د ۱۹۳۳ کال د نومبر د میاشتي پر ۸

ـ د محمد ظاهر شاه پاچهي د ۱۹۳۳ کال د نومبرد میاشتي د۸ څخه د ۱۹۷۳ کال د جولای د میاشتي تر ۱۷ نیټي پوري

ـ د مللو په جامعي کي د افغانستان غړیتوب د ۱۹۳٤ کال د سبتمبر پر ۲۶

ـ د امریکا سره ددوستي معاهده ، د ۱۹۳۶ کال د مارچ د میاشتي پر۲۶

ـ د پښتو ژبي د تعمیم له پاره شاهي فرمان ، د ۱۹۳۷ کال د مارچ دریمه

ـ د هلمند د اوبو له پاره کابل ته د ایران د خارجه وزیر باقر معین سفر د ۱۹۳۸ کال د جنوري د میاشتي پر ۲۶

ـ په دوهم جهاني جنگ کي د افغانستان دبي طرفي اعلان د ۱۹۳۹ کال د سبتمبر د میاشتي پر شپږمه نیټه

ـ کابل ته د امریکا د لومړي مختار وزیر راتگ د ۱۹٤۲ کال د اپریل پر ۲۷

ـ د ډیورنډ د کرښي پوري خوا پښتنو په باب انگریزانو تـه د افغانستان رسمي یادونه د ۱۹٤٤ کال د نومبر په میاشت کي سوي ده

ـ د شاه محمود خان حکومت د ۱۹٤۶ کال د مې د میاشتي د۹ څخه د۱۹۵۳ کال د

سبتمبر د میاشتي تر ۶ نیټي پوري

ـ په ملګرو ملتو کي د افغانستان غړیتوب د۶ ۱۹٤ ۱ کال د نومبر د میاشتي پر۹

ـ د اومي دوري د شورا انتخابات د ۹ ٤ ۹ ۱ کال د مارچ او اپریل په میاشتو کي

ـ د انګار ، ولس ، نداي خلق او وطن د جرایدو خپریدل په ۱ ٥ ۹ ۱ کال کي وو

ـ د محمد داود خان د صدارت د وخت حکومت د ۳ ٥ ۹ ۱ کال د سبتمبر د میاشتي

د ۶ نیټي څخه د ۳ ۶ ۹ ۱ کال د مارچ د میاشتي تر ۱۰ نیټي پوري

ـ د باندونګ کنفرانس د ٥ ٥ ۹ ۱ کال د اپریل د میاشتي د ۸ ۱ څخه تر ۲ ٤

ـ د بغداد نظامي اتحادیه په ٥ ٥ ۹ ۱ کال کي جوړه سوه

ـ د بغداد د اتحادیي نوم په ۹ ٥ ۹ ۱ کال کي په سینتو واړول شو

ـ د سینتو نوم په ۱۹٦۱ کال کي په آر۰ سي۰ ډي۰ واړول شو

ـ د سیتو نظامي اتحادیه په ٤ ٥ ۹ ۱ کال کي جوړه شوه

ـ د محمد داود خان د صدارت د وخت لویه جرګه د ٥ ٥ ۹ ۱ کال د نومبر د میاشتي

د شلمي نیټي څخه تر ٥ ۲ نیټي پوري

ـ د ښخو د مخ لوڅي نهضت د ۹ ٥ ۹ ۱ کال د آګست د میاشتي پر ۱ ۳

ـ کابل ته د ایزن هاور سفر د ۹ ٥ ۹ ۱ کال د نومبر په میاشت کي

ـ د کندهار دخلګو پاڅون د ۹ ٥ ۹ ۱ کال د سبتمبر د میاشتي پر ۲ ۱

ـ د عدم انسلاك د قاهري کنفرانس د٤ ۶ ۹ ۱ کال دنومبر په میاشت کي

ـ د عدم انسلاك د بلګراد کنفرانس د ۱ ۶ ۹ ۱ کال دسبتمبر پر دوهمه

ـ د ۱ ۶ ۹ ۱ کال د سبتمبر د میاشتي پر ۶ د پاکستان سره د افغانستان سیاسي

اړیکي پري کړي سوي

ـ دیموکراسۍ دوره د ۳ ۶ ۹ ۱ کال د مارچ د میاشتي د ۳ ۱ نیټي څخه د۱۹۷۳ کال د

جولای د میاشتي تر ۷ ۱

ـ د ډاکټر محمد یوسف خان حکومت د ۳ ۶ ۹ ۱ کال د مارچ د میاشتي د ۱۳ نیټي

څخه د ٥ ۶ ۹ ۱ کال د اکتوبر د میاشتي تر ۹ ۲

ـ د ۳ ۶ ۹ ۱ کال د مې د میاشتي پر ۹ ۲ نیټي د افغانستان سیاسي مناسبات د

پاکستان سره بیرته اعاده سول

ـ دیموکراسي دوري لویه جرگه د٤ ۶ ۹ ۱ کال د سبتمبر د میاشتي د۹ نیټي څخه د لسو ورځو له پاره جوړه سوي وه

ـ د اساسي قانون توشیح د ٤ ۶ ۹ ۱ کال د اکتوبر د میاشتي پر اوله

ـ دولسمي تقنیني دوري د انتخاباتو پیل د ٥ ۶ ۹ ۱ کال د آگست د میاشتي پر ۶ ۲

ـ د شـورا دولسمه تقنیني دوره د ٥ ۶ ۹ ۱ کـال د اکتوبـر د میاشتـي د ١٤ نیټـي څخه د ١٩٦٩ کال

ـ د شورا دولسمه تقنیني دوره د ٥ ۶ ۹ ۱ کال د اکتوبر د میاشتي پر ٤ ۱ نیټي چي د پاچا د تولد ورځ ده پرابیسته سوه

ـ د عقرب ددریمي حادثه د ٥ ۶ ۹ ۱ کال د اکتوبر د میاشتي پر ٥ ۲

ـ د محمد هاشم میوندوال حکومت د ٥ ۶ ۹ ۱ کال د نومبر د میاشتي د ۲۰ نیټي څخه د ١٩٦٧ کال د اکتوبر د میاشتي تر ١١

ـ د نوراحمد اعتمادي حکومت د ۷ ۶ ۹ ۱ کال د اکتوبر د ٥ ۱ نیټي څخه د ١٩٧١ کال د مې د میاشتي تر ۶ ۱

ـ دیارلسمي دوري د انتخاباتو پیل د ۹ ۶ ۹ ۱ کال د آگست د میاشتي پر ٢٦

ـ د شورا دیارلسمه تقنیني دوره د ۹ ۶ ۹ ۱ کال د اکتوبر د میاشتي د ٤ ۱ نیټي څخه د ۳ ۷ ۹ ۱ کال د جولای د میاشتي تر ۷ ۱

ـ دیارلسمي تقنیني دوري پرانستل د ۹ ۶ ۹ ۱ کال د اکتوبر د میاشتي پر ٤ ۱

ـ د پل خشتي په مسجد کي ددیني علماو غونډي د۰ ۷ ۹ ۱ کال داپریل او مې په میاشتو کي کیدي

ـ په شورا کي د احزابو د قانون تصوییبدل په ۰ ۷ ۹ ۱ کال کي و سو

ـ ډاکټر عبدالظاهر حکومت د ۱ ۷ ۹ ۱ کال دجولای د میاشتي د ۶ څخه د ۱۹۷۲ کال د سمبر د میاشتي تر٤ ۲

ـ وچ کالي ۱ ۷ ۹ ۱ او ۲ ۷ ۹ ۱ کلونه

ـ د محمد موسی شفیق حکومت د ۲ ۷ ۹ ۱ کال دد سمبر د میاشتي د٤ ۲ نیټي څخه

بیا د ۱۹۷۳ کال د جولای د میاشتي تر ۱۷

ـ د هلمند د اوبو د معاهدي لاس ليك د ۱۹۷۳ کال د مارچ د میاشتي پر ۱۳

ـ پـه ولسي جرگي کـي د هلمند د اوبو د معاهدي تصويب د ۱۹۷۳ کال د مې د میاشتي پر ۲۲

ـ د محمد داود خان کودتا د ۱۹۷۳ کال د جولای د میاشتي پر ۱۷

ـ د محمد داود خان د جمهوريت دوره د ۱۹۷۳ کال د جولای د میاشتي د ۱۷ نېټي څخه د ۱۹۷۸ کال د اپريل د میاشتي تر ۲۷

ـ د ۱۹۷۳ کال د جولای د میاشتي پر ۱۸ نېټي محمد داود خان د مرکزي کمېټې له خوا د افغانستان ددولت د رئيس په حيث و ټا کل سو

ـ د سلطنت څخه د پاچا استعفا د ۱۹۷۳ کال دآگست د میاشتي پر ۱۱

ـ ( خلگو ته خطاب ) د محمد داود خان وينا د ۱۹۷۳ کال د آگست پر ۲۳

ـ د میوندوال د کودتا اتهام د ۱۹۷۳ کال دسبتمبر د میاستي پر۲۲

ـ د محمد هاشم میوندوال شهادت د ۱۷۹۳ کال د اکتوبر د میاشتي پر۲۰

ـ په لاهور کي اسلامي کنفرانس د۱۹۷٤ کال دفبروري د میاشتي پر ۲۱

ـ مسکو ته د محمد داود خان لومړې سفر د ۱۹۷٤ کال د جون میاشت

ـ کابل ته د هنري کسنجر سفر د ۱۹۷٤ کال د نومبر میاشت

ـ تهران ته د محمد داود خان سفر د ۱۹۷٥ کال د اپريل په میاشت کي

ـ کابل ته د پودگورني سفر د ۱۹۷٥ کال د سبتمبر د میاشتي پر ۹

ـ د اوه کلن اقتصادي پلان پيل د ۱۹۷۶ کال د مارچ د میاشتي پر ۲۱

ـ کابل ته د ذوالفقار علي بوتو سفر د ۱۹۷۶ کال د جون د میاشتي پر۲۹

ـ پاکستان ته د محمد داود خان سفر د ۱۹۷۶ کال د آگست د میاشتي پر ۲۰

ـ د جمهوريت د اساسي قانون جوړيدل د۱۹۷۷ کال دجنوري د میاشتي پر ۲۶

ـ دجمهوريت د وخت لويه جرگه د ۱۹۷۷ کال د فبروري د میاشتي د ۱۹ نېټي څخه د مارچ د میاشتي تر ٤

ـ د ۱۹۷۷ کال د مارچ د میاشتي پر ٤ نېټي محمد داود خان د لوي جرگي له خوا د

جمهور رئيس په حيث وټاکل سو

ـ مسکو ته د محمد داود خان دوهم سفر د ۱۹۷۷ کال د اپريل د مياشتي د۱۲ نيټي
څخه تر ۱۵

ـ د محمد داود خان او برژنيف پرخاش د ۱۹۷۷ کال د اپريل د مياشتي پر ۱۳

ـ کابل ته د ذوالفقار علي بوتو بل سفر د ۱۹۷۷ کال د جون د مياشتي پردوهمه

ـ په پاکستان کي د ضيأ الحق کودتا د ۱۹۷۷ کال د جون د مياشتي پر پنځمه

ـ د خلق او پرچم يوځا ی کيدل د ۱۹۷۷ کال د جولای د مياشتي پر ۱۶

ـ کابل ته د ضيأ الحق سفر د ۱۹۷۷ کال د اکتوبر د مياشتي پر ۱۰

ـ د علي احمد خرم وژل کيدل د ۱۹۷۷ کال د نومبر د مياشتي پر ۱۶

ـ پاکستان ته د محمد داود خان سفر د ۱۹۷۸ کال د مارچ د مياشتي پر ۵

ـ د مير اکبر خيبر وژل کيدل د ۱۹۷۸ کال د اپريل د مياشتي پر ۱۷

ـ د خلق او پرچم د مشرانو بندي کيدل د ۱۹۷۸ کال داپريل دمياشتي پر ۲٦

ـ د ثور کودتا د ۱۹۷۸ کال د اپريل د مياشتي پر ۲۷

ـ د محمد داود خان شهادت د ۱۹۷۸ کال د اپريل د مياشتي پر ۲۸

د محمد داود خان سره دده دکورنی لاندي غړي په شهادت رسيدلي دي :

۱ ـ د محمد داود خان ورور ، سردار محمد نعيم خان

۲ ـ د محمد داود خان ميرمن ، زينب داود

۳ ـ د محمد داود خان زوی ، محمد عمر

٤ ـ د محمد داود خان زوی ، ويس

٥ ـ د محمد داود خان زوی ، خالد

٦ ـ د محمد داود خان لور ، شنکي

۷ ـ د محمد داود خا ن لور ، زرلښته

۸ ـ د ويس ميرمن ، شيما

۹ ـ د محمد عمر لور ، هيلي

۱۰ ـ د محمد عمر لور ، غزال

۱۱ ـ د ویس زوی ، حارث

۱۲ ـ د ویس  زوی ، وایګل

۱۳ ـ د سردار محمد نعیم خان لور ، زرمینه

۱٤ ـ د سردار محمد نعیم خان لمسی ، صفورا

۱٥ ـ د محمد ظاهر شاه خور ، بلقیس

۱٦ ـ د محمد داود خان خور ، عایشه

۱۷ ـ د سپه سالار شاه محمود خان زوی ، نظام الدین غازي

## د دیارلسمي تقنیني دوري منتخب وکیلان

### د کابل د ولایت څخه

۱ ـ د لومړي او دوهمي ناحیي وکیل محمد اسحق عثمان

۲ ـ ددریمي او او څلورمي ناحیي وکیل ببرک کارمل

۳ ـ د پنځمي او شپږمي ناحیي وکیل محمد یوسف بینش

٤ ـ د اوومي او اتمي ناحیي وکیل غلام محمد فرهاد

٥ ـ د نهمي او لسمي ناحیي وکیل جي سنګ

۶ ـ د چهار ده د حوزي وکیل محمد آصف

۷ ـ د کوهدامن د حوزي وکیل میر علي احمد

۸ ـ د پغمان د حوزي وکیل حفیظ الله امین

۹ ـ د ده سبز د حوزي وکیل میر احسان

۱۰ ـ د بګرامیو د حوزي وکیل عبدالرسول بره کي

۱۱ ـ د سروبي د حوزي وکیل مولوي حفیظ الله

۱۲ ـ د قره باغ د حوزي وکیل غلام سرور

۱۳ ـ د شکردري د حوزي وکیل سید ظاهر شاه

### د لوګر د ولایت څخه

۱ ـ د لوګر د مرکز وکیل مولوي محمد نبي محمدي

۲ ـ د پل علم د حوزي وکيل مولوي سيد اکبر

۳ ـ د محمد آغي د حوزي وکيل عبدالله

٤ ـ د ازرو د حوزي وکيل لعل گل فرياد

### د وردگو د ولايت څخه

۱ ـ د وردگو د مرکز وکيل نور علم مظلوميار

۲ ـ د سيد آباد د حوزي وکيل عبدالله

۳ ـ د چك د حوزي وکيل داکتر محمد عمر وردگ

٤ ـ ـ د بهسودو د حوزي وکيل محمد اسلم

٥ ـ د بهسودو د لومړي برخي وکيل محمد سليمان

### د پروان د ولايت څخه

۱ ـ د پروان د مرکز وکيل مير عثمان

۲ ـ د پروان د حوزي وکيل عبدالمهيمن

۳ ـ د جبل السراج د حوزي وکيل عبدالحميد

٤ ـ د بگرام د حوزي وکيل عنايت الله ابلاغ

٥ ـ د غوربند د حوزي وکيل محمد کبير غوربندي

٦ ـ د سرخپارسا د حوزي وکيل نادر علي الله داد

۷ ـ د کوهستان د حوزي وکيل عبدالله

۸ ـ د نجراب د حوزي وکيل خواجه آقا

۹ ـ د تگاب د حوزي وکيل اسدالله

۱۰ ـ د پنجشير د حوزي وکيل عبدالقيوم

### د باميان د ولايت څخه

۱ ـ د باميان د مرکز وکيل مير غلام حسين

۲ ـ د پنجاب د حوزي وکيل محمد اکبر

۳ ـ د يکاولنگ د حوزي وکيل سيد محمد حسن

٤ ـ د سيغان او کامرد د حوزي وکيل احمد خان

۵ ـ د ورس د حوزي وکيل محمد سرور

## د غزني د ولايت څخه

۱ ـ د غزني د مرکز وکيل محمد عوض

۲ ـ د جغتو د حوزي وکيل محمد اسلم

۳ ـ د اندړو د حوزي وکيل يار محمد دليلي

٤ ـ د قره باغ د حوزي وکيل نقشبند خان

۵ ـ د ناهور د حوزي وکيل عبدالحسين مقصودي

۶ ـ د مقر د حوزي وکيل محمد اکرم

۷ ـ د جاغوري د حوزي وکيل محمد ايوب

۸ ـ د ښرني د حوزي وکيل وزير محمد

۹ ـ د مالستان د حوزي وکيل شاه موسي

۱۰ ـ د ناوي د حوزي وکيل محمد هاشم تره کې

۱۱ ـ د کټواز د مرکز وکيل عبدالحبيب کټوازي

۱۲ ـ د وازي خوا د حوزي وکيل بهأالحق

۱۳ ـ د کټواز د کوچيانو وکيل عبدالرزاق

۱٤ ـ د غزني د کوچيانو وکيل شهنواز

## د لغمان د ولايت څخه

۱ ـ د لغمان د مرکز وکيل عبدالکريم عمرخيل

۲ ـ د قرغيي د حوزي وکيل شمس الحق پيرزاده

۳ ـ د عليشنگ د حوزي وکيل عبدالرزاق

٤ ـ د علينگار د حوزي وکيل عبدالله

۵ ـ د نورستان د حوزي وکيل محمد اسمعيل

## د ننگرهار د ولايت څخه

۱ ـ د جلال آباد وکيل حاجي فقير محمد

۲ ـ د سرخرود د حوزي وکيل امير محمد بهسودوال

۳ ـ د خوګیانیو د حوزي وکیل خیرالله منور

٤ ـ د روداتو د حوزي وکیل روح الله حبیب

٥ ـ د مومندري د حوزي وکیل سعدالله کمالي

٦ ـ د کامي د حوزي وکیل فضل الله فیاض

۷ ـ د ښیوي د حوزي وکیل محمد آصف پوپل

۸ ـ د حصارك د حوزي وکیل حاجي عبدالوهاب

۹ ـ د شینوارو د مرکز وکیل محمد اعظم

۱۰ ـ د نازیانو د حوزي وکیل سیف الرحمن

۱۱ ـ د اچین د حوزي وکیل علي محمد

۱۲ ـ د ننګرهار د کوچیانو وکیل حاجي الله نظر

۱۳ ـ د هسکي میني د حوزي وکیل عبدالوهاب

### د کنړ د ولایت څخه

۱ ـ د کنړ د مرکز وکیل محمد اکرم

۲ ـ د څوکي د حوزي وکیل غلام محمد

۳ ـ د اسمارو د حوزي وکیل محمد هاشم مشواڼي

٤ ـ د سرکاڼو د حوزي وکیل عبدالغني

٥ ـ د خاص کنړ د حوزي وکیل عبدالجلیل

٦ ـ د پیچ د حوزي وکیل سمیع الله ساپي

۷ ـ د کامدیش د حوزي وکیل شمس الدین

### د بغلان د ولایت څخه

۱ ـ د بغلان د مرکز وکیل غلام دستګیر

۲ ـ د پلخمري د حوزي وکیل سردار عبدالرشید

۳ ـ د نهرین د حوزي وکیل عبدالحفیظ

٤ ـ د اندراب د حوزي وکیل عبدالقیوم

٥ ـ د دوشي د حوزي وکیل سید ناصرشاه نادري

### د کندز د ولایت څخه

۱ ـ د کندز د مرکز وکیل سید امیر

۲ ـ د چار دري د حوزي وکیل محمد هیکل

۳ ـ د قلعه زال د حوزي وکیل خواجه مراد

٤ ـ د ارچي د حوزي وکیل ننگ یوسفزې

٥ ـ د خان آباد د حوزي وکیل سید امیر

٦ ـ د حضرت امام د حوزي وکیل عبدالرحمن

### د سمنگان د ولایت څخه

۱ ـ د سمنگان د مرکز وکیل عبدالهاشم دولتزې

۲ ـ د خلم د حوزي وکیل شجاع الدین شریفي

۳ ـ د دره صوف د حوزي وکیل نظام الدین

٤ ـ د لویي او دوآب د حوزي وکیل نور محمد

### د جوزجان د ولایت څخه

۱ ـ د جوزجان د مرکز وکیل عبدالکریم

۲ ـ د آقچي د حوزي وکیل عبدالرشید ساپې

۳ ـ د سرپل د حوزي وکیل کمال الدین اسحقزې

٤ ـ د سنگ چارك د حوزي وکیل سید اسحق

٥ ـ د قرقین د حوزي وکیل محمد احمد

٦ ـ د منگجك د حوزي وکیل محمد امین

### د تخار د ولایت څخه

۱ ـ د تخار د مرکز وکیل محمد نظر

۲ ـ د رستاق د حوزي وکیل محمد انور

۳ ـ د ینگي قلعه د حوزي وکیل محمد حکیم

٤ ـ د اشکمش د حوزي وکیل عبدالقیوم

٥ ـ د خوست و فرنگ د حوزي وکیل میر محمد حسن

۶ ـ د چاه آب د حوزي وکيل محمد علم فيض زاد

۷ ـ د فرخار د حوزي وکيل محمد توره قل

۸ ـ د خواجه غار د حوزي وکيل محمد طاهر

### د بدخشان د ولايت څخه

۱ ـ د بدخشان د مرکز وکيل عبدالعزيز

۲ ـ د درواز د حوزي وکيل عبدالرحمن

۳ ـ د جرم د حوزي وکيل محمد هاشم واسوخت

٤ ـ د اشکاشم د حوزي وکيل عبدالجبار

۵ ـ د کشم د حوزي وکيل سيد محي الدين

۶ ـ د واخان د حوزي وکيل محمد اسمعيل

### د بلخ د ولايت څخه

۱ ـ د مزار شريف وکيل محمد سرور اکبري

۲ ـ د بلخ د حوزي وکيل عبدالقدوس ساپي

۳ ـ د چاربولك د حوزي وکيل ولي محمد رحيمي

٤ ـ د نهري شاهي د حوزي وکيل شاه محمد

۵ ـ د چمتال د حوزي وکيل عبدالوهاب

۶ ـ د دولت آباد د حوزي وکيل سيد يحيي

۷ ـ د شورتيپي د حوزي وکيل عبدالله

۸ ـ د شولگري د حوزي وکيل محمود

### د فارياب د ولايت څخه

۱ ـ د ميمني د ښار وکيل محمد رحيم شيدا

۲ ـ د اندخوی د حوزي وکيل محمد عمر اندخويي

۳ ـ د بلچراغ د حوزي وکيل عبدالغفور

٤ ـ د شيرين تگاب د حوزي وکيل محمد عثمان

۵ ـ د قيصار د حوزي وکيل محمد يوسف

۶ ـ د پښتون کوټ د حوزي وکیل بخار خان

۷ ـ د درز آب د حوزي وکیل عبدالله ۰

۸ ـ د دولت آباد د حوزي وکیل ملا حبیب الله اسحق زۍ

### د بادغیس د ولایت څخه

۱ ـ د بادغیس د مرکز وکیل عبدالمجید

۲ ـ د بالا مرغاب د حوزي وکیل غلام رباني شملزۍ

۳ ـ د قادس د حوزي وکیل سید محمد غوث

٤ ـ د جوند د حوزي وکیل امیر محمد

۵ ـ د غورماچ د حوزي وکیل محمدالدین

### د غور د ولایت څخه

۱ ـ د غور د مرکز وکیل عبدالجبار

۲ ـ د شهرك د حوزي وکیل تاج الملوك

۳ ـ د تولك د حوزي وکیل محمد رفیق

٤ ـ د لعل و سرجنگل د حوزي وکیل خادم بیگ

۵ ـ د پسابند د حوزي وکیل احمد خان

۶ ـ د تیوري د حوزي وکیل فخرالدین خان

### د هرات د ولایت څخه

۱ ـ د هرات دلومړۍ حوزي وکیل سید رسول فکور

۲ ـ د هرات ددوهمي حوزي وکیل محمد شاه رحمتیان

۳ ـ د غوریان د حوزي وکیل شاهپور علیزۍ

٤ ـ د انجیل د حوزي وکیل عبدالقدوس مومند

۵ ـ د کرخ د حوزي وکیل شاه علم طاهري

۶ ـ د پښتون زرغون د حوزي وکیل محمد علي قاضي زاده

۷ ـ د گذري د حوزي وکیل غلام حیدر

۸ ـ د اوبي د حوزي وکیل عبدالعلي

۹ ـ د کشك د حوزي وکیل عبدالرحمن جمشیدي

۱۰ ـ د گلران د حوزي وکیل محمد هاشم نورزايي

۱۱ ـ د زنده جان د حوزي وکیل فدا محمد

۱۲ ـ د کهسان د حوزي وکیل محمد جونید علیزی

۱۳ ـ د ادرسکن د حوزي وکیل عبدالبصیر نورزايي

### د نیمروز د ولایت څخه

۱ ـ د نیمروز د مرکز وکیل حاجي دوست محمد گرگیج

۲ ـ د اصل چخانسور د حوزي وکیل امان الله شیرزاد

۳ ـ د چاربرجك د حوزي وکیل عبدالرحمن سنجراني

٤ ـ د لاش او جوین د حوزي وکیل محمد غوث اسحاق زی

### د فراه د ولایت څخه

۱ ـ د فراه د مرکز وکیل  حاجي عبدالوهاب نورزی

۲ ـ د بالابلوك د حوزي وکیل عبدالغفار فراهي

۳ ـ د گلستان د حوزي وکیل میرزا محمد دقیق

٤ ـ د شین ډنډ د حوزي وکیل امان الله شینډنډی

۵ ـ د انار دري د حوزي وکیل محمد جمعه عینك

۶ ـ د قلعه کاه د حوزي وکیل سید انبیأ آغا

۷ ـ د بکوا د حوزي وکیل محمد زمان خان

۸ ـ د پرچمن د حوزي وکیل عبدالوهاب

### د هلمند د ولایت څخه

۱ ـ د لښکرگاه وکیل سید مبین شاه امیر

۲ ـ د نوزاد د حوزي وکیل آقا محمد

۳ ـ د موسي کلا د حوزي وکیل عبدالرؤف بینوا

٤ ـ د گرم سیر د حوزي وکیل حاجي محمد

۵ ـ د نادعلي د حوزي وکیل صفر محمد ځروټی

۶ـ د نهري سراج د حوزي وکيل امان الله

۷ـ د باغران د حوزي وکيل جمال خان

۸ـ د بارگزو د ناوي د حوزي وکيل محمد منير خان

۹ـ د ديشو د حوزي وکيل نذرالله خان

۱۰ـ د گرمسير د بلوخو د حوزي وکيل عبدالحميد زهري

۱۱ـ د پشت رود د کوچيانو د حوزي وکيل حاجي عبدالرشيد نورزۍ

### د کندهار د ولايت څخه

۱ـ د کندهار د اولي حوزي وکيل نور محمد اکبري

۲ـ د کندهار د دوهمي حوزي وکيل حاجي محمد آصف پاس يوسفي

۳ـ د ارغنداب د حوزي وکيل عزيزالله واصفي

٤ـ د ډنډ د حوزي وکيل عبدالاحد کرزۍ

۵ـ د ښوراوك د حوزي وکيل حاجي دوست محمد

۶ـ د خاکريز د حوزي وکيل خدای داد خان تاج

۷ـ د ميوند د حوزي وکيل مير احمد خان

۸ـ د پنجوايي د حوزي وکيل شيرين خان نورزۍ

۹ـ د شاه ولي کوټ د حوزي وکيل لعل محمد خان

۱۰ـ د ارغسان د حوزي وکيل محمد اسحق علومي

۱۱ـ د معروف د حوزي وکيل محمد علي

### د زابل د ولايت څخه

۱ـ د زابل د مرکز د حوزي وکيل عبدالعزيز

۲ـ د شنکۍ د حوزي وکيل بسم الله خان

۳ـ د دای چوپان د حوزي وکيل منگل خان

٤ـ د جلدك د حوزي وکيل عبدالله خان

۵ـ د ارغنداو د حوزي وکيل غلام نقشبند خان

۶ـ د شاه جوی د حوزي وکيل غلام دستگير

۷ ـ د کلات د کوچیانو د حوزي وکیل محمد انور

## د اروزگان د ولایت څخه

۱ ـ د اروزگان د مرکز وکیل غلام جیلاني

۲ ـ د دیراود د حوزي وکیل عبدالکریم صحرایي

۳ ـ د دای کندي د حوزي وکیل لعل محمد

٤ ـ د گزاب د حوزي وکیل محمد اکبر

۵ ـ د شهرستان د حوزي وکیل غلام حسین

۶ ـ د اجرستان د حوزي وکیل عبدالستار ملاخیل

۷ ـ د اصل اروزگان د حوزي وکیل عبدالقیوم

۸ ـ د چوري د حوزي وکیل عبدالخالق

۹ ـ د کجران د حوزي وکیل غلام رسول

## د پکتیا د ولایت څخه

۱ ـ د پکتیا د مرکز وکیل حاجي امان الله

۲ ـ د زرملي د حوزي وکیل با ز محمد

۳ ـ د ځا خیو د حوزي وکیل محمد اقبال

٤ ـ د جاني خیلو د حوزي وکیل جنت گل

۵ ـ د سید کرم د حوزي وکیل شهباز احمد زۍ

۶ ـ د اورگون د حوزي وکیل وزیر محمد

۷ ـ د گوملي د حوزي وکیل رمضان خان

۸ ـ د خوست د حوزي وکیل شیر احمد خوستۍ

۹ ـ د تڼیو د حوزي وکیل شیر محمد

۱۰ ـ د ځا خي میدان د حوزي وکیل میرا جان

۱۱ ـ د څمکنیو د حوزي وکیل سراج الدین منگل

۱۲ ـ د موسي خیلو د حوزي وکیل بختیارگل

۱۳ ـ د وزي ځدران د حوزي وکیل یار محمد

د محلي ستونزو له کبله د کندهار د سپین بولدك دحوزی انتخابات و ځنډیدل

## د ګډ دریځ وکیلان

لاندي وکیلانو په ځینو مواردو کي یو د بل سره تفاهم درلود ۰

د فراه د ولایت څخه : حاجي عبدالوهاب نورزي ، امان الله شینډنډي ، میرزا محمد دقیق ، محمد جمعه عینك ، سید انبیأ آغا ، محمد زمان خان ، حاجي عبدالوهاب او عبدالغفار فراهي

د هرات د ولایت څخه : محمد شاه رحمتیان ، سید رسول فکور ، محمد جونید عبدالقدوس مومند ، محمد هاشم نورزایي او شاهپور علیزی

د غزني د ولایت څخه : یار محمد دلیلي ، محمد هاشم تره کي ، بهأالحق خان ، عبدالرزاق او عبدالحسین مقصودي

د هلمند د ولایت څخه : عبدالرؤف بینوا ، سید مبین شاه امیر ، عبدالحمید زهري ، حاجي عبدالرشید نورزي

د کابل د ولایت څخه : محمد اسحق عثمان ، محمد یوسف بینش ، جي سنګ

د کندهار د ولایت څخه : عزیزالله واصفي ، شیرین خان نورزي

د ننګرهار د ولایت څخه : حاجي عبدالوهاب ، روح الله حبیب

د لغمان د ولایت څخه : عبدالکریم عمرخیل ، شمس الحق پیرزاده

د لوګر د ولایت څخه : لعل ګل فریاد ، مولوي سید اکبر

د کنړ د ولایت څخه : محمد آصف پوپل

د اروزګان د ولایت څخه : عبدالکریم صحرایي

د بلخ د ولایت څخه : عبدالوهاب

د بدخشان د ولایت څخه : محمد هاشم واسوخت

د فاریاب د ولایت څخه : ملا حبیب الله اسحقزي

د وردوګو د ولایت څخه : نورعلم مظلومیار

د بادغیس د ولایت څخه : عبدالمجید

د پکتیا د ولایت څخه : شیر احمد خوستي

د نیمروز د لایت څخه : محمد غوث خان ( ۲ )

## د دیارلسمي تقنیني دوري د مشرانو جرگي غړي

اول ـ انتخابي سناتوران :

د کابل د ولایت سناتور عبدالهادي داوی

د لوگر د ولایت سناتور غلام سخي خان

د وردگو د ولایت سناتور محمد اسمعیل مایار

د پروان د ولایت سناتور علي احمد بایاني

د کاپیسا د ولایت سناتور عبدالاحد

د بامیانو د ولایت سناتور محمد علي

د غزني د ولایت سناتور گل احمد ملکیار

د لغمان د ولایت سناتور عبدالواحد خان

د ننگرهار د ولایت سناتور سلطان محمد مجددي

د کنړ د ولایت سناتور عبدالخالق

د بغلان د ولایت سناتور عبدالحفیظ

د سمنگانو د ولایت سناتور باز محمد

د کندز د ولایت سناتور غلام نبي ناشر

د جوزجان د ولایت سناتور محمد شریف

د تخار د ولایت سناتور حبیب الرحمن ناصري

د بدخشان د ولایت سناتور سید عبدالغیاث

د بلخ د ولایت سناتور محمد ابراهم

د فاریاب د ولایت سناتور محمد کریم

د باد غیس د ولایت سناتور غلام حضرت

د غور د ولایت سناتور محمد حسین

د هرات د ولایت سناتور عبدالباقي مجددي

د نیمروز د ولایت سناتور شیر محمد خان

د فراه د ولایت سناتور آقا محمد خان نورزی

د هلمند د ولایت سناتور حبیب الله هلمندی

د کندهار د ولایت سناتور عبدالرزاق بالاکرزی

د زابل د ولایت سناتور باز محمد خان

د اروزگان د ولایت سناتور محمد رفیق خان

د پکتیا د ولایت سناتور بهرام خان

دوهم ـ انتصابي سناتوران :

سناتوره میرمن حمیرا سلجوقي

سناتور عبدالحمید عزیز

سناتور عبدالخالق واسعي

سناتور مولوي عبدالوهاب

سناتور ډاکټر عبدالشکور ولي

سناتور عبدالصمد خان

سناتور ډاکټر عبدالوکیل خان

سناتوره میرمن عزیزه گردیزي

سناتور مولوي غلام نبي کاموي

سناتور ډاکټر فقیر محمد شفا

سناتور قیام الدین خان خادم

سناتور محمد امین خوږیاني

سناتور محمد جعفر عسکري

سناتور سید محمد داود الحسیني

سناتور محمد امین یونسي

سناتور محمد زمان تره کي

سناتور میر محمد شاه صدیقیان

سناتور محمد علي

سناتور محمد هاشم مجددي

سناتور مير احمد مولايي

سناتور نا ظر علي جا غوري

سناتور حاجي محمد ځمکني

سناتور ډاکټر محمد انس خان

سناتور سيد شمس الدين مجروح

( ۳ )

**The Durand Agreement or the**

Kabul Convention of 1893

Whereas certain questions have arisen regarding the frontier of Afghanistan on the side of India and whereas both His Highness the Ameer and the Government of India are desirous of settling these questions by friendly understanding, and of fixing the limit of their respective sphere of influence, so that for the future there may by no difference of opinion on the subject between the allied Governments, it is hereby agreed ass follows:

1 - The eastern and southern frontier of His Highness's domains, from Wakhan to the Persian border, shall follow the line shown on the map attached to this agreement .

2 - The Government of India will at no time exercise interference in the territories lying beyond this line on the side of Afghanistan, and His Highness the Ameer will at no time exeercise interference in the territories lying beyond this line on the side of India .

The British Government thus agrees to His Highness the Ameer retaining Asmar and the valley above it, as far as Chanak. His Highness agrees, on the other hand, that he will at no time exercise interference in Swat, Bajaur, or Chitral, including the Areaway or Bashgal valley. The British Government also agrees to leave to His Highness the Birmal tract as shown in the detailed map already given to His Highness, who relinquishes his claim to the rest of the Wazir country and Dawar. His Highness also relinquishes his claim

to Chageh .

4 - The frontier line will hereafter be laid down in detail and demarcated, whenever this may be practicable and desirable, by joint British and Afghan commissioners, whose objet will be to arrive by mutual understanding at a boundary whiich shall adhere with the greatest possible exactness to the line shown in the map attached to this agreement, having due respect to the existing local rights of villages adjoining the frontier.

5 - With reference to the question of Chaman, the Ameer withdraws his objection to the new British cantonment and concedes to the British Government the rights purchased by him in the Sirkai Tileraj water. At this part of the frontier the line will by drawn as follows:

From the crest of the Khwaja Amran range the Psha Kotal, which remains in British territory, the line will run in such a direction as to leave Murgha Chaman and the Shrobo spring to Afghanistan, and to pass half-way between the New Chaman Fort and the Afghan outpost known locally as Lashkar Dand. The line will then pass halfway between the railway station and the hill known as the Mian Buldak, and, turning southwards, will rejoin the Khwaja Amran range, leaving the Gwasha post in British territory and the road to Shorawak to the west and south of Gwasha in Afghanistan. The British Government will not exercise any interference within half a mile of the road.

6 - The above articles of agreement are regarded by the Government of India and His Highness the Ameer of Afghanistan as a full and satisfactory settlement of all the principal differences of opinon which have risen between them in regard to the frontier, and the Government of India and His Highness the Ameer undertake that any difference of detail, such as those which will have to be considered hereafter by the officers appointed to demarcate the boundary line, shall be settled in a friendly spirit, so as to remove for the future as for as possible all causes of doubt and misunderstanding between the two Governments.

7 - Being fully satisfied of His Highness's goodwill to the British Government, and wishing to see Afghanistan strong, the Government of India will raise no objection to the purchase and import by His Highness of munitions of war, and they will themselves grant him some help in this respect. Further, in order to mark their sense of the friendly spirit in which His Highness the Ameer has entered into these negotiations, the Government of India undertake to increase by the sum of six lakhs of rupees a year the subsidy of

twelve lakhs now granted to His Highness.
Kabul, November 12, 1893
H. M. Durand
Ameer Abdur Rahman Khan

## دډیورنډ د توافق لیك پښتومتن

په داسي حال کي چي د هندوستان په خوا کي د افغانستان د سرحدي سیمي په هکله خیني مسألي رامنځ ته شوي ، او په داسي حال کي چي دواړه والاحضرت امیر او د هندوستان حکومت هیله من دي چي دغه مسألي ددوستي په فهم او ددواړو دنفوذ دساحو دحد په ټاکلو سره حل کړي ، ترڅو په آینده کي ددغــو متحدو حکومتونو تر منځ ددغي موضوع په سر دنظر اختلاف نــه وي پــه دي وسیله پــه لاندي ډول سره موافقه وشوه .

۱ ـ دوالاحضرت دتوابعو ختیځه او سهیلي سیمه دي له واخان نه دپارس تر پولي پوري دي هغه لیکه تعقیب کړي چي په هغي نقشي باندي ښودل شوي چي له دغه توافق لیك سره مله ده .

۲ ـ دهندوستان حکومت به هیڅ وخت په هغو سیمو کي چي له دغي لیکي نه آخوا د افغانستان په لور پرتي دي ، مداخله ونه کړي ، او والاحضرت امیر به هیڅ وخت پـه هغو سیمو کي چي له لیکي نه آخوا دهندوستان په لور پرتي دي ، مداخله ونه کړي .

۳ ـ دبرتانیي حکومت په دي ډول موافقه کوي چي والاحضرت امیر دي اسمار او تر چاناك پوري پورته دره وساتي . له بلي خوا والاحضرت موافقه کوي چي دی به هیڅ وخت په سوات ، باجوړ یا په چترال کي دباشگل یا ارنوایي دري په شمول مداخله نه

کوي . دبرتانيي حکومت داسي هم موافقه کوي چي والاحضرت دي دبرمل سيمه ولري کومه چي په هغي مفصلي نقشي کي ښودل شوي چي والاحضرت ته لا دمخه سپارل شوي ده ، او والاحضرت د پاتي وزيرستان او دداور په هکله له خپلي ادعا نه تيريږي په همدي ډول والاحضرت دچاغي په باب له خپلي ادعا نه اوړي .

٤ ـ دسرحدي سيمي ليکه به دافغان او برتانوي ګډو کمشنرانو له خوا له دي وروسته په تفصيل سره وکاږله شي او حد بندي به شي په کوم ځای کي چي د تطبيق وړ او مطلوب وي . ددغو کمشنرانو مقصد به داوي چي د سرحد په ټاکلو کي متقابل فهم ته سره ورسيږي داسي چي دغه ليکه دي تر نهايي امکان پوري د هغي نقشي له مخه وي چي له دغه توافق ليك سره مله ده ، په داسي حال کي چي ددغي سرحدي سيمي د ګاونډيو کليو دموجودو محلي حقوقو رعايت پوره وشي .

٥ ـ دچمن دموضوع په ارتباط والاحضرت دبرتانوي نوې قشلي په هکله له خپل اعتراض نه تيريږي او برتانوي حکومت ته هغه حقوق پريږدي چي د سرکې تايلري په اوبوکي يي په ځپله په بيه اخستې و . دسرحد سيمي له دغه ټکي نه به ليکه په لاندي ډول وکاږله شي .

دغه ليکه به پشاکوتل ته نژدي دخوجه امران غرو له لوړي نه چي دبرتانيي په سيمي کي به پاته کيږي ، په هغه لور کښله کيږي چي مرغه چمن او دشربو چينه به افغانستان ته پاتي کيږي او د نوي چمن چاوڼي او دافغان پوستي چي خلګ يي لښکر ډنډ بولي تر منځ نمايي پوري رسيږي . دغه ليکه به بيا دريل وي ستيشن او دهغي ښتي تر منځ چي د ميان بلاك په نامه ياديږي ، تر نيمايي پوري رسيږي او په داسي حال کي چي د جنوب په لور به روانه وي له خوجه امران غرو سره به بيا يو ځاې کيږي . په دي ډول غوښه پوسته به د برتانيي په علاقه کي او دغوښي په جنوب او لويديخ کي دشوراوك سرك به افغانستان ته پريږدي . دبرتانيي حکومت بــه ددغــه سرك تــر نيم ميلي پوري مداخله نه کوي .

۶ ـ ددغــه تــوافق ليك دغــه پورته فقري د هندوستان د حکومت او دافغانستان د والاحضرت له خوا دنظر ټول عمده اختلافات چي دسرحدي سيمي په باب ددوی تر

منخ پيدا شوي وو ، دپوره او قناعت بښوونکي فيصلي په ډول گڼل کيږي او دواړه د هندوستان حکومت او والاحضرت په ذمه اخلي چي د جزقياتو په باب ټول اختلافات لکه هغه چي له دي وروسته به دهغو منصبدارانو له خوا پري غور کيږي چي دسرحدي خط دحد بندۍ دپاره ټاکل کيږي ، ددوستۍ په روحيي سره به فيصله کيږي . ددي دپاره چي تر هغو چي ممکنه وي ددواړو حکومتونو تر منخ دشکونو او غلط فهميو سببونه له منځه ولاړ شي .

۷ ـ دهندوستان حکومت چي دبرتانيي حکومت په نسبت دوالاحضرت له روغ نيتي نه په پوره ډول ډاډ من شوې او غواړي افغانستان پياوړې او خپلواك ويني دوالاحضرت له خوا دجنگي لوازمو په رانيولو او واردولو باندي به اعتراض ونه کړي ، او دوې به په خپله په دغه هکله خــه مرسته ورسره وکړي . برسيره پــردي ددي دپاره چــي دوالاحضرت دهغي دوستانه روحيي نښه وساتله شي چي په دغو مذاکراتو کي يي ښودلي د هندوستان حکومت ژمنه کوي چي په هغو دولسو لکو کي شپږ لکه روپۍ زياتي راوستل شي چي والاحضرت ته هر کال دمالي مرستي په ډول ورکول کيږي .

هنري ماتمر ډيورنډ دهندوستان دحکومت دباندنيو چارو وزير

امير عبدالرحمن خان دافغانستان او دهغه دتوابعو امير

کابل دنومبر ۱۲ ، ۱۸۹۳

پښتو کوونکې ـ پوهاند ډاکټر محمد حسن کاکړ

---

د ضميمو يادداشتونه

۱ ـ افغانستان کالني ، گڼه ۳۶ ، مخونه ۲۴۸ تر ۲۵۲

۲ ـ زما مشاهدات

۳ ـ افغانستان کالني ، گڼه ۳۶ ، مخونه ۲۹۶ تر ۲۷۷

٤ ـ کاکړ ، ذکر شوی اثر ، مخونه ۱۶۰ تر ۱۶۱

۵ ـ سايکس ، ذکر شوې اثر ( شماره نه لري )

۶ ـ زما مشاهدات

٧ ـ رامپارتس مجله ، مخ ١٥

## مأ خذونه په پښتو او دري


١ ـ غبار ، میر غلام محمد ، افغانستان در مسیر تاریخ ، جلد اول ، چاپ ایـــران در ســال ١٩٨٠

٢ ـ غبار ، پورته اثر ، دوهم ټوك ، د امریکا چاپ ، کال ١٩٩٩

٣ ـ مبارز ، عبدالحمید ، تحلیل واقعات سیاسـي افغانستان ، از سال ١٩١٩ تا سال ١٩٩٤ چاپ پشاور در سال ١٩٩٤

٤ ـ ځلمې ، محمد ولي ، د افغانستان او روسیي د سیاسي روابطو لنډه تاریخچه ، د کراچي چاپ ١٩٩٥

٥ ـ فرهنگ ، میر محمد صدیق ، افغانستان در پنج قرن اخیر ، چاپ امریکا ١٩٨٨

٦ ـ شرق ، ډاکټر محمد حسن ، کرباس پوشهاي برهنه پا ، چاپ هند ١٣٧١ ه ش

٧ ـ کشککي ، صباح الدین ، دهه قانون اساسي ، چاپ اسلام آباد ١٩٨٦

٨ ـ حبیبي ، عبدالحي ، جنبش مشرطیت در افغانستان ، کابل ١٣٦٧ ه ش

٩ ـ الفت ، گل پاچا ، د الفت مرغلري ، د پیښور چاپ ١٣٧٥ ه ش

١٠ ـ حق شناس ، ډاکټر شیر احمد نصري ، دسایس و جنایات روس در افغانستان چاپ پشاور ١٩٨٤

١١ ـ رشتیا ، سید قاسم ، خاطرات سیاسي سید قاسم رشتیا ، از سال ١٩٣٢ تا سال ١٩٩٢ ، چاپ امریکا ١٩٩٨

١٢ ـ فیض زاد ، محمد علم ، جرگه هاي بزرگ افغانستان ، پشاور ١٩٨٩

١٣ ـ کبیر سراج ، محمد نذیر ، رویداد هاي نیمه اخیر سده بیست در افغانستان ، جلد اول ، چاپ المان ١٩٩٧

١٤ ـ عظيمي ، محمد نبي ، اردو و سياست در سه ده اخير افغانستان ، چاپ پشاور در سال ١٣٧٦ ه ش

١٥ ـ نورزايي ، ډاکټر عطا ، افغانستان در بازي ابر قدرت ها ، چاپ المان ١٩٨٥

١٦ ـ زوړ مدنيت او نوې ژوند ، د پلان د وزارت له خوا چاپ شوې کتاب

١٧ ـ د افغانستان کالني ، د کابل چاپ ، کال ١٣٤٨ ه ش ګڼه ٣٦

١٨ ـ د افغانستان کالني ، د کابل چاپ ، کال ١٣٤٩ ه ش ګڼه ٣٧

١٩ ـ د افغانستان کالني ، د کابل چاپ ، کال ١٣٤١ ه ش ګڼه ٣٠

٢٠ ـ د افغانستان کالني ، د کابل چاپ ، کال ١٣٤٤ ه ش ، ګڼه ٣٢

٢١ ـ د افغانستان کالني ، د کابل چاپ ، کال ١٣٤٦ ه ش ګڼه ٣٤

٢٢ ـ د مساوات جريده ، د ١٩٦٩ کال خيني ګڼې

٢٣ ـ زما يادداشتونه

٢٤ ـ مجله خراسان ، چاپ کلفورنيا امريکا ، شماره ماه اکتوبر ١٩٨٨

٢٥ ـ محمد عزيز نعيم ، د مجا هـد ولس د ١٩٩٦ کـال د جولاې د مياشتـي ګڼه

٢٦ ـ محمد عزيز نعيم ، د مجا هد ولس د ١٩٩٦ کال د جون د مياشتي ګڼه

٢٧ ـ د ډاکټر محمد حسن شرق مقاله ، د مجاهد ولس د ١٩٩٨ کال د آګست د مياشتي ګڼه

٢٨ ـ محمد عزيز نعيم ، د مجا هـد ولس د ١٩٩٧ کال د سبتمبر د مياشتي ګڼه

٢٩ ـ هيکل ، محمد حسنين ، ابـوالهـول او کميسا ر د محمد آصف اکـرام ژبـاړه چي په ١٩٦٧ کال کي په پيښور کي چاپ سوې دې

٣٠ ـ خالص ، مولوي محمد يونس ، د افغانستان د مسلمان ملت په سرنوشت لوبي نه دي په کار ، پيښور ، د ١٣٧١ ه ش کال د ميزان مياشت

٣١ ـ فايق ، غوث الدين ، رازي را که نمي خواستم افشا گردد ، پشاور ١٣٧٩

٣٢ ـ اکرم ، ډاکټر عاصم ، سردار محمد داود ، انتشارات ميزان ، امريکا ١٣٨٠

٣٣ ـ رسولي ، ډاکټر مصطفی ، شهادت محمد هاشم ميوندوال سر آغاز فاجعه

افغانستان ، چاپ پشاور ، ماه حوت سال ۱۳۷۹

۳٤ ـ اخبار پیك پارسیان ، ۱۷ مي سال ۲۰۰۲ چاپ سدني استرلیا

۳۵ ـ شنسب ، امیرالدین ، خاطرات هشتاد سال ... پشاور سال ۱۳۸۰ ه ش

۳٦ ـ بخرکی ، محمد علم ، ویښ ځلمیان ، کال ۲۰۰۰ ـ هالینډ

## د عکسونو او نورو اسنادو پیژندنه

۱ ـ محمد ظاهر شاه او محمد داود خان د ( زوړ مدنیت او نوې ژوند ) د کتاب څخه چي د پلان د وزارت له خوا خپور شوې و .

۲ ـ د ۱۹۵۵ کال د لویي جرگي غړي په پغمان کي

۳ ـ د ۱۹۵۵ کال په لویي جرگي کي د فراه وکیلان

٤ ـ کابل ته د امریکا د جمهور رئیس ایزن هاور سفر ( زوړ مدنیت او نوې ژوند ) پورته ذکر شوې اثر .

۵ ـ محمد داود خان داکتر محمد یوسف ته مبارکي وایي ، د افغانستان د کالني څخه کال ۱۳٤۱ ه ش گڼه ۳۰

۶ ـ محمد هاشم میوندوال د عقرب ددریمي تر پیښي وروسته په کابل پوهنتون کي ، افغانستان کالني ، گڼه ۳۲

۷ ـ ددیارلسمي تقنیني دوري د ولسي جرگي لومړي غونډه ، د افغانستان کالني څخه ، گڼه ۳۷

۸ ـ محمد داود خان د جمهوري دولت اساسي قانون لاسلیك کوي . ( رازي را که نمي خواستم افشا گردد ) . د غوث الدین فایق د اثر څخه .

۹ ـ د رامپارت د مجلي مقاله

۱۰ ـ د پنجده د پیښي ( کورکي )

۱۱ ـ د وکیلانو د یوه پیشنهاد متن

لومړي تبصره : د افغانستان کالني ټولي گڼي چي په کتاب کي یي یادوني شوي دي ، د امریکا د کانگرس په کتابخاني کي سته او د هغو څخه استفاده شوي ده .

دوهمه تبصره : دوهمه او دریمه گڼه عکسونه د لوي جرگي له خوا د هغي جرگي غړي

او د لیکوال پلار ارواښاد دین محمد خان ته ورکړه شوي و

## REFERENCES


1 - Abrahamian, Ervand, ( Iran between two Revolution ) Princeton University Press, USA 1982

2 - Adamac, Ludwing W. , Who is Who of Afghanistan, Graz Austria 1975

3 - Dupree, Louis, Afghanistan- USA, Princeton University Press, New Jersy, 1980

4 - Ghaws, A. Samad, The fall of Afghanistan, USA 1988

5 - Kakar, M. Hassan ( A political history and the external relation of Afghanistan the reign of Ameer Abdo-al Rahman )

6 - Kakar, Afghanistan, The Soviet Invasion and the Afghan respon (1979 - 1982) Clifornia University press, USA. 1995

7 - Cordovez, Diego, and Harison, Selig, S. Out of Afghanistan, University press, New York, 1995

8 - Marwat, Fazel-ur-Rahim, The Evolution and growth of communism in Afghanistan, (1917-1979)Pakistan,1995

9 - Nayar, Kuldip, Report on Afghanistan, India, 1981

10 - Bredsher, Henry, S. Afghanistan and Soviet Union, Duke press, Durham, N. C. 1983

11 - Sykes, Sir Percy, A Biography of Sir Mortimer Dorand, London, 1926

12 - Poulada, Leo, B. and D. J. Poulada, Afghanistan and USA. Omaha, Nebraska, 1995

13 - Yousaf, Mohammad, Brigadier and Major Mark Adkin, The Bear Trap, Afghanistan untold story, Pakistan, 1992

14 - Encyclopedia, America, volums 6

15 - Encyclopedia, America, volums 25

16 - Edited by Marlin, Lourence, W. Neutralism and Nonalinment, Johns Hopkins University, 1962

17 - Lectur by Nana Sufresna, 14 october 1996 Indonesia, The Movement of Nonalignment countries

18 - Churchil, Iron curtain speach, Westminster college, Missour, USA.March 5th 1946

19 - Shansab, Nasir, Soviet Expanstion in the third Worid, Batleby

press, Silverspring, MD, 1986
20 - Ramparts, volums 5, Number, 1976, USA
21 - The Economist, Janauary, 1998, London

# THE ERA OF DEMOCRACY AND REPUBLIC IN AFGHANISTAN 1963 - 1978

BY

ABDUL GHAFAR FARAHI

2003 - - 1382

# تر لومړی چاپ وروسته ځیني څرګندوني

د اروابناد کاندید اکادمیسن محمد ابراهم عطایي

د لیك یوه برخه ، د ۱۳۸۰ کال دحمل ۲ ــ کابل ـ افغانستان

څولنډي خبري

( دغه مطالب لیکوال ته هغه وخت رسیدلي وو چي کتاب چاپ سوی و )

زما محترم دوست عبدالغفار فراهي په یوه لیك کي را ځخه غوښتي چي ددوی پر لیکل شوي کتاب چي د چاپ په معرض کي دی یو څو کرښي ورو لیکم . دا کار سخت مشکل و ځکه متن راسره نه و حتي فهرست قدر هم ما نه دی لیدلی . زه د کتاب د محتوا څخه د هغو دوو پاڼو له مخي خبریږم چي د کتاب د لنډیز په نامه ددغه لیك سره رالیږل سوي دي او په هغو کي دا څرګنده شوېده چي کتاب څه دپاسه په درو سوو مخونو کي لیکل شوی او د افغانستان د تاریخ دوي دوري ( نه پوهیږم چي ددورو پر ځای بله کومه کلمه استعمال کړم ) ددیموکراسي لس کلنه دوره چي پنځه صدراعظمان پکښي تیر سوي او د سردار محمد داود دجمهوریت دوره شامله ده . غالبا چي دا به په پوره صلاحیت لیکل سوی وي ځکه هم پخپله فراهي صاحب یو دقیق دیپلومات دې چي عمر یي دسفارتونو په ماموریت کي تیر سوی او پارلماني مطالعه یي هم له نظره نه غورخوله کیږي ځکه په پارلمان کي هم دسالمي لاري پیرو شخصیت و . ښه دا خو ددوی په باب زما دشناخت مسأله ده راغلو کتاب ته :

په دي باب لاره را ته تیاره ده ، ځکه اصل متن او حتي فهرست یي هم په لاس کي

نه لرم نو صرف يو څو لنډي خبري به وکړم چي د کتاب له دغو دورو سره اړه لري دا چي څومره به دکتاب له محتوا سره وفق ولري نه پوهيږم ؟

لومړی ددغو دورو په باب ټول نظريات پر دا يوه محور راڅرخي چي پاچا او صدراعظم په آزادو موقفونو کي ويني ، خو زما په عقيده دا صرف د سردارانو رقابتونه وه چي هر يوه خان ته آزادي زميني برابرولي . داود خان يو خان طلبه سړي و خو پاچا راحت طلبه .

د پښتونستان مسأله يو دروند بار و چي د ټولو ملا يي ورماته کړه ، پاکستان په سادګۍ منخ ته نه و راغلی بلکه دا يوه د غرب پايګاه وه خو داود خان غوښتل چي په دي وسيله غرب قانع کړي چي دده مخالفت به دهغو ګټي ورولړزوي ولي ناکامه سو ، دلته يي زموږ دتاريخ هغه ناکامه ملنډي ته ( شوروي ته نژديوالۍ ) لاس ور واچاوه چي د امير شير علي خان غبرګ غاښونه پکښي وتلي وه ... په مسکو کي دبرژنيف سره د داودخان پرخاش هم ددي له پاره و چي غرب په دي قانع کړي چي دشوروي څخه رابيل سوی دۍ ، خو روسانو دا موقع ور نه کړه او د ثور د ۷ په کودتا يي دکورني سره بيړي ورغرقه کړه .

د دا لنډو خبرو نتيجه داده چي شوروي په پلان شوي طريقه افغانستان ته لاس ور اچولۍ و خو معروف روسي غباوت نه يوازي زموږ هڅونه ميده کړه بلکي خپله بيړۍ يي هم غرقه کړه . زه د خپلو مطالعاتو په نتيجه کي و دي عقيدي ته رسيدلۍ يم چي شوروي پر افغانستان دا بده ورځ راوستله او وريسي هر چا په خپل وار د امريکا څخه تر پاکستانه ، ايران ، سعودي عربستان او حتي چين پوري هر يوه دخپل خنجر يو ګذار پر وکړ .

... ما د ليونتوب تر سرحده څو کرښي و ليکلي او خپله عقيده مي بيان کړه ، دا هم د ناروغۍ د وخت ليکنه ده ملامتوۍ به مي نه . ما صرف دا کار ددي په خاطر وکړ چي ستاسي غوښتنه بي جوابه پاته نه سي که نه زه اوس هره لحظه د مرګ په فکر کي يم

ددي لنډي ليکني په پای کي چي ګمان کوم ددغسي يوه درانه کتاب سره به لياقت و

نه لري خپل دانشمند دوست فراهي صاحب ته صحت او عزت غواړم .

په درناوي

د محترم ذبيح الله زيارمل د ليك يوه برخه

د ۲۰۰۱ کال د آگست اوله ــ برن ـ سويس

وروره فراهي !

... کتاب مي تر لاسه کړ بيا ورته کښينا ستم او د ورزشکارانو پــه اصطلاح مــي پــه يوه ساه ولوست ... دا چي ماغوندي ستومانه څوك يي په يوه ورځ تماموي ددي په معني ده چي کتاب د خپلي بکري محتوا ، متين او ښکلي او قريب به ذهن نثر او مهمو مطالبو لـه املـه د لوستونکي شا او خـوا د نـورو ټـولـو مسألـو اهميت لــه منځـه وړي او پــر لوستونکي دا تحميلوي چي څو وروستۍ پاڼه هم نه وي لوستل شوي تر هغو يي له لاسه نه پريږدي ... زه ويلای سم چي تاسو د خپل ولس د هغه باور په وړاندي چي په وکالت يي انتخاب کړی وی په دي مهم اقدام سره خپل بشپړ صداقت ښوولی دی او دغــه د دربدرۍ او سرگردانۍ کلونه مو څانته په ثمربخش زمان بدل کړي دي او محصول يـي دادې د يوه نفيس او با ارزشته کتاب  په شان د هيوادوالو په مخ کي پروت دی . زه ددغه برياليتوب په خاطر تاسو ته مبارکي وايم او هيله لرم چي په هماغه ښه نيت چي د حقيقت انعکاس دې ، دښې ارادي او ښه نيت خاوندان هم د هغه د محتوا په هکله غبرگون وښيي نقد يي کړي او دحقايقو لابرجسته کيدو ته  لاره اواره سي . په درناوي

( د ليك په وروستۍ برخي کي يي ليکوال ته ډيري مفيدي مشوري ورکړي دي )

د محترم داود موسي د ليك وروستي برخه

د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر ۳ ــ کلفورنیا ـ امریکا

گرانه غفار جانه !

( دليك په لومړي برخي کي يي ليکوال ته ځني ښې مشوري ورکړي دي )

... لويان وايي چه ، عيب شمع جمله چو بگفتي ، هنرش نيز بگو ، نو ددي کتاب د هنرونو په لړ کي داشيان عرض کوم :

۱ ـ د کتاب په سر کي د افغانستان د لنډ تاريخ معرفي دراتلونکو واقعاتو د پوهي دپاره ډير پر ځای ده .

۲ ـ کتاب د پښتو په ډيره شيوا سبك ليکل سوې دې او زما په نظر لوستل يي ډير آسانه دي .

۳ ـ دا کتاب کيدای سي چه دديموکراسي او ، جمهوريت ، د دوري د پاره يو ډير ښه درسي کتاب سي .

٤ ـ زما د پاره چه په دغه دوري کي مي په افغانستان کي ژوند کړې دی ، د هغو واقعاتو د جزئياتو ويل کم چه تا ته معلوم وو ، ډير دلچسپ او په زړه پوري وو . برسيره پردي د واقعاتو د پوهي د پاره يو چټك رفرنس هم دې . الله ياور

---

د محترم محمد حسن سهاك د ليك يوه برخه

د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر ۱۰ ــ ټورنټو ـ کاناډا

وروره فراهي !

کتاب مي تر لاسه کړ . دکتاب په هکله بايد ووايم چه تر هغه ځه چه ما فکر کاوه کتاب د متن او محتوا په لحاظ ډير لوړ و ، په دي مفهوم چه ما فکر کاوه چه د ... د کتاب په شان به داهم په هماغه متعارفه توگه چه موږ لوستونکو اوس عادت ورسره کړې دې ليکل شوی وي ، ولــي ماوليدي چــه کتاب پــه ځانگړي او ابتکاري توگــه ليکل شوې دې او دا ډول ليکني زموږ په افغانانو کښې سابقه نه لري او زيادتره ددي کتاب د ليکلو طرز د جواهر لعل نهرو ليکنو ته ورته دی .

... د معمول په توګه زموږ خیني افغانان چه په هر موقف کي وه ، کله چه خپل خاطرات یي لیکلي دي ، ځانونه یي د حوادثو او پیښو په متن کي درولي دي او کوشش یي کړې دې چه د قضایاو هغه اړخونه رابرسیره کړي چه ددوی دفکر او عقیدي سره اړخ لګوي . د نیکه مرغه ستاسي په کتاب کي موضوع په دي ډول نه ده ، دلته داسي پیښي رابرسیره شوي چه په قوي احتمال به هیري شوي واي ، او دتاریخي شخصیتونو د رول په هکله لوستونکو ته ډیر شواهد او پیښي په ګوته شویدي تر څو هغوي وشي کولای خپل قضاوت وکړي. ... دیوه مطلب یادول ضروري ګڼم ، هغه دا چه موږ اکثر افغاني ء منورین ء په بیروکراسي کښي روزل شوي یو موږ اکثرو دولتي کارونه درلودل ، چه هلته معموله او مسلطه ژبه پارسي وه ، او موږ ته دافرصت نه وو تر لاسه شوی چه په خپله مورني ژبه څه ولیکو ، په دي لحاظ ډیر پښتانه چه په دي موقف کښي دي د دوی په لیکونو کښي نیمګړتیاوي لیدل کیږي . ولي ستاسي دا لیکنه دومره سلیسه او روانه ده چه کله کله سړي ته داسي فکر پیدا کیږي چه فراهي صاحب حتما په پښتو ټولني کښي د کار سابقه لري ... په درناوي

---

د محترم محمد حسن ولس مل د لیك یوه برخه

د ۲۰۰۱ کال د نومبر ۱٦ ــ اسلو ـ ناروی

( افغانستان ددیموکراسي او جمهوریت په کلونو کي ) دکتاب کتنه

د ښاغلي فراهي دغه کتاب دحقایقو او محتوا په لحاظ دانارو ددانې غوندي ډك دی چي دده څخه د همدغسي یوه کتاب د لیکلو توقع کیدله . زه له نوموړي سره له هغه وخته آشنایي لرم چي دې دحقوقو دپوهنځي محصل و او زه په ۱۲ ټولګي کي وم . فراهي صاحب په هغه وخت کي ډیري خبري نه کولي خو خیني اشخاص دخپلو ټولنو ژوندي تاریخونه وي اما له بده مرغه چي یو زیات شمیر یي د خپل مضر احتیاط په وجه خپل دسترګو لیدلي حالات دخپلو سینو په صندوقونو کي داسي بند وساتي چي هغي بلي دنیا ته یي له ځانه سره یوسي ... ښاغلي فراهي دیو عیني شاهد په صفت دژوندانه دیوي برخي سترګو لیدلي حالات په دغي مجموعي کي راټول کړي او په روانه

خوږه پښتو ژبه یي خپلو هیوادوالو ته وړاندي کړي دي . ددغه کتاب په لوستلو سره ددیموکراسي دوري ټول هغه لاس وهني په څرګند ډول سړي ته معلومیږي چي دنوي اساسي قانون ، ولسي جرګي ، آزادو مطبوعاتو او دیموکراسي پرخلاف شوي دي .

زه دفراهي صاحب دڅرګندونو په تایید هغه وخت چي زه د ء افغان ء ملي جریدي چلوونکې وم نو دډاکټر عبدالظاهر او محمد موسي شفیق د حکومتونو له خوا پر نورو موضوعاتو سربیره د پښتو ملي ژبي ، هلمند داوبو او په اخبار کي دشهید محمد داود خان دصدارت ددوري دښو کارونو دیادوني په وجه دسخت فشار لاندي وم او اعلیحضرت محمد ظاهرشاه هم په دغه ارتباط خپل حضور ته څلور کرته غوښتې وم ... زه دافغانانو دیوه خدمتګار په صفت دفراهي صاحب دغه اثر ته دقدر په سترګه ګورم او لوستل یي دهر وطن خوا په تیره بیا ځوان نسل لپاره لازم ګڼم . په درناوي

---

د محترم محمد معصوم هوتك د لیك یوه برخه

د ۲۰۰۱ کال د نومبر ۱۸ ــ ټورنټو ــ کاناډا

( افغانستان ددیموکراسي او جمهوریت په کلونو کي ) دکتاب په هکله زما نظر

... په افغانستان کي ددوهمي دیموکراسي او جمهوریت حوادث زموږ په مخ کي تیري سوي پیښې او دسترګو لیدلې حال دئ . له همدې امله ما ددغه کتاب تر لوستلو وړاندي داسي فکر کاوه چي مطالب به یي راته دومره نوي نه وي . خو کله چي مي کتاب ولووست ، راته څرګنده سوه چي موږ ددغو پیښو ظواهر لیدلي وه او په عمق بې خبر نه وو . په دې کتاب کي مي دډیرو مسایلو په باب هغه راز بیانونه ولوستل چي په نورو مشابه لیکنو کي مي لوستي نه وو . ښاغلی فراهي دهیواد دهمدغي دورې دپیښو په لیکلو کي دبشپړ صلاحیت څښتن دئ ، ځکه په هیواد کي دننه او بهر یي په ډیپلوماټیکو پوسټونو کي کار کړی او په ولسي جرګه کي یې دوکالت دنده دیوه مسول شخص په توګه پرمخ بیولي ده . دې کار ورته دهیواد دبهرني سیاست او دمقننه قوې ، حکومت او پاچا په اړیکو کي ډیر داسي حقایق روښانه کړي دي چي نورو ته یي دلیدلو امکانات لږ میسر وو . دکتاب لیکوال په ولسي جرګه کي یوازي دحوادثو ناظر نه دئ ،

بلكي په ډيرو مهمو فيصلو او دهغو په باب په مباحثو كي يې فعاله برخه اخستي ده .
دهيواد دبنسټي مسايلو په وړاندي يې دملي ګټو له نظره برخورد كړی او دسترګو
ليدلی حال يې په پوره امانتدارۍ او رښتينولی سره بيان كړی دئ . دليكني ژبه يې
سپيڅلي او مهذبه ده . نه يې دچا اهانت كړی او نه يې بيځايه قدرداني . همدي
مشخصاتو يې كتاب داوسني عصر له نورو ورته كتابو څخه رابيل كړی او ممتاز كړی
دئ . څكه نو زه دغه مهم اثر دهيواد دملي تاريخ دليكلو له پاره يوه موثقه منبع ګڼم او
ښاغلي ليكوال ته يې دزړه له كومي مباركي وايم . په درناوي